# د معاملاتو فقهي لارښود

(معاملات ،بانکداري ، معاصر مسائل)

ليکوال : حمدالله شاکري



دمطالبو لړليک
لومړى فصل
معاملات

## دوهم فصل
## دمعاملاتو او تجارت شرعي بنسټونه

د ریـــیم فـصل
دمـعـا مـلاتــو تــقـسـیـم

## څلورم فصل
## قرض

پـنـځم فـصل

شرکت

شپږم فصل
اجاره



اووم فصل
زراعت (كرهنه)

اتـم فـصل
حـجـر

نهم فصل
معاملات معاصره



لسم فصل
دبانک له لارې معاملات

## یوولسم فصل

## د غیر مسلمو (کفارو) سره معاملات

## سريزه

الحمدلله رب العالمين والصلاة والسلام على سيدنا محمد صلى الله عليه وسلم ،وعلى آله وأصحابه و التابعين ... وبعد.

د انسانانو د رزق حاصلول د معاملاتو (تجارت ، زراعت او صنعت) په وسيله تر سره کيږي ، د اسلامي شريعت د نورو فرضي أحکامو پشان د معاملاتو ضروري زده کړه فرض ده تر څو سړی په ورځنيو معاملاتو کې حلال او حرام وپيژني .

ځکه چې د حرامو خوړل نه يوازې دا چې په خپل ذات کې خطرناکې پايلې لري بلکي پر نورو عباداتو او حتی پر اولاد باندې هم اثر کوي .

رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«من اشترى ثوبا بعشرة دراهم وفيه درهم حرام لم يقبل الله صلاته ما دام عليه» (رواه أحمد).

ژباړه : څوک چې يو جامه په لس درهم واخلي او په هغه کې يو درهم حرام وي څو چې دغه جامه استعمالوي لمونځ يې نه قبليږي.

په نن عصر کې اسلامي امت له لويو بلاوو سره مخ دی چې د دغو بلاوو څخه د کفري ديموکراسۍ بلاء ده ، په دغه بلاء کې اقصتادي بازار ته پوره آزادي ورکړ شوی ده ، يعنې د ديموکراسۍ په نظام کې سود ، قمار ، فريب ، ظلم ، بې انصافي او د محرمات تجارت هر څه حلال دي او اوس عصر کې دا نظام د خسيسو چارواکو لخوا د اسلامي امت په ډيرو هيوادونو تپل شوی دی .

نو ځکه نن عصر کې مسلمانان د بل هر وخت په نسبت د لوی امتحان سره مخ دي .

ددې کتاب ځانگړتياوې :

۱- دا کتاب د اسلامي شريعت د نصوصو په رڼا کې ترتيب شوی دی ، د هوا او خپل نظر يو خبره هم پکې نشته بلکي هره خبره يې په شرعي نص ثابته شوې ده ، دا کتاب په نړيواله سطحه ترتيب شوی دی، په ټولو روانو او مروجو معاصرو معاملاتو پوره بحث شوی دی او په واضح او ښکاره توګه بيان شوي دي .

۲- په دې کتاب کې د معاملاتو د بنسټونو ، شرايطو د بيان سربيره د معاملاتو فضيلت ، د شرعې خلاف معاملاتو وعيدونه او خطرناکې پايلې، اخلاقي مسئوليت او آداب هم ذکر شوی دي .

۳- دا کتاب په روانه او ساده ژبه او لهجه ترتيب شوی دی .

الله تعالی يې دې صدقه جاريه او د مسلمانانو لپاره ګټور وګرځوي .

و ماتوفيقي الا بالله عليه توکلت و اليه انيب

حمدالله "شاکري" غفره و لوالديه

طالب العلم: تخصص علوم الشرعيه - الأکاديمية الاسلامية .

## لومړی فصل
## معاملات

پخوا له دې چې فقه معاملات ته داخل شو ښه به دا وي چې د اسلامي فقې د پيدايښت تاريخ، تعريف او اهميت بيان کړو په عمومي توګه فقه په دوه برخو ويشل شوې ده :

**فقه القلوب يا فقه أکبر :** چې عبارت د علم عقائد څخه ده.

**فقه الفروغ يا فقه الجوارح :** چې د دين د احکامو (حلال او حرام) څخه بحث کوي.

فقه الفروع يا فقه الجوارح په څلورو قسمونو ويشل شوې ده :

١- عبادات

٢- معاملات

٣- نکاح

۴- د قضاء او جناياتو احکام

مګر ابن عابدين رحمه الله نکاح هم په معاملاتو کې شمارې او فقه الفروع په درى قسمو ويشي :

١- عبادات

٢- معاملات

٣- د حدودو او جناياتو احکام

**د اسلامي فقه تاريخ :**

د جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم د حيات په وخت کې به خلکو خپلې پوښتنې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته پيش کولې قرآنکريم به نازليدو او د هغوی د پوښتنو ځوابونه به د وحي په واسطه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ښودل کيدل.

الله جل جلا له فرمايي :[يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلاَلَةِ] (النسآء).
يعنې : طلب د فتوی کوي دوی له تا نه (ای محمده ! د کلالی په باره کې) نو ووايه چه الله فتوی درکوي تاسې ته په (ميراث) د کلالی کې.
يا لکه د ظهار د مسئلې په باره کې يوې ښځې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه د هغې په ځواب کې د سورت مجادلة لومړي آيتونه نازل شول او داسې نور ...
رسول الله صلی الله عليه وسلم د شرعي نصوصو او بيان د پاره يوه ډله صحابه رضی الله عنهم و ټاکل چې ځينې اهل علم يې څوارلس کسان بولي او ځينې يې تر هغه زيات بولې د هغوی په رأس کې معلم الناس صلی الله عليه وسلم وو ، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په زمانه کې د مسائلو اختلافات نه وو ځکه چې ټول مسائل به رسول الله صلی الله عليه وسلم ته پيش کېدل.
د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات وروسته صحابه کرامو رضی الله عنهم په نړۍ کې د دعوت او جهاد د پاره تيت شول اسلام مختلفو قومونو او مختلفو ژبو واله خلکو ته ورسيد.
او صحابه کرامو به د هغو صحابه کرامو په قول فتواوې ورکولې چې د فهم، ادراک او اجتهاد قوه به يې لوړه وه ، د دغو صحابه کرامو شمير ځنې اهل علم تر زرو کسانو زيات بولي ابن قيم رحمه الله وايي د دغو صحابه کرامو شميره اوه کسان وو لکه : عمر بن الخطاب ، علي بن أبي طالب ، عبدالله بن مسعود ، عائشة أم المؤمنين ، زيد بن ثابت ، عبدالله بن عباس ، عبدالله بن عمر رضي الله عنهم جميعا.
او د دغو صحابه کرامو رايې او نظر يې ته به يې مذهب فلان او فلان ويل لکه :

مذهب عائشة رضی الله عنها

مذهب عبد الله بن عمر رضی الله عنه

مذهب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه

مذهب عبدالله بن عباس رضی الله عنه او نور ......

همدارنگه په تابعینو کي مذهب: د سعید بن المسیب ،عروة بن الزبیر، القاسم بن محمد ،خارجة بن زید ، أبو بکر بن عبد الرحمن بن حارث بن هشام، سلیمان بن یسار او عبید الله بن عبد الله بن عتبة بن مسعود وو، او د دوی مبارکانو په وسیله د دین پوهه عالم ته ورسېده ، د شرعي علومو استاذان او زده کوونکي زیات شول ، د هغوی مبارکانو وروسته به هر چا د دیني مسائلو په استنباط کې مداخله کوله او په اسلامې امت کې زیات اختلافات رامینځته شول ، وروسته الله (جل جلا له) پخپل فضل د دین د حفاظت د پاره د ډیرې لوړې تقوی او پوره احتیاط او لوړ ادراک او فهم واله علماء کرام را مینځته کړل او هغوی د قرآن او حدیث څخه په ډیر احتیاط ، لوړ فهم او ادراک سره مسائل ترتیب کړل چې څلور اسلامې فقهې یا څلور مذاهب بلل کیږي کوم چې د ټول امت ور باندې اتفاق دی.

چې دا څلور مذاهب په لاندې ډول دي :

- المذهب یا الفقه الحنفي
- المذهب المالکي
- المذهب الشافعي
- المذهب الحنبلي

دا مذاهب د تابعینو له دور څخه شروع شوی دي تر نن ورځې او په دې مذاهبو یا اسلامي فقهې باندې د ټول امت اتفاق دی.

شيخ محمد صالح المنجد د تاريخ الفقه الإسلامي چې عمر بن سليمان الأشقر ليکلی په حواله ليکي :

والمشهور من هذه المذاهب اليوم إلا أربعة مذاهب منتشرة وهي : المذهب الحنفي ، والمذهب المالكي، والمذهب الشافعي، والمذهب الحنبلي. وهي مذاهب يتفق أصحابها في أكثر الأمور وأهمها من الدين، والخلافات حصلت في فهمهم و ما وصل إليهم من الأدلة في بعض فرعيات المسائل وكلهم على خير رحمهم الله تعالى. ثم تطور كل مذهب منها بما يطول ذكره حتى وصل الأمر إلى ما الناس عليه اليوم من وجود كتب لكل مذهب يحوي مسائله وطرائق الاستنباط والاستدلال ، ووجد في الأئمة بحمد الله مجتهدون يستخرجون الأحكام في النوازل والمسائل العصرية والمستجدة بما آتاهم الله من الفقه والفهم مستعملين الاجتهاد والقياس وقواعد المصالح الشرعية وكلام العلماء السابقين وأصول الفقه الإسلامي.

فبقي الفقه غنياً بحمد الله ، مستوعباً لجميع مسائل الحياة التي يحتاجها المسلمون.

ولا يمكن أن يخلو عصر من العصور من قائم لله بالحجة يعرف الحق ويستنبطه، وبعموم هؤلاء لا يمكن أن تجتمع الأمة على ضلاله. فنسأل الله أن يفقهنا في دينه ويرزقنا العلم والعمل الصالح. والله تعالى أعلم.

(موقع الأسلام سوال جواب -تاريخ الفقه الإسلامي لعمر بن سليمان الأشقر)

**د فقه تعريف :**

فقه په لغت کې پوهې ته وايي او په اصطلاح کې د شرعي نصوصو په رڼا کې د شرعي احکامو (حلال او حرام) تفصيلي بيان ته فقه وايي.

**د فقه د زده کولو اهمیت :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ، ... » (۳۱۱٦البخاري).

یعنې : چا ته چه الله تعالی د خیر اراده وکړي نو په دین کښې پوهه ور په برخه کړي.

همدارنګه فرمایي :«خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الاسْلامِ إِذَا فَقُهُوا» (البخاري ۳۳۳۵).

یعنې :هغه چې په جاهلیت کې ښه خلک وو ، په اسلام کې به هم ښه خلک وي که چېرې دیني پوهه ولري.

رسول الله صلی الله علیه وسلم به ابن عباس رضی الله عنه ته دا دعا کوله:«اللهمَّ فقِّهْهُ في الدِّين، وعلِّمه التأويل».

یعنې : ای الله ! په دین کې پوهه ورکړې فقهې یې وګرځوې او د درک او تفسیر علم ورکړې.

کله چې مسلمان د اسلامي شریعت له احکامو (حلال او حرام) څخه خبر شي نو هیڅکله هم د اسلامي شریعت احکام نه ماتوي که چیرې د کوم حکم په ماتولو مرتکب شي نو خپل ځان ډیر ګناهکار او قاصر حسابوي او توبه باسي ځکه چې ده ته علم وي چې زه په منکر او ناروا کار کې مبتلاء یم ، ولی که چا ته علم نه وي هغه ته د حلالو او حرامو فرق نه کیږي ، هغه به ګمان کوي چې ما کې څه نقصان نشته او توبه نه باسي حال دا چې هغه به په ډیرو نارواه کارونو مبتلاء وي که چېرې بې توبې کولو مړ شي خاتمه به یې خطرناکه وي.

**د معاملاتو تعریف :**

معاملات د معامله جمع ده د معامله لفظ له عمل څخه اخیستل شوی او عمل په عربي کې کار ته وایي داسې کار چې په هغه کې دوه سړي یا دو

څيزونه شرکت ولري ځکه د رزق په دغو وسيلو کې د دوو سړيو يا څيزونو شرکت ضرور وي لکه : په تجارت کې اخيستونکی او خرڅونکی ، په زراعت کې کرونګر او سامان ، په مزدورۍ کې مالک او مزدور ، په مضاربت کې د يو کس پيسې او د بل کس کار او محنت وي.

**د معاملاتو اهميت :**

په اسلامي شريعت کې د عقائدو او عباداتو نه پس د ټولو نه زيات اهميت د معاملاتو دی کوم چې د هغه په وسيله انسان ځان ته روزي او نفقه برابروي.

عقائد او عبادات په اصل کې د انسان روح ته معنوي او اخلاقي غذا رسوي او د نفقې او روزۍ په وسيله د انسان جسم ته مادي خوراک رسيږي ، د رزق او نفقې چې څومره ښې او بدې وسيلې دي د جسم په وسيله د هغه په روح باندې اثر پرې وځي.

اصلاً خو د رزق وسيلې بې شميره دي خو په عمومي ډول د زرق وسائل عبارت دي له : تجارت ، زراعت ، مزدورۍ ، ګاڼه يا ګروي ، قرض ، مضاربت، حواله او شراکت او نور دي چې دغو وسائلو ته په شريعت کې معاملات وايي.

# تجارت

## د تجارت تعريف :

تجارت په لغت کې گټې ته وايي ، تجارت ته په شريعت کې بيع هم وايي ، بيع په لغت کې تبادلې (د مال راکړې ورکړې) ته وايي.

د شريعت په اصطلاح کې په حلاله طريقه او د طرفينو په رضامندۍ خرڅولو او اخيستلو يا معاملاتو ته تجارت وايي.

## د تجارت فضيلت :

د تجارت د فضيلت د پاره دا هم کفايت کوي چې تجارت ته په قرآنکريم کې د الله تعالى فضل ويل شوى دى ، الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ] (مزمل ٢٠).

ژباړه : او (ځينې) نور د تاسې به سفر کوي (لپاره د تجارت او معاملاتو) په ځمکه کې او لټوي به دوى (رزق) له فضله د الله.

**او فرمايي** :[فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلاَةُ فَانتَشِرُوا فِي الأَرْضِ وَابْتَغُوا مِن فَضْلِ اللَّهِ] (الجمعه ١٠).

ژباړه :هر کله چې ادا کړ شي لمونځ (د جمعې) نو خواره شئ تاسې په ځمکه کې او ولټوئ تاسې له فضله د الله (د بيع ، تجارت او معاملاتو د پاره خواره شئ).

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«مَا أَكَلَ أَحَدٌ طَعَامًا قَطُّ خَيرًا مِنْ أَنْ يَأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدِهِ» (البخارى ٢٠٧٢) .

يعنې : ددې نه ښه روزي بله نشته چې سړى يې پخپل لاس په زحمت سره حاصله کړي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«طلب کسب الحلال فريضة بعد الفريضة» (رواه البيهقي).

يعنې : حلال کسب لاس ته راوړل د فرضو نه پس فرض دى.

د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وشو چې کوم کسب پاک دی ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

«عمل الرجل بيده و كل بيع مبرور» (خرجه البزار وصححه الحاكم).

یعنې : د سړي د لاس کار او هغه پیرودل او پلورل چې په هغه کې خیانت نه وي.

همدارنگه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«إن أطيب الكسب، كسب التجار، الذين إذا حدثوا لم يكذبوا، وإذا ائتمنوا لم يخونوا، وإذا وعدوا لم يخلفوا، وإذا اشتروا لم يذموا، وإذا باعوا لم يصروا، وإذا كان عليهم لم يمطلوا، وإذا كان لهم لم يعسروا» (البيهقي، الجامع الصغير السيوطي).

ژباړه:په کسبونو کې غوره کسب تجارت دی ، هغه تجارت چې د خبرو پر مهال دروغ نه وايي ، په امانت کې خیانت نه کوي ، په وعده وفا کوي ، د خپل قرض په ادا کولو کې مشکل نه جوړوي په غوښتولو کې سخت گیر نه وي ، د خرڅولو په وخت کې په صفت کولو کې مبالغه نه کوي (بې ځای صفت نه کوي) ، او د خرڅولو پر مهال د نورو بد نه وايي.

**د امین او صادق تجار فضیلت :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«التَّاجِرُ الصَّدُوقُ الأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ»(الترمذي ١٢٠٩).

یعنی :رښتیا ویونکی او امانتدار تجار به د انبیاؤ ، رښتیا ویونکو او شهیدانو سره وي.

او فرمايي : «التَّاجِرُ الأَمِينُ الصَّدُوقُ مع الشُّهَدَاءِ يومَ القيامةِ» (صحيح الترغيب ، ابن ماجه و حاكم).

یعنې : امانتدار او رښتیا ویونکی تجار به د قیامت په ورځ له شهیدانو سره وي.

**په تجارت کې د خیانت بد عواقب (پایلې) :**

۱- له رفاعه بن رافع رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول صلی الله علیه وسلم فرمایل:«إِنَّ التُجَّارَ يُبعَثُونَ يَومَ القِيَامَةِ فُجَّارًا، إِلَّا مَن اتَّقَى اللَّهَ وَبَرَّ وَصَدَقَ» (الترمذي ۱۲۱۰) (ابن ماجه ۲۱۴۶).

ژباړه : یقیناً تجاران به د قیامت په ورځ فاجران پورته کیږي بغیر له هغو تجارانو څخه چې له الله تعالی څخه ویریږي ، ښه عمله او صادق وي.

علامه مبارکفوري په شرح د دغه حدیث کې وایي : (بغیر له هغه چې له الله څخه وویریږي)،یعني : په تجارت کې خیانت ، تقلب او فریب و نه کړي او د خلکو سره په صداقت سره معامله کوي.

په پورته حدیث کې د (فاجر) لفظ اکثره شارحینو په درواغو قسمونو باندې تفصیل کړی دی.

۲- همدارنگه له عبدالرحمن بن شبل رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : «إِنَّ التُجَّارَ هُمُ الفُجَّارَ ، قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ؟ أَوَ لَيسَ قَد أَحَلَّ اللَّهُ البَيعَ ؟ قَالَ : بَلَى ، وَلِكِنَّهُم يُحَدِّثُونَ فَيَكذِبُونَ ، وَيَحلِفُونَ فَيَأثَمُونَ» (رواه احمد ، حاکم و سلسلة صحيحة).

یعنې : یقیناً تجاران فاجران دي ، چا وویل یا رسول الله ! نو آیا الله تعالی تجارت نه دی حلال کړی ؟ و یې فرمایل :هو (حلال دی) ، مگر هغوی درواغ وایي او په درواغو قسم یادوي ، په همدې وجه هغوی گناهکار دي.

۳- رسول صلی الله علیه وسلم فرمایي :«من اشترى ثوبا بعشرة دراهم وفيه درهم حرام لم يقبل الله صلاته ما دام عليه» (رواه أحمد).

ژباړه : څوک چې یو جامه په لس درهم واخلي او په هغه کې یو درهم حرام وي څو چې دغه جامه استعمالوي لمونځ یې نه قبلیږي.

۴- رسول صلی الله علیه وسلم فرمايي:«يا معشر التجار إن الشيطان والإثم يحضران البيع، فشوبوا بيعكم بالصدقة» (الترمذي١٢٠٨ حسن صحيح).

ژباړه : ای د تجارو ډلې ! د تجارت سره ګناه او شيطان تړلي دي ، نو ومينځئ تجارت خپل په صدقه سره (زياته صدقه ورکوئ).

۵- د ابی هريرة رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:«ثَلاثَةٌ لا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَلا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ: رَجُلٌ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ لَقَدْ أَعْطَى بِهَا أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَى وَهُوَ كَاذِبٌ، وَرَجُلٌ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ، وَرَجُلٌ مَنَعَ فَضْلَ مَاءٍ، فَيَقُولُ اللَّهُ: الْيَوْمَ أَمْنَعُكَ فَضْلِي كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَا لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ». (البخاری:٢٣٦٩).

**ژباړه:**: درې ډلې دي چې د قيامت په ورځ له هغوی سره الله تعالی خبرې نه کوي ، او هغوی ته نظر نه کوي : يو هغه کس چې قسم خوري چې ما خپل تجارتي جنس په دومره قيمت اخيستی حال دا چې حقيقي قيمت يې هغه نه وي او دروغ وايي ، بل هغه سړی چې وروسته له مازديګر څخه په دروغو قسم کوي تر څو د مسلمان مال پخپل تصرف کې راولي ، بل هغه څوک چې د اضافي اوبو يا عامو اوبو د ورکولو مانع شي ، پس الله تعالی فرمايي : نن ورځ زه تا د خپل فضل څخه محرووم لکه څنګه چې تا نور د هغه اوبو نه محروم کړی وو چې ستا کسب نه وو.

پس ويلای شو چې تجارت د ټولو کسبونو څخه غوره کسب دی مګر د هغه چا د پاره چې په تجارت کې امانتداره او صادق وي ، بې انصافه ، درواغ ويونکی او فريب ورکوونکی نه وي.

## د مسلمان تجار او کاسب آداب

### ۱- صالح نیت :

تجاره وروره ! خپل نیت دې د حلال رزق طلب او د حرامو څخه د ځان او اولاد د نجات سبب وګرځوه او خپل دغه عمل د الله تعالی د رضایت وسیله وګرځوه ، صالح نیت ددې سبب کیږي چې د بنده د پاره عادي کارونه هم عبادت وشمېرل شي او بنده د هغه په وسیله الله تعالی ته نږدې شي ځکه په حدیث شریف کې راغلي دي :«إنما الأعمال بالنيات وإنما لكل امرئ ما نوى» (البخاري).

یعنې : د ټولو عملونو قبلېدل په نیت پورې اړه لري ، انسان ته د ده د نیت موافق ثواب او بدله ورکول کیږي.

### ۲- بازار ته د داخلېدو په وخت کې ذکر کول :

حضرت عمر رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«من دخل السوق فقال لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد، يحيي ويميت، وهو حي لا يموت، بيده الخير، وهو على كل شيء قدير، كتب الله له ألف ألف حسنة، ومحا عنه ألف ألف سيئة، ورفع له ألف ألفدرجة» (رواه الترمذي وابن ماجة. وقال المنذري: (وإسناده حسن متصل ورواته ثقات أثبات، الترغيب والترهيب ۵۱۷/۲، وحسنه العلامة الألباني في صحيح الترغيب والترهيب۳۰۹/۲).

ژباړه : څوک چې بازار ته داخلیږي داسې به وایي :«لا إله إلا الله وحده لا شريك له، له الملك وله الحمد، يحيي ويميت، وهو حي لا يموت، بيده الخير، وهو على كل شيء قدير» ، الله تعالی به ده لره زر زر نیکۍ ولیکي ، او له ده څخه به زر زر بدۍ لري کړي او زر زر درجې به یې لوړې کړي.

### ۳- په خرڅولو او اخیستلو کې نرمه رویه او سلوک (د سخت ګیري ترک):

مسلمان تجار به په تجارت کې له خلکو سره نرمه رویه کوي.

د جابر رضی الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:«رحم الله رجلاً سمحاً إذا باع وإذا اشترى وإذا اقتضى» (رواه البخاري).

يعنې : الله تعالی دې پر هغه سړي رحم وکړي چې په خرڅولو ، اخيستلو او خپل حق غوښتلو (د قرض په غوښتلو) کې آساني او نرم سلوک کوي.

همدارنګه د ابی هريرة رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«إن الله يحب سمح البيع سمح الشراء سمح القضاء» (رواه الترمذي و صحيح الترغيب والترهيب ٣٢٧/٢).

يعنې : الله تعالی هغه خرڅول او اخيستل او حق غوښتل خوښوي چې په هغه کې نرمه رويه او آسانګيري وي.

**۴- په معامله کې امانتداري او صداقت :**

اصلاً د مسلمان لوی صفت صدق او امانتداري ده مسلمان هيڅکله خاين صفته او غل صفته نشي کيدای مسلمان به په ټولو امورو کې د صدق او امانت خيال کوي ، الله سبحانه وتعالی فرمايي :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ](التوبة ١١٩).

ژباړه : ای مؤمنان له الله څخه وويريږئ او له صالحانو خلکو سره ملګري شئ.

او همدارنګه فرمايي:[إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ وَالْمُتَصَدِّقِينَ وَالْمُتَصَدِّقَاتِ وَالصَّائِمِينَ وَالصَّائِمَاتِ وَالْحَافِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَالْحَافِظَاتِ وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ مَغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا](الأحزاب الآية ٣٥).

ژباړه :يقيناً مسلمانان نارينه او مسلمانانې ښځې ،مؤمنان نارينه او مؤمنانې ښځې ، اطاعت کوونکي نارينه او اطاعت کونکی ښځې، رښتني

نارینه او رښتنې ښځې، صبر کوونکي نارینه او صبر کوونکې ښځې، تواضع کونکي نارینه او تواضع کونکې ښځې ، خیرات ورکونکي نارینه او خیرات ورکونکې ښځې ، روژه نیونکي نارینه او روژه نیونکې ښځې، پاک لمنه نارینه او پاک لمنې ښځې ، او هغه نارینه چه د الله تعالی ذکر زیات کوي او هغه ښځې چې د الله تعالی ذکر زیات کوي تیار کړی دی الله تعالی دوی (ټولو ته) مغفرت او لوی اجر (جنت) دی.

د ابن مسعود رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«إن الصدق يهدي إلى البر وإن البر يهدي إلى الجنة وإن الرجل ليصدق حتى يكتب عند الله صديقاً وإن الكذب يهدي إلى الفجور وإن الفجور يهدي إلى النار وإن والرجل ليكذب حتى يكتب عند الله كذاباً» (رواه البخاري والمسلم).

ژباړه : یقیناً صداقت بنده د نیکۍ طرف ته بیایي او نیکي بنده د جنت طرف ته بیایي تر دې پورې چې رښتیا ویونکی سړی د الله په نزد صدیق ولیکل شي ، او یقیناً چې درواغ سړی د بدو کارونو طرف ته بیایي او بد کارونه سړی د اور طرف ته بیایي تر دې پورې چې دورواغ ویونکی سړی د الله په نزد درواجن ولیکل شي.

د مسلمان تجار به اصل مطلب صدق وي ، په حدیث شریف کې راغلي دي چې :«البيِّعان بالخيار ما لم يتفرقا فإن صدقا وبينا بورك لهما في بيعهما وإن كذبا وكتما محق بركة بيعهما» (رواه البخاري).

**ژباړه :** خرڅونکی او اخیستونکې څو پورې چې یو له بله نه وي جلا شوي د معاملی د فسخې حق لري او زیاته یې کړه : که هغوی رښتیا ووایي او د جنس عیب بیان کړي نو د هغوی په معامله کې به خیر او برکت وي او که د جنس عیب پټ کړي او درواغ ووایي د هغوی معامله به بې برکته وي.

**٥- ښه اخلاق :**

مسلمان تجار به په معامله کې ښه اخلاق کوي ځکه ښه اخلاق د تجار د پاره د دنيا او آخرت ګټه ده ، د دنيا ګټه يې دا ده چې کوم تجار ښه اخلاق ولري د هغه به ډير مشتريان وي او ډير خلک به د هغه سره معامله کوي او د آخرت ګټه يې دا ده لکه څنګه چې په حديث شريف کې راغلي دي : :«مَامِن شَيءٍ اَثقَلُ فِي مِيزاَنِ العَبد المُؤمِنِ يَومَ القِيامَةِ مِن حُسنِ الخُلُقِ وَ اِنَّ اللهَ يُبغِضُ الفَاحِشَ البَذِى» (الترمذى و صحيح الجامع).

ژباړه : د قيامت په ورځ به د مؤمن بنده د پاره بل هيڅ يو عمل بغير له ښو اخلاقو نه زيات وزمين نه وي ، الله تعالى بيهوده خبرې کونکى او بې حياء خبرې کونکى بد ګڼي).

تاسې ته به معلومه وي چې د اسلام په شروع کې ډير خلک د تجارانو د نيک سلوک او ښو اخلاقو په وجه مسلمان شوي دي.

**٦- په وزن او اندازه کې عدل کول :**

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ] (الأنعام الآية ١٥٢).

ژباړه : او پوره کوئ تاسې پيمانه او تول په عدل او انصاف سره.

او فرمايي: [وَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِينَ الَّذِينَ إِذَا اكْتَالُوا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُونَ وَإِذَا كَالُوهُمْ أَوْ وَزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ أَلَا يَظُنُّ أُولَئِكَ أَنَّهُمْ مَبْعُوثُونَ لِيَوْمٍ عَظِيمٍ يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ] (المطففين الآيات ٦-١).

ژباړه : هلاکت او تباهي ده کم کوونکو لره هغوى چې له خلکو څه پيمانه کوي نو پوره يې اخلي او چې نورو ته يې پيمانه ورکوي يا يې ورتلي نو کمې پکې کوي آيا په دې باور نلري چې : راپورته به کړاى شي يوې لويې ورځې ته په دې ورځ به ټول خلک د رب العالمين په وړاندې ودريږي.

**۷- پخپل عهد وفا کول :**

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَءَامَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ] (المائده).

ژباړه : ای مؤمنانو پر خپلو وعدو وفا کوئ.

په وعده وفا کول د مسلمان ستر صفت دی

[وَالَّذِينَ هُمْ لأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ] (المومنون ۸).

ژباړه : او هغه کسان (کامیاب شول) چې دوی د امانتونو او وعدو رعایت کوونکي دي.

د وعدې مخالفت کول د منافقت نښه ده ، په حدیث شریف راغلي دي :

عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: «آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا اؤتمن خان» (البخاري).

ژباړه : له ابوهریرة نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : د منافق درې نښې دي : چې کله خبرې کوي دروغ وایي ، کله چې وعده وکړي په هغه وفا نه کوي او که امانت ور ته ورسپارل شي په هغه کې خیانت کوي.

**۸- د پښېمانه کس څخه په ښه شان خپل مال اخیستل :**

که څوک په معامله کې پښېمانه شي نو د هغه څخه په ښه شان او ښه رویه خپل جنس او مال اخیستل په کار دي ځکه چې داسې کول ثواب لري.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«من أقال مسلماً أقاله الله عثرته يوم القيامة» (رواه أحمد وأبو داود وابن ماجة والحاكم وصححه ووافقه الذهبي).

یعنې : چا چې په ښه شان د مسلمان ورور د هغه د پښېمانتیا په صورت کې معامله فسخه کړه ، الله تعالی به یې د قیامت په ورځ له سختۍ نه وساتي او ګناه به یې لرې کړي.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم رحم کوونکو ته داسې دعا کړې ده :

«اللهم من رفق بأمتي فارفق به، ومن شق عليهم فشق عليه» (رواه أحمد والمسلم والنسائي).

ژباړه: ای الله ! څوک چې زما د امتيانو سره مهرباني او ترحم کوي ته د هغه سره مهرباني وکړي او څوک چې بده رويه ورسره کوي ته د هغه جزا ورکړې.

**٩- د ډېرو قسمونو څخه ډډه کول :**

مسلمان تجار به په معاملاتو کې ډېر قسمونه نه اخلي که څه په رښتيا سره وي.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَلا تَجْعَلُوا اللَّهَ عُرْضَةً لأَيْمَانِكُمْ أَنْ تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ] (البقرة ٢٢٤).

ژباړه : او تاسې د الله نوم د خپلو قسمونو لپاره نښه مه گرځوئ ، چې نيکي به کوئ ، پرهيزکاري به کوئ او د خلکو په مينځ کې به روغه جوړه راولئ.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«إياكم وكثرة الحلف في البيع فإنه ينفق ثم يمحق» (رواه المسلم).

يعنې : په تجارت کې د ډېر قسم يادولو څخه پرهيز وکړئ ځکه چې (ډېر قسمونه يادول) بيعې ته فائده لري مگر وروسته يې گټه ختموي يا داسې چې تجارت رواجوي مگر وروسته يې ختموي.

**١٠- د فريب او دوکې څخه ځان ساتل:**

ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«من غشنا فليس مني» (رواه البخاري والمسلم) .

يعنې : څوک چې مونږ ته فريب راکوي له مونږ (زما د امت) څخه نه دی.

**۱۱- په مال کې به عیب نه پټوې :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:«المسلم أخو المسلم ولا یحل لمسلم إذا باع من أخیه بیعاً فیه عیب أن لا یبینه» (رواه أحمد وابن ماجة والطبراني في الکبیر،و صحیح الترغیب والترهیب ۳۳۸/۲).

ژباړه : مسلمان د مسلمان ورور دی ، مسلمان ته دا رواه نه ده چې کله یې له مسلمان ورور څخه څه مال اخلي او په هغه کې عیب وي خو دی هغه عیب بیان نه کړي.

**۱۲- د حلال رزق د حصول اسباب په نظر کې نیول :**

د ډیرو کسانو په ذهن کې دا را ګرځي چې زه څنګه خپل حلال کسب ته پراخي ورکړم او په څه طریقه زما زرق پراخه او د رزق حاصلول آسانه وي د حلال زرق د حاصلولو اسباب په لاندې ډول دي :

الف) :د حلال رزق د اسبابو طلب کې کوښښ کول لکه : زراعت ، تجارت ، صناعت او نور حلال او مباح کسبونه کوم چې الله تعالی د انسان د پاره مقدر کړي دي ، لقوله سبحانه وتعالی : [هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الأَرْضَ ذَلُولاً فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ وَإِلَيْهِ النُّشُورُ] (الملك: ۱۵).

ژباړه : الله هغه ذات دی چې : ځمکه یې ستاسې په واک درکړې ده ، نو په کونجونو او څنډو کې یې وګرځئ او د الله روزي وخورئ او بیرته همغه ته مو ورتګ دی.

ب) :د الله تعالی تقوا ، د اسلامي شریعت د احکامو عملي کول او د ناروا کارونو څخه ځان ساتل ، لقوله سبحانه وتعالی :[وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا * وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لا يَحْتَسِبُ] (الطلاق: ۲، ۳).

ژباړه : او څوک چې د الله څخه ووېرېږي (الله) ور ته (د ستونزو څخه) د وتلو لار جوړوي ، او هغه ته د داسې لارې نه رزق ورکوي چې (په خپله) گمان نه کوي.

مطلب دا چې هر کس د الله تعالی تقوا اختیار کړه هغه ته به مشکلات او سختۍ آسانه کړي او همدارنگه د رزق طلب به ورته آسانه کړي او د داسې لارې به رزق ورکوي چې د ده گمان نه وي یعنې هغه طرف به یې په پلان کې هیڅ نه وي.

ت) :ډیر ډیر استغفار کول، لکه څنگه چې الله تعالی د خپل رسول او نبي نوح علیه السلام په اړه داسې فرمایي:[فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا * يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا * وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَلْ لَكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَلْ لَكُمْ أَنْهَارًا](نوح: ٩-١٢).

ژباړه : او ورته مې وویل : له خپل رب څخه بښنه وغواړئ بیشکه چې هغه ډیر ښښونکی دی ، هغه به په تاسې له پاسه څخه بارانونه ووروي ، په مالونو او ځامنو سره به مو ملاتړ وکړي باغونه به درکړي او ویالې به درته تاندې کړي.

همدارنگه جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«من لزم الاستغفار جعل الله له من کل هم فرجا ومن کل ضیق مخرجا ورزقه من حیث لا یحتسب» (رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه والبیهقي والحاکم وصححه).

یعنې : چا چې پر ځان باندې استغفار کول لازم کړل ، الله تعالی به ده ته د ټولو سختیو او مصیبتونه څخه د وتلو لارې آسانه کړي او د داسې طرف نه به رزق ورکوي چې د ده گمان نه وي.

ث): یوازې پر الله تعالی باندې توکل کول ، لقوله سبحانه وتعالی : [وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ فَهُوَ حَسْبُهُ](الطلاق: ٣).

ژباړه : او څوک چې پر الله جل جلا له توکل وکړي ده د پاره همدا (الله) کافي دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:«لو أنكم كنتم تَوَكَّلُون على الله حق توكله، لرزقكم كما يرزق الطير تغدو خماصًا وتروح بطانًا» (ابن ماجه ، الترمذی او احمد).

ژباړه : که تاسې پر الله داسې توکل وکړئ چې حق او رښيتنی توکل وي ، نو تاسې ته به داسې زرق درکړي لکه د هوا مرغانو ته يې چې ورکړی دی سهار خالي نسونه او بيگا ډکې گيډې.

چا چې پر الله تعالی توکل وکړ خپل مطلب او مقصد ته به ورسيږي.

ج): - د رزق د حصول او طلب د پاره دعا کول ځکه چې الله تعالی رزاق ذو القوة المتين دی ، لقوله سبحانه وتعالی :[وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ](غافر: ٦٠).

ژباړه : له ما نه وغواړئ څو ستاسې (غوښتنې) قبولې کړم.

د رزق د طلب د پاره داسې دعاگانې کوئ :

يا رزاق ارزقني وأنت خير الرازقين (ای روزي ورکوونکيه ! ما ته روزې راکړه او ته غوره روزي ورکونکی يې).

اللهم إني اسألك رزقا طيبا واسعا (الله ! زه ستا څخه سوال کوم د حلال او پراخه زرق).

اللهم اكفني بحلالك عن حرامك (ای الله ! زما د پاره حلال رزق کافي ورگرځوې او د حرامو مې ته وساتې.

ح): - د الله تعالی حمد او شکر ځکه په هر نعمت کې چې شکر وي د هغه د زيادت سبب گرځي ، لقوله سبحانه وتعالی : [وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ](إبراهيم: ٧).

ژباړه : او هغه وخت را یاد کړئ چې رب مو اعلان وکړ چې که تاسې شکر وکړ نو خامخا به زه لورينه در زياته او که نا شکري مو وکړه نو زما عذاب ډير سخت دی.

**خبرداریٔ :**

انسان په طبیعت کې غنا او مال خوښوي او د فقر نه يې کرکه کيږي ، لکن لږ مال تر ډير مال نه غوره دی ، او دا چې مال له حلالو او حرامو ډير جمع شي آخر به د هغه وارثانو ته پاتې کيږي لکن ځواب به يې دی ورکوي او د ده څخه دا پوښتنه کيږي چې : [من أين اکتسبه وفيم أنفقه] يعنې : مال دې له کومې لارې حاصل کړی ؤ او په څه کې دې لګولی ؤ.

اصلاً د کامیابۍ رزق هغه دی چې حاجت وربانديې رفع شي ، جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

«قد أفلح من أسلم ورزق کفافا وقنعه الله بما آتاه» (رواه أحمد و مسلم و الترمذي و ابن ماجة).

ژباړه : کامیاب دی هغه څوک چې ایمان یې راوړ ، او په قدر د ضرورت ورته رزق ورکړ شو او الله تعالی پرې صبر ورکړ.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : ليس الغنا عن کثرة العرض و لکن الغنى غنى النفس (متفق علیه) .

یعنې : ډير مال او اسبابو لرل ماداري نه ده. اصل مالداري د زړه غنا ده.

د زيات مال د جمع کولو حرص نه دی په کار ځکه د لږ مال حساب ورکول آسانه دي.

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[بَلْ تُؤْثِرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا*وَالآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَى](الأعلى: ١٦، ١٧).

ژباړه : بلکي تاسې خوښوئ ژوند د دنيا (تاسې د دنيا ژوند ته ډيره پاملرنه کوئ) ، حال دا چې اخروي ژوند ډير غوره او تل پاتې دی.

همدارنګه جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«من كانت الدنيا همه، فرق الله عليه أمره وجعل فقره بين عينيه ولم يأته من الدنيا إلا ما كتب له، ومن كانت الآخرة نيته جمع له أمره وجعل غناه في قلبه وأتته الدنيا وهي راغمة» (ابن ماجه او سلسلة الصحيحة).

ژباړه: څوک چې د دنيا په خيال او غم کې وي ، الله (جل جلا له) د ده کار ده ته تيت کړي او د ده په سترګو کې به فقر ځای کړي او دی به بل څه په لاس را نه وړي مګر څه چې ده ته ليکل شوی وي ، او د هر چا چې نيت آخرت وي ، الله (جل جلا له) به د ده کار جوړ کړي او د هغه زړه به غني وګرځوي او دنيا به د ده طرف ته راځي.

خ) - انفاق فی سبيل الله ، خپل مال د الله تعالی په لاره کې لګول (زکات ، صدقات) ورکول ، ځکه په کوم مال کې چې انفاق وي په هغه کې برکت وي له بلاؤ او آفاتو نه په امن وي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ، إِلاَّ مَلَكَانِ يَنْزِلاَنِ، فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا، وَيَقُولُ الآخَرُ: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا» (بخاری: ۱۴۴۲).

يعنې : هره ورځ دوې ملائکې ځمکې ته را کوزيږي. يوه يې وايي : ای الله (جل جلا له) ! څوک چې ستا په لار کې انفاق کوي هغې ته بدله ورکړي ، او بله يې وايي : ای الله (جل جلا له) ! څوک چې ستا په لار کې انفاق (خرچ) نه کوي د هغه مال هلاک کړه ، يعنې د هغې مال تلف کړې.

## دوهم فصل
## د معاملاتو او تجارت شرعي بنسټونه

د ټولو معاملاتو او په خاص ډول تجارت د پاره شرعي بنسټونه دي که په معاملاتوکې دغه بنسټونه یا ضوابت موجود ؤ صحي دی او که نه وو حرام بلل کیږي چې دا بنسټونه په لاندې ډل دي :

**اول بنسټ جنس یا مال او قیمت به حلال وي :**

جنس یا مال او همدارنګه د مال قیمت به شرعاً حلال وي حرام به نه وي لکه :

١- د مردار حیوان غوښه حرامه ده تجارت یې حرام دی ، هغه حیوان چې په شرعي طریقه ذبحه شوی نه وي غوښه یې مرداره ده تجارت یې حرام دی.

٢- ټول نشه لرونکي شیان لکه : شراب او نور او ټول د جسم سست او ضعیف کوونکي مضر شیان لکه (کوکونار یا تریاک ، افیون ، هروئین ، جرس او نور) حرام دي تجارت یې هم حرام دی.

د شرابو په لعنت او ګناه کې لس کسان شامل دي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:«لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ وَشَارِبَهَا وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا وَمُبْتَاعَهَا وَعَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ» (ابوداود او سلسلة صحيحة ٢٣٨).

یعنې : الله تعالی لعنت کړی دی په شرابخور ، ساقي (کوم چې د څښلو د پاره شراب برابروي) ، د شرابو خرڅونکی او اخیسونکی، د شرابو جوړونکی او د شرابو نقل کوونکی او حمل کوونکی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«إن الله إذا حرم شيئا حرم ثمنه» (رواه ابن ابی شبیه ، و صحیح الجامع).

ژباړه : یقیناً الله (جل جلا له) چې د کوم شي د حرمت حکم کړی وي د هغې بیع او تجارت هم حرام دی.

دارنگه د کوکنار او چرسو زراعت او تجارت حرام دی ځکه کوم شی چې حرام وي د هغه تجارت هم حرام دی.

۳- ټول زهرجن او مضر شیان چې شرعاً حرام وي ، تجارت یې هم حرام دی.

۴- د نارینه د پاره د سپینو او سرو زرو او ابرېشمي جامې استعمال حرام دی او د داسې څیزونو تجارت کول هم حرام دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«حرم لباس الحریر و الذهب علی ذکور امّتی و احل لاناثهم» (الترمذي ۱۷۲۰ حسن صحیح).

یعنی : د ابریشمو او سرو زرو استعمال زما د امت په سړیو حرام دی او د ښځو لپاره حلال دی.

۵- د موسیقۍ ، گډا او رقص ټول سامانونه حرام تجارت یې حرام دی.

٦- د جاندارو تصویرونه او مجسمې حرام دي تجارت کول یې حرام دي.

۷- د شریعت خلاف فلمونه ، سریالونه او ټول هغه څه چې خلکو ته یې دیني ، اخلاقي او جمسي ضرر رسیږي حرام دي او هر څوک چې د مسلمانانو په مینځ کې فحشاء او منکرات خپروي د فحشاء او منکراتو اسباب واردوي د هغوی د پاره د دردونکي عذاب خبرداریٔ ورکړ شوی دی.

لقوله سبحان وتعالی:[إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ] (النور :۱۹).

ژباړه : کوم کسان چه غواړي د مسلمانانو په ډله کې فحشآء خوره کړي شته دغو (کسانو) ته په دنیا او آخرت کې سخت دردوکی عذاب.

همداسې د ښځینه هغه جامې چې د اسلامي شریعت خلاف وي ، تجارت یې حرام دی .

**دوهم بنسټ خپل منځي رضامندي :**

د معاملاتو دوهم شرعي بنسټ د پېرونكي او پلورنكي تر مينځ خوښي او رضامندي ده په زور او اكراه سره معامله يا اخيستل او خرڅول نه صحي كيږي.

الله سبحانه وتعالى فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ] (النساء ٢٩).

ژباړه : اى مؤمنانو ! په ناحقه سره خپلې شتمنى په خپلو منځونو كې مه خورئ مگر دا چې تجارت وي چې ستاسې په خوښى سره سر ته ورسيږي.

عن أبي سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ رضي الله عنه قَالَ : قال رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : «إِنَّمَا الْبَيْعُ عَنْ تَرَاضٍ» (صحيح ابن ماجه -٢١٨٥).

يعنې : له ابى سعيد الخدرى رضى الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : بيع به د طرفينو په خوښه تر سره كيږي (كه د كوم طرف خوښه نه وي بيع نه صحي كيږي).

**دريم بنسټ د ظلم حرمت :**

د الله تعالى له طرفه د ټولو پيغمبرانو او آسماني كتابونه د نزول يو هدف په ځمكه كې د عدل قايمول او د ظلم مخنيوى دى :

الله تبارك وتعالى فرمايي :[لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ] (الحديد ٢٥).

ژباړه : يقيناً چې مونږ خپل پيغمبران له خپلو روښانه او څرگندو هداياتو سره وليږل او له هغوى سره مو كتاب او تله نازل كړي ۇ تر څو پرخلكو كې عدل قايم شي.

په ظلم او نا حقه سره د هيڅ چا مال اخيستل جايز نه دي :

[وَلا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ ](الاعراف ٨٥).

يعنې :خلکو ته د دوی شیان مه کموئ.

و قوله سبحانه و تعالی:[وَلاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ..] (البقره ۱۸۸)

يعنې :په خپلو مينځو کې په ناحقه يو د بل مال مه خورئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«کل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه» (أخرجه المسلم).

يعنې : هر مسلمان ته د بل مسلمان وينه ، مال ، آبرو او عزت حرام دي.

او فرمايي : «لا يحل مال امرئ مسلم إلا عن طيب نفس» (أخرجه أحمد والدارقطني والبيهقي وهو حديث صحيح).

يعنې : د مسلمان مال حرام دی مګر دا چې هغه اجازه وکړي.

**ځلورم بنسټ ، دين ، عقل او سر مال ته به ضرر نه وي :**

داسې معاملات چې په هغه کې دين ته خطر وي ، مثلاً د لمونځ د ترک سبب ګرځي ، په کوم کفري هيواد کې تجارت کول چې هلته د روژې نيولو څخه منع کوي او يا د دين د نورو احکام د ضايع کېدو خطر وي ، يا د عقل سر او مال خطر وي داسې معاملات او تجارت جايز نه دی.

لقوله سبحانه وتعالی :[رِجَالٌ لَا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ](سورة النور الآية ۳۷).

ژباړه : هسې سړي يې ثنا او صفت وايي چې تجارت او راکړه ورکړه يې د الله له يادولو د لمانځه له ودرولو ، د زکات له ورکولو څخه نه بې پروا کوي له هغې ورځې نه ډاريږي چې زړونه پکې اوړي را اوړي او سترګې ړدې خيږي.

**پنځم : په معاملاتو کې غُرر منع دی :**

غُرر داسې بيع ته وايي چې په هغه کې د مال يا نرخ کوم يو مقدار او اندازه نه وي معلومه لکه : د حيوان په ګېډه کې د ښاروي پلورل ، يا په سيند کې ماهيانو خرڅول او يا په هوا کې د مرغان خرڅول او داسې نور.

داسې بيع چې مقدار او نرخ يې نا معلوم وي منع ده ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه څخه منع فرمايلي ده :«نهى عن بيع الغرر » (رواه مسلم).

المعاملات المعاصرة ليکي :

**غرر په لاندې دوو شرطونو حرام دی :**

١- که غرر يا اټکل زيات ؤ حرام او که لږ وو نو د بيع د صحت د پاره تاوان نه رسوي ، لکه : په حمام کې غُسل ځکه په دې کې غرر دی په قد او جسم کې فرق وي ټول يو شان اوبه نه مصرفوي بلکي ځينې کمې او ځينې زياتې اوبه مصرفوي.

يا د يوې ورځې او دوو ورځو د پاره د موټر کرايه کول چې په دې کې هم د وزن ، د سپرلۍ د شمير او فاصلې فرق وي.

چې په دې کې هم غُرر شته مګر د آسانۍ د پاره په شريعت کې عفوه دی.

٢- د عامه ضرورت په وجه غُرر عفوه دی، لکه : د پخېدو او رسېدو مخکې د ميوجاتو خرڅول څخه په شريعت کې منع شوې ده مګر که ځينې ميوه جات رسېدلي وي او ځينې نه وي رسېدلې که د باغ مالک د ټولو ميوه جاتو رسېدلو ته انتظار باسي ميوه جات په صحي شکل مارکيټ ته نه رسيږي او له مينځه ځي نو په دې صورت کې هم د ضرورت په وجه جايز دی (المعاملات المالية المعاصرة : ص٧ ) .

**شپږم بنسټ ، عقل او تميز :**

د تجارتي معاملې د عقد ترلو لپاره عقل او تميز هم شرط بلل کيږي ، يعنې د ليونې سره د بيع عقد نشي کيدای همدارنګه د داسې ماشوم سره چې په ګټه او تاوان نه پوهيږي تجارتي معامله شرعاً جواز نه لري.

مگر کوم ماشوم چې بلوغ ته نه وي رسيدلی مگر عاقل او په معامله پوه وي د هغه سره معامله کول جايز دي.

أن يكون العاقد عاقلاً أي مميزاً، فلا ينعقد بيع المجنون والصبي غير العاقل.ولا يشترط البلوغ عند الحنفية، فيصح تصرف الصبي المميز (حايشه ابن عابدين).

**اوم بنسټ سود حرام دی :**

**د سود تعريف :**

سود په لغت کې زياتوالي او گټې ته وايي او په شرعي اصطلاح کې سود عبارت له اضافه مال اخيستلو څخه دی چې په مقابل کې يې عوض نه وي په داسې ډول چې معامله د مال په مال سره وي (هدايه ج ٣ ص ٦١).

**د سود ډولونه :**

سود  په دوه ډوله دی :

١- ربا النسيئة (د پور سود).

٢- ربا الفضل (د زيات اخيستلو) سود.

دواړه ډوله حرام سخته هلاکوونکی گناه ده چه سختې خطرناکی پايلی لري.

**١- دپور يا قرض سود :**

د پور سود هغه سود دی چه څوک چاته پيسی پور ورکړي له هغه څخه زياتی پيسې واخلي يا د مودې په تيريدلو گټه ورڅخه اخلی مثلاً يو کس چا ته زر روپۍ نغدې ورکوي يو کال وروسته د هغه څخه يونيم زر روپۍ اخلي.

جاء في الموسوعة الفقهية :

ربا النسيئة: وهو الزيادة التي يأخذها البائع من المشتري مقابل التأجيل كأن يعطيه ألفاً نقداً على أن يرده عليه بعد سنة ألفاً ومائة مثلاً.

دا ډول سود خطرناک ترین سود دی ځکه چې ضرر یې زیات دی.

الله سبحانه وتعالى فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافاً مُضَاعَفَةً وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] (آل عمران/١٣٠).

ژباړه : ای مؤمنانو ! څو څنده سود مه خورئ له الله څخه وډار شئ کیدای شي چې خلاصون به مو په برخه شي.

په نن عصر کې د بانک سود همدا ډول سود دی چه بانک د قرضدار په مثال وي چه په بانک کی د پیسو جمع کوونکي ته د مودې یا مهلت له مخی ګټه ورکوي او یا خپله بانک نورو ته سودي قرضونه ورکوي او له هغوی څخه په ټاکلې فیصدی ګټه اخلي ، دا همغه د جاهلیت د وخت سود ته ورته سود دی چې په کفري نړۍ کې له همغه وخته په میراث پاتې دی ، له بده مرغه چې اوس په اسلامي امت کې د خرېدلو په درشل کې دی.

مسلمانان باید دې ستر اقتصادی ناولي توفان ته کلک متوجه وي ځکه چې دغه ناولی بازار هم د سړي پانګه له مینځه وړي او هم به په آخرت کې له سخت عذاب سره مخ کیږي.

**٢-د زيات اخيستلو سود :**

په راکړه ورکړه یا بیع کې سود هغه سود دی چې نغدې روپۍ په نغدو باندې چې جنس یې یو وي مثلاً افغانۍ په افغانۍ په زیادت سره تبادله شي یا د وزن او پیمانې وړ مال چه له یوه جنس څخه وي په زیادت سره تبادله شي او لاس په لاس نه وی.

جاء في الموسوعة الفقهية : ربا الفضل: وهو بيع النقود بالنقود أو الطعام بالطعام مع الزيادة.

ددې ډول سود د حرمت دلیل لاندې حدیث شریف دی :

عن عُبادَةَ بنِ الصّامِتِ قَال قَال رسول الله صلي الله عليه وسلم «اَلذَّهَبُ بِاالذّهَبِ وَالفِضّةُ بِاالفِضّةِ وَالبرُّ بِاالبرِّ وَالشَّعيرُ بِاالشَّعِرِ وَالتَّمَرُ بِاالتَّمَرِ وَالمِلحُ بِاالملحِ مِثلاً بِمِثلٍ سَوَاءً بِسوَاءٍ يَداً بِيداٍ فَاِذَا ختَلَفَت هذِهِ الاَجنَاسُ فَبيعُوا كَيفَ شِءتُم اِذاَ كَانَ يداً بِيَدٍ» (رواه المسلم).

ژباړه : له عباده بن صامت رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایلي : سره زر په سرو زرو ، سپین زر په سپینو زرو ،غنم په غنمو ،وربشې په وربشو، خرما په خرما ،مالګه په مالګه په بدل کی ده – یو شان برابر او لاس په لاس ، اوهر کله چه جنسونه سره مختلف وي نوڅنګه مو چه خوښه وي خرڅوئ ،په شرط ددې چه لاس په لاس وي.

یعنې: هغه مواد چه په جنس کی سره یوشان وی دتول او پیمانې وړ وي زیادت پکې حرام دی او راکړه ورکړه به لاس په لاس وي لکه غنم په غنمو که د یوه لوری غنم خراب هم وی نو زیادت پکې حرام دی.

او که اجناس سره فرق ولري لکه غنم په وربشو نو د دواړو طرفو په خوښه او موافقه زیادت پکی رواه دی ولی مهلت پکی حرام دی لاس په لاس به وي.

د امام ابوحنیفه په نزد علاوه له دغو شپږګونو موادو کوم چه په حدیث شریف کی ذکر شول نور مواد چه د وزن او پیمانې وړ وي له یوه جنسه وي زیادت پکې حرام دی لاس په لاس به وي.

او که د تول او پیمانی وړ هم نه وي په جنس کی هم سره برابر نه وي نو بیا زیادت او مهلت دواړه پکې رواه دي چې د دواړو طرفو په خوښه وي.

په نغدو پیسو کې سود داسې دی چې یو کس بل چا ته سلګون نوټ ورکړي او په مقابل یې له هغه څخه یوسل او لس افغانۍ لسګون نوټونه واخلي دغه لس افغانۍ زیاتوالی سود دی ځکه د نوټ جنس یو شان دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:«ولا تبيعوا الورِق بالورِق إلاَّ مِثلاً بمِثل...» (رواه البخاري -٢١٧٧ و مسلم –١٥٨٤).

ژباړه : سپین زر به په سپینو زرو (نوټونه به په نوټونو) مه تبادله کوئ مگر دا چې یو شان وي او مساوي وي.

**د سود سزا :**

سود خوړل ډيره لويه گناه ده الله (جل جلا له) د سود خورو پر وړاندې د جنگ اعلان کړی دی.

فإن الله تعالی يقول:[ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ * فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللهِ وَرَسُولِهِ ](البقرة:٢٧٩-٢٧٨).

ژباړه : ای مؤمنانو ! له الله (جل جلا له) نه ووېرېږئ ، که په رښتيا مؤمنان ياست کوم سود مو چې پر خلکو پاتې دی هغه پرېږدئ ، نو که (دا کار) مو و نه کړ (سود خوړل مو پرې نه ښودل) د الله تعالی او د هغه د رسول الله صلی الله عليه وسلم له خوا جگړې ته چمتو شئ.

په حديث شريف کې راغلي دي چې :

«دِرْهَمٌ رِبًا يَأْكُلُهُ الرَّجُلُ وَهُوَ يَعْلَمُ أَشَدُّ مِنْ سِتَّةٍ وَثَلَاثِينَ زَنْيَةً» (رواه أحمد -٢١٤٥٠، و السلسلة الصحيحة -١٠٣٣ وقال المنذري والهيثمي : رجاله رجال الصحيح).

يعنې : د سود يو درهم چې کوم څوک خوري او دی ورباندې پوه وي (چې دا سود دی) د ٣٦ زناؤ څخه لويه او سخته گناه ده.

همدارنگه په بل حديث شريف کې راغلي دي : چې سود خوړل اويا درجې لري کمه درجه يې داسې ده لکه د خپلې مور سره زنا کول

وقال أيضاً:«الرِّبَا سَبْعُونَ حُوبًا أَيْسَرُهَا أَنْ يَنْكِحَ الرَّجُلُ أُمَّهُ» (رواه ابن ماجه -٢٢٧٤، وصححه الألباني في صحيح ابن ماجه ، وقال المنذري : إسناده صحيح أو حسن).

او حال دا چې زنا د قتل نه وروسته لويه گناه ده :

لقوله سبحانه وتعالى:[وَلا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلا بِالْحَقِّ وَلا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ، يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا ] (الفرقان ٦٩-٦٨).

ژباړه : او څوک نه وژني هغه چې حرام کړی الله مگر په حق سره ، او نه کوي زنا او څوک چې دا کار وکړي نو هغه ښکیل شو په گناه کې دوه چنده به وي هغه لره عذاب په ورځ د قیامت او پروت به وي په هغه عذاب کې سپک شوی.

سود خوړل اصلاً گټه نه ده بلکې د خپلې پانگې تباهي ده.

لقوله سبحانه وتعالى:[يَمْحَقُ اللَّهُ الرِّبَا وَيُرْبِي الصَّدَقَاتِ وَاللَّهُ لا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ ] (البقرة :٢٧٦).

ژباړه : الله سود له مینځه وړي او خیراتونه زیاتوي او الله نا شکره گناهکار نه خوښوي.

**د سود په اړه څو مسائل:**

**سود خور ته د خور لور په نکاح ورکول جایز دي ؟**

سلامونه مې ومنئ زما پوښتنه په دې ډول ده که چېرې یو شخص یو سود خور سړي ته خپله خور یا هم لور ورکړي یا یې ځنې وکړي ایا دا کار د اسلام له نظره جواز لري که نه ؟

ستاسو د کامیابی په هیله

محمدهارون علمزوی

ځواب:

د سودخور یا کوم بل فاسق څخه د خور ، لور کول باک نه لري جایز دي (کفایت المفتي ج ۱ ص ۳۲۳)

لکن دا چې سود خور ته د خور ، لور په نکاح ورکول څه حکم لري ؟ په دې اړه د فتاوی معاصر الاسلام سوال جواب څخه يوې ښځې پوښتنه کړې ده چې زه سودخور سړی د نکاح د پاره قبلولای شم ؟

په ځواب کې داسې ليکي :سود د عظيمو گناهونو څخه لويه گناه ده ، سود ورکوونکی او اخيستونکی دواړه ملعونين دي ، له بده مرغه چې نن عصر کې په دغه گناه ډير خلک اخته دي.

که سودخور نصيحت قبول نه کړي او سود ترک نه کړي نو تا لره مو نصيحت دا دی چې هغه د خاوند په توگه مه قبلوه ، لکن که هغه توبه وباسي باک نه لري ، تاسې د هغه سره په صادقانه توبه کې مدد وکړئ.

عربي متن يې داسې دی :

الربا من كبائر الذنوب وآكل الربا وموكله كلاهما ملعونان ، ولهما الإثم نفسه ، فالآكل هو الذي أخذ ممن أقرضه زيادة على ماله ، والموكل هو الذي اقترض ذلك المال.

\وقد وقع كثيرون في هذه المعصية – وللأسف.

ثانياً:

بخصوص تقدم ذلك الرجل لكِ : فإن أمره يختلف باختلاف حاله ، هل تعامله بالربا سيستمر بعد الزواج ؟ أم هو نادم وتائب من ذلك ؟

فإن كان الأول : فلا ننصحك بقبوله زوجاً ؛ لأنه مصر على كبيرة من كبائر الذنوب.

وإن كان حاله الثاني : فلا حرج من قبوله زوجاً ، ويجب إعانته على التوبة الصادقة.والله أعلم

الإسلام سؤال وجواب

**د سود خور سره په تجارت کې شراکت جايز دى ؟**

تاسې ته سلامونه او نيکى هيلى وړاندې کوم : پس له سلامه زه يوه پوښتنه لرم که چېرته په کفري هيواد کې يو مسلمان دکافر سره په تجارت کاروبار کې شريک شي او هغه کافر سود خوري نو د مسلمان لپاره دا کار جايز دى؟

پاينده محمد صافى

ځواب:

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

د سود خور سره په تجارت او سوادګرۍ کې شراکت جايز نه دى که کافر وي يا مسلمان ځکه د بيع او تجارت د صحت يو شرط دا دى چې په معامله کې به سودي لين دين نه وي.

جاء فى الفقه التجار المسلم :

لا يجوز للمسلم أن يساهم في شركات تتعامل بالربا أخذاً وإعطاءً كما هو حال كثير من الشركات المساهمة التي ينص في أنظمتها على أن من موارد الشركة الإقراض والاقتراض بالربا.

والنصوص الشرعية من كتاب الله وسنة رسوله – صلى الله عليه وسلم – صريحة في تحريم الربا تحريماً قاطعاً لا شك فيه. ومن المسلَّم به عند أهل العلم أن فوائد البنوك هي من الربا المحرم (فقه التجار المسلم ١٣١/١).

و جاء في المعاملات المالية المعاصرة :

هذا وفي حالة توافر شركات مساهمة تسد الحاجة وتلتزم بعدم التعامل بالربا أخذاً وإعطاءً يجب على المسلمين عدم التعامل مع الشركات المساهمة التي تقترض بالربا عند الحاجة وتودع أموالها بفائدة. (المعاملات المالية المعاصرة ص ١٧٠.

ژباړه : د مسلمان لپاره جايزه نه ده چې د داسې شرکت سره شريک شي کوم چې تعامل يې په سود سره وي سود اخلي او يا يې ورکوي ، لکه څنګه چې نن عصر د ډيرو شرکتونو همدا حال دی چې معاملات يې په سود دي.سود د قرآن او سنتو په صريحو نصوصو حرام دی او په دې کې څه شک نشته او د اهل علم په نزد بانکي ګټه سود دی.

همدارنګه معاملات المعاصرة ليکي :

دا حال اوس د ډيرو شرکتونو دی کوم چې د ضرورت پر مهال سودي معاملات کوي سود اخلي او يا يې ورکوي ، مسلمانانو لپاره جايز نه ده چې په داسې شرکتونو کې سهم واخلي کوم چې د ضرورت په وخت کې سودي قرض اخلي او يا خپل مالونه د ګټې لپاره هغوی ته سپاري.

و الله سبحانه و تعالی اعلم

**د سود خور مال او پيسې په جومات کې لګول جايز دي ؟**

سلامونه اونيکې هيلې امابعد که يو څوک په چا خبر وي چي سود خور دی او د سود خورله خوا جومات ته فرش اخيسل شوی وي نو په داسې فرش او جومات کي لمونځ صحيح کيږي او که نه ؟

نقيب الله

**ځواب:**

که چېرې دا څرګنده شي چې آمد يې ټول د سود څخه دی نو دا مال خبيث دی د خبيث مال لګول په جومات کې جائز نه دی ، په داسې فرش چې په حرامو پيسو اخيستل شوی وي لمونځ کول مکروه دی (کفايت المفتي ج ۳ ص ۱۹۱).

اکل الربا و کاسب الحرام اهدی اليه او اضافة و غالب ماله حرام لا يقبل و لايکل مالم يخبره ان ذالک المال اصله حلال (هنديه ۳۴۳/۵ – کفايت المفتی ج ۹ ص ۱۰۴)

په حديث شريف کې راځي: وَلا يَقْبَلُ اللَّهُ إِلاَّ الطَّيِّبَ (نه قبلوي الله تعالى مگر يواځې پاک مال)

جاء في الدرمحتار: اما لو انفق في ذالک مالاً خبيث و ما لا سببه الخبيث و الطيب فيکره (درالمحتار باب مايفسد الصلاة وما يکره فيها ١/ ٦٨٥ سعيد).

لمونځ نه فاسدوي مگر د لمانځه ثواب کميږي.

**د سود څخه توبه :**

الله سبحانه وتعالى خپلو ياغي او سرکشه بنده گانو ته په ډيره مهربانۍ سره خطاب کوي چې :

[يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لاَ تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ] (الزمر ٥٣)

ژباړه : اى زما بنده گانو! کومو کسانو چه پر خپلو ځانونو تيرى کړى دى د الله له رحمت څخه مه ناهيلې کيږى يقينًا الله ټولى گناوې ښښي هغه خو ښښونکى اومهربان دى.

مؤمنانو ته يې په توبه کولو حکم کړى دى :

[وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] (٣١ النور)

مؤمنانو! تاسى ټول د خپلو گناهونو نه الله تعالى ته توبه وباسې ددي دپاره چې کامياب شئ .

الله سبحانه وتعالى د بنده په رجوع او توبه ډير خوشحاليږي :

وعن أبي حمزةَ أنسِ بنِ مالكٍ الأنصاريّ – خادِمِ رسولِ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم : «للهُ أفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ مِنْ أَحَدِكُمْ سَقَطَ عَلَى بَعِيرِهِ وقد أضلَّهُ في أرضٍ فَلاةٍ» (متفق عليه).

له ابي حمزه انس بن مالک انصارى رضى الله عنه خادم رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت دى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :چه

د یوه کس نه په یوه دښته یا صحرا کې خپل اوښ ورک شوی وي او هغه پیدا شي نو دغه کس به څومره خوشحالیږي – بس الله تعالی ددی نه هم زیات د خپل بنده په توبه ویستلو خوشحالیږي.

هغه کسان چې قصداً یا د خطا او ناپوهۍ له وجې سود خوري یا سود ورکوي د الله سبحانه وتعالی څخه دې ووېرېږي په دې لږ ګټه باندې خپله پانګه مه بربادوئ او په دې لږه ګټه باندې آخرت مه بربادوئ ځکه د سود خورو د پاره ډیر سخت عذاب دی.

نور توبه وباسئ او د الله سبحانه وتعالی پر وړاندې له جنګ کولو څخه لاس واخلئ ، اي عاجزه بنده ! د الله تعالی نیول ډیر سخت دي.

**توبه او د سود څخه خلاصون :**

کله مو چې د سود څخه په کلکه صادقانه توبه وېستله خپله اصلي پانګه مو واخلئ او سود یې مه اخلئ.

کچېرې مو مخکې سود خوړلی وي د سود د ګناه څخه د خلاصون په نیت نه د صدقې په نیت به هغه پر مسکینانو او فقیرانو وویشي.

لا يجوز لك بأي حال امتلاك الفوائد الربوية، والانتفاع بها على أي وجه من الوجوه، ويجب الإسراع في التخلص منها وصرفها إلى مصالح المسلمين المختلفة، وليس لك ثواب الصدقة في ذلك، وإنما تثاب من ناحيتين أخريين:

الأولى : التخلص من المال الحرام، والقذف به بعيداً عنك، ليبقى مالك حلالاً طاهراً، وحياتك منزهة عن هذا الحرام.

الثانية: أنك بهذا الفعل كنت وسيطاً في نقل المال " الفوائد الربوية " من المصرف (البنك) إلى جيوب الفقراء، خاصة إذا كان المصرف يتولاه جهة غير مسلمة، فبهذا تكون قد ساهمت في انتزاع هذا المال من أيدي غير مسلمة وجعلها في قبضة مصالح المسلمين. (المجلس الاسلامی لأفتاء – فتاوي البلدالحرام)

(ستا لپاره په هيڅ صورت روا نه ده چې د سود ګټه واخلې او د هغه څخه په کومه طريقه استفاده وکړې ، پر تا واجبه ده چې هغه د ګناه څخه د خلاصون په نيت د مسلمانانو په مصالحو ولګوې په دې کې تا ته د صدقې ثواب نشته بلکي دوه مقصده دي :

اول : د حرام مال څخه خلاصون او د حلال مال پاتې کېدل.

دوهم : د سودي بانک د ګټې پر ځای د فقيرانو جيبونو ته د ګټې انتقال).

جاء في "الموسوعة الفقهية" (٢٤٨/٢٣) :

" المال الحرام كالمأخوذ غضبا أو سرقة أو رشوة أو ربا أو نحو ذلك ليس مملوكا لمن هو بيده , فلا تجب عليه زكاته ; لأن الزكاة تمليك , وغير المالك لا يكون منه تمليك ; ولأن الزكاة تطهر المزكي وتطهر المال المزكى لقوله تعالى : (خذ من أموالهم صدقة تطهرهم وتزكيهم بها) وقال النبي صلى الله عليه وسلم: (لا يقبل الله صدقة من غلول).

والمال الحرام كله خبث لا يطهر.

والواجب في المال الحرام رده إلى أصحابه إن أمكن معرفتهم وإلا وجب إخراجه كله عن ملكه على سبيل التخلص منه لا على سبيل التصدق به , وهذا متفق عليه بين أصحاب المذاهب".

(حرام مال لکه غصب ، سود ، رشوت او نور د چا ملکيت نشي کيدای او په هغه کې زکات واجب نه دی ځکه زکات په هغه څه کې واجب وي چې څه د چا په ملکيت کې وي ، ځکه زکات د زکات ورکونکي د پاره پاکې ده ، الله تعالی فرمايي : د دوی له مالونو څخه صدقه (زکات) واخله څو دوی د هغې (صدقې) له مخې پاک او برکتي کړې.

او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :الله د خبيث مال صدقه نه قبلوي.

نو واجب دی چې حرام مال به سړی د هغوی څښتنانو ته وسپاري کچېرې د هغوی پېژندل ممکن وي او که ممکن نه وي نو د حرام مال څخه د خلاصون په نیت نه د صدقې په نیت به دغه مال په مستحقو کسان وویشي دا قول د مذاهبو تر مینځ متفق علیه دی.

او که مو توبه ونه ایستله نو بیا د سخت دردونکي عذاب او خطرناکو پایلو لپاره خپل ځانونه چمتو کړئ ، دا دوې ورځې چړچې او عیش به داسې په منډه در باندې تېرې شي چې هیڅ به ورباندې پوه نشئ.

لقوله سبحانه وتعالی :

[فَإِنْ يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَهُمْ وَإِنْ يَتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآَخِرَةِ وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ] (التوبة: ۷۴).

ژباړه : (اوس) که دوی توبه وکړي ، دا به دوی ته ښه وي او که مخ واړوي الله (جل جلا له) به دوی په دنیا او آخرت کې په دردناک عذاب سره وکړوي او دوی ته به د ځمکې پر مخ نه کوم دوست وي او نه هم مرستندوی.

اوم بنسټ چې د سود د حرمت بحث وو په همدې ځای پای ته ورسید .

**آتم بنسټ ، په معاملاتو کې جواري یا قمار حرام دی :**

په اسلامي معاملاتو او تجارت کې آتم بنسټ دا دی چې په راکړه ورکړه کې د جواري یا قمار لین دین او معامله حرامه ده.

**د جواري یا قمار تعریف :**

جواري چې په عربي کې ورته (مَیْسَرة) او (القمار) وایي. میسر په لغت کې ممکن او آساني او په آسانۍ سره لاس ته راوړلو ته وایي.

قمار د قمر له لفظ څخه اخیستل شوی دی قمر سپوږمۍ ته وایي ځکه سپوږمۍ کله وړه او کله لویه وي په قمار کې هم کله گټه او کله تاوان یعنې برد او باخت وي.

په اصطلاح کې هر هغه معامله که په بازۍ لګولو، شرط لګولو یا د بخت او اتفاق پر بنا وي چه ګټه او تاوان یې مبهم او نامعلوم وي هغي ته قمار او میسر وایي.

**د قمار حرمت :**

د اسلام مقدس دین چه سراسر دعدل او انصاف دین دی ، د اقتصادي نظام لپاره هم دخاص حدودو عدل او انصاف دیوه خاص نظام درلودنکی دی .

اسلام داسې ظلم کله رواه ګڼلی شي چه په هغې کې یو کس د غربت له پاسه نور هم غریب پاتې شي او بل کس بغیر له کوم عمل او خوارۍ کښلو نه قاروني خزانه تر لاسه کړي او یا د غریبانو او فقیرانو د جیبونو نه رقم جمع کړ شي او یو کس بغیر له شرعي وجې نه په اتفاقي ډول د هغه مالک جوړ شي.

قمار داسې ظالمانه جرم دی د یو کس په تاوان کې د بل کس ګټه وي.

قمار سخت ناکاره عمل دی چه په قرآنکریم کې په سختو ټکو حرام شوی دی او د شیطان عمل بلل شوی دی.

لقوله سبحانه تعالی:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] (۹۰سورة المائدة).

ژباړه : ای مؤمنانو! یقیناً چه شراب او قمار او بتان او غشی(د فال ، دا ځلور واړه ټول) پلیت دي له کاره د شیطان څخه دي نو ځان وساتئ تاسې له دې څخه لپاره ددې چه نجات ومومئ.

په پورته آیت شریف کې لاندې ټکو ته اشاره شوې ده :

اول : دې څیزونو ته رجس (ګنده ګي) وفرمائل شوه چه ددې نه باید هر سالم عقل خپله اجتناب وکړي.

دوهم : دا کار د شیطان عمل دی.

دريم: دا چې د شرابو او جواري حرمت دبت پرستۍ سره جمع کړ شو.

دجاهليت په زمانه کې د خلکو تر مينځ د قمار کاربار ډير زيات ؤ ، خلک ددې عمل دومره عاشقان وو چه ډير کرته به يې خپل بال بچ او خپلې ښځې هم پرې داوه کولې ، کله چې د اسلام سپېڅلی دين مينځ راغی پر يوه ځل يې د قمار ټول ډولونه حرام اعلان کړل.

په دې قسم معاملو کې د بيع مزابنه ،محاقله ،ملامسه ،منابذه او حصاده او نور صورتونه موجود وو ، چې بحث يې وروسته را روان دی .

خو اوس عصر کې د قمار څه ډولونه له پخوا پاتې دي ځيني نور اوس په نويو شکلونو را پيدا شوي دی لکه :

لاټري، بخت حساب او په سربسته ډبليو کې جايزې چه په يوه ډبی کې هيڅ يا کم شی وي او په بل ډبي کې جايزه وي او داسې نور دي.

دلاټری ټکټ اخيستل يا دبخت لپاره ثبت نام خو د خلکو هدف نه وي بلکې هدف يې د جايزې وتل وي.

په دې کې ګټه او توان نامعلوم وي ، د ډيرو خلکو پيسې جمع کيږي او هغه د بخت او اتفاق په ډول بغير له کوم عمل او خوارۍ يو کس ته حواله کيږی چه همدا قمار دی.

د قمار ټول نوي ډولونه مولانا مفتی محمد شفيع صاحب په خپل کتاب جواهر الفقه کې په پوره وضاحت سره جلاجلا بيان کړي دي او همدارنګه د هند د ندوة العلماء دارالعلوم فاضل مولانا مجيب الله ندوی په خپل کتاب اسلامی فقه کې ښه وضاحت ورکړي دي د نور وضاحت لپاره يې هلته وګورئ.

پخوانی ډولونه يې دبازی لګولو او شرط لګولو لکه د آسونو لوبه،کوتربازي او نورې لوبی چه شرط پکې وي.

كل شيء من القمار فهو من الميسر حتى لعب الصبيان بالجو. (ابن کثیر ۹۱ ج ۳)

یعنی:هرهغه څیز په قمار کې داخل وي – هغه د میسر په حکم کې داخل دی چه دماشومانو په غوزانو یا چهارمغزو وغیره باندی د ګټلو پیللو لوبې کوي هغه هم قمار یا جواري ده.

**بیمه (Insurance) شرعاً څه حکم لري ؟**

پوښتنه: السلام علیکم و رحمة الله و برکاته

زه یوه پوښتنه لرم هغه داسې چې زه په یوه دفتر کې کار کوم او د مؤسیسې کارکوونکي د معاش نه پرته صحي بیمه هم لري چی میدکل انشورنس ورته وایی (Medical Insurance)د هرکارکوونکي دمیاشتني معاش نه یوه اندازه روپی (مثلا ۵۰۰ افغانی) دفتر کټ کوي او دوه چنده دفتر ورسره یوځای کوي (مثلا ۱۰۰۰ افغانی)نو د هرې میاشتې د هر کارمند په سر ۱۵۰۰ افغانۍ د بیمې یو شرکت ته ورکوي نو هرکله چی کوم کارمند مریض شي او یا دوا واخلي نو د دغه مصارفو بیلونه دغه د بیمی شرکت ته استوي او هغه ورته د بیلونو روپۍ ورکوي.

نو په نتیجه کې کیدای شي یو کارمند د خپلې کاري مودې په دوران کې تر هغی زیاتې روپۍد بیمې د شرکت نه واخلي کومې چی دده د وجې نه دبیمې شرکت ته ورکړل شوی دي او یا هم کمې واخلي (مثلا د لسو میاشتو په موده کی ۱۵۰۰۰ افغانۍد بیمې شرکت ته د یوه کارمند له وجې ورکول کیږي خو په دی موده کې کیدایشي یو کارمند د ۲۰۰۰۰ شلو زرو بیل د بیمې شرکت ته واستوي او روپۍ واخلي اویا دکمو روپیو اویایې بیخي وانه خلي داد یوه کارمند په مریضۍ او دهغو په مصارفو پورې اړه لري)نو نتیجه داده کارمند که لږ روپۍ واخستلې که ډیرې د بیلو په مقابل کې او هغه باقي روپۍ د

شرکت شوې که يی لږ واخستی او که ډيرې هغه به شرکت ورکوي.
نو هيله لرم چی داسلامي اصلو او اساساتو په رڼاکې مونږ ته دا واضح کړئ چی دامعامله صحيح ده او کنه او د کومو دلائلو په بنياد او يا په نورو اسلامي هيوادونو کې د دارنکه معاملاتو سره کوم نوعه چلند کيږي.

ستاسو د تفصيلي او مدلل جواب په هيله.په احترام. بلال له کابل نه.

ځواب:

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

بيمه هغه که د ژوند وي ، درملنې وي يا د څيزونو  د ذمه وارۍ بيمه وي حرامه ده ځکه چې دا ډول معاملات په سود ، قمار او دوکې باندې مشتمل وي.

مفتي مولانا کفايت الله دهلوي رحمه الله په اړه ليکي :

د ژوند په بيمه کې سود او توکه ده ځکه که د قسطونو ادا کول ودريږي نو مخکې ادا شوي قسطونه له مينځه ځي او ډوبيږي.

د څيزونو بيمه کول ځکه نا جايز دي چه په دې کې د قمار معامله مينځته راځي.

او د ذمه وارۍ بيمه د نا جايز والی وجه هم قمار دی – حاصل دا چې د بيمې کار او بار په سود ، قمار او دوکې باندې مشتمل دی چې دا ټول حرام دي، لقوله سبحانه تعالی: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] (٩٠سورة المائدة).
[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً وَاتَّقُواْ اللّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] (ال عمران ١٣٠).

(کفايت المفتي ج ٨ ص ٦٢).

**د مکې مکرمې د علمي څيړنو او افتا دايمي ټولنه ليکي :**

ژباړه : بیمه (Insurance) په دې معنی ده چې یو کس هره میاشت یا هر کال د بیمې شرکت ته څه مبلغ ورکوي او د هغه په مقابل کې شرکت دا ضمانت او تعهد کوي چې هر کله څه حادثه مینځته راشي دغه شخص ته به د هغه خساره ور کوي.

په هر حال کې بیمه ور کوونکی د ضرر او تاوان په حال کې وي مګر د بیمې شرکت کله توان کوي او کله ګټه نو هغه معامله چې همیشه د برد باخت په حال کې وي قمار بلل کیږي.

د بیمې ټول هغه ډولونه چې پکې ګټه او تاوان ، د حادثې محل او مقدار مبهم او نا معلوم وي حرام دي په دلیل ددې حدیث شریف ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي:ان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ : «نَهَي عَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ» (مسلم (۱۵۱۳).

یعنې: رسول الله صلی الله علیه وسلم د د اسې بیع چې په هغه کې الغرر (نا څرګندوالی) وي منعه فرمایلې ده.

د علمي څیړنو او افتا دایمي ټولنه (مکة المکرمة) (۳۱۰/۱۵)

همدارنګه فتاوي علماء البلدالحرام لیکي :

د درملنې بیمه (Medical Insurance)) د بیمې یو ډول دی چې د اسلام له نظره حرامه ده.

همدارنګه موقع الاسلام السوال جواب یې په اړه لیکي :

له بده مرغه په نورو اسلامې هیوادونو کې هم د کفارو دې نا وړه عمل نفوذ کړی دی ولی علماؤ یې په اړه کلکه مبارزه کړی ده او د هغې په حرمت کې یې ډیرې لیکنې کړی دي.و الله سبحانه وتعالی اعلم

**د قمار سزا :**

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«مَنْ لَعِبَ بالنَّرْدَ شِيرِ فَكَأَنَّمَاَ صَبَغَ يَدَهُ في لَحْمِ خِنْزِيرٍ ودَمِهِ» (أخرجه المسلم).

یعنې : چا چې د نرد شیر (شطرنج) لوبه وکړه هغه داسې دی لکه د خوګ په غوښه او وینه یې چې لاس ککړ کړی وي.

**ابی موسی اشعری رضی الله عنه له رسول صلی الله علیه وسلم** څخه روایت نقل کړی دی چې هغه فرمایلي دي :«من لعب بالنرد فقد عصی الله **ورسوله**» (موطاء امام مالک و ابوداود).

**یعنې :** څوک چې د شطرنج لوبه کوي پس هغه د الله او د هغه د رسول څخه سرغړونه وکړه.

قمار د الله تعالی د ذکر څخه د غافله کېدو ستر سبب بلل کیږي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي:[وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكاً وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى] (طه ۱۲۴).

ژباړه : او څوک چې زما له یادولو مخ واړوي د هغه لپاره به په دنیا کې تنګ ژوند وي او د قیامت په ورځ به یې ړوند را پاڅوو.

د قماربار سزا تعزیر دی د مسلمانانو امام به هغه ته سزا ټاکي.

جاء في موسوعة الفقهية :

على وليّ الأمر العمل على منع المعاصي, ومنها الميسر, وعليه تعزير من ثبت عليه ذلك, لأنّ التّعزير إنّما يكون في كلّ معصية لا حدّ فيها, ولا كفّارة.

د قمار څخه ګټلی مال خبیث او مردار دی ، د خبیث مال څخه د خلاصون لاره دا ده چې هغه به خپلو مالکانو ته سپاري که دا امکان ونه لري د ګناه څخه د خلاصون په نیت به هغه پر فقیرانو ویشي.

جاء في الموسوعة الفقهية :

ما يكسبه المقامر هو كسب خبيثٌ, وهو من المال الحرام مثل كسب المخادع والمقامر, والواجب في الكسب الخبيث تفريغ الذّمّة منه بردّه إلى أربابه إن علموا وإلّا إلى الفقراء.

**نهم بنسټ ، د احتكار حرمت :**

د اسلامي معاملاتو او تجارت نهم بنسټ دا دی چې په راکړه ورکړه یا بیع کې احتکار حرام دی.

**د احتكار تعریف :**

احتكار دې ته وايي چې د قیمتونو دلوړوالي په هیله د خلکو د ضرورت وړ مواد ذخیره کړي او د سختې اړتیا او ضرورت څخه سوء استفاده وکړي او هغه پر خلکو باندې په لوړ قیمت و پلوري ،او د هغه ضرر عامو خلکو ورسیږي.

**د احتكار حرمت او د هغه ګناه :**

احتکار حرام دی او په اړه یې سخت وعید ذکر شوی دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«من احتكر فهو خاطئ» (المسلم).

یعنې: څوک چې احتکار کوي هغه ګناهکار دی.

بل حدیث شریف کې راځي: «من احتكر على المسلمين طعامهم ؛ ضربه الله بالإفلاس والجذام» (ابن ماجه – عمدة التفسير ١/ ٣٣٤ راوى عمر بن الخطاب باالسناد صحيح).

یعنې: څوک چې پر مسلمانانو باندې د خوراک بندیز او احتکار لګوي ، الله (جل جلا له) به یې د جذام او افلاس په مرضونو ووهي.

وفي المستدرك أنه صلى الله عليه وسلم قال: «المحتكر ملعون»

او په مستدرک کې دا روایت هم راغلی چې محتکر ملعون دی (الله تعالی د رحمت څخه لرې).

**په کومو موادو کې احتکار مينځته راځي :**

د امام ابو يوسف رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد په هر هغو اجناسو کې چې خلکو ته يې ضرر رسيږي احتکار مينځ راځي هغه که د سوخت مواد وي ، لباس وي او حيوانات او غيره.. د اکثرو علماؤ قول همدا دی.

و ذهب أبو يوسف من الحنفيّة إلى أنّ الاحتكار إنما يكون في كلّ ما أضر حبسه، سواء كان في الأقوات أم في غيرها، اعتمادًا على علّة الحكم، وهي الضرر، فكلّ ما سبّب ضررًا فهو احتكار. وهذا أقرب إلى قول مالك. (الفقة الاسلامية).

**احتکار کله مينځه راځي :**

احتكار د لاندې دريو شرطونو په صورت کې مينځته راځي.

اول :دا چې د احتکار جنس د هغه د اهل عيال د يو کال مصرف او تکفل نه زيات وي ، ځکه دا جايز دی چې سړي د خپل کور د خرڅ د پاره د يو کال مواد ذخيره کړي.

دوهم :دا چې د احتکار اجناس په دې نيت ذخيره کړي تر څو قيمتونه لوړ شي او بيا يې په ګران قيمت و پلوري ، او د خلکو د سختې اړتيا او ضرورت څخه سوء استفاده وکړي.

دريم :دا چې احتكار هغه وخت مينځته راځي چې کله خلک احتکار شوي اجناس ته اړتيا ولري لکه خوراکي مواد ، د سون مواد ، پوښاک او نور ..... او هغه اجناس چې خلک هغې ته ضرورت نه لري احتکار نه بلل کيږي ځکه خلکو ته يې ضرر نه رسيږي.

ځینې معاصر علماؤ بل شرط هم ور زیاتوي چې دا ذخیره کول د اجناسو په نرخ باندې تأثیر و نه کړي او په بازار کې د اجناسو قلت را نشي چې دې ډول احتکار ته احتکار قلت وايي :

وفيه يحتكر عدد قليل من المنتجين أو البائعين إنتاج سلعة معينة بحيث يمكنهم التأثير في ارتفاع ثمنها.(مكتبة الاسلامية)

د مطلب خلاصه : هر ډول اجناس چې د نرخونو د لوړوالي په نیت ذخیره شي او خلکو ته یې ضرر رسیږي د ذخېرې په وجه د موادو کموالی او د نرخ جګوالی را مینځته کیږي د احتکار حکم لري، مګر که کوم اجناس خریداري شي او د شدت او ضرر وخت نه وي د بیع او بازار د ښه والی د پاره وساتل شي باک نه لري په شرط ددې چې خلکو ته یې ضرر نه وي په بازار او نرخ څه تأثیر ونه لري.

**په اوس عصر کې د احتکار نوي ډولونه:**

په اوسني اقتصادي بازار کې لاندې درې ډوله عصري او مډرن احتکار رواج لري.

**الف) : شرکت قاضبه :**

په تجارت کې د دوه یا څو کسانو کډون ته ویل کیږي ، داسې چې د هر یوه د پانګې اندازه ټاکلې وي او په هماغه اندازه د ګټې ونډه اخلي.

دا ګډون کونکي د یو خاص تجارتي شي د ټولو پیداوارو او تولیداتو ونډه او حصې پخپله قبضه کې نیسي او د هغې خریداري کوي او بل چا ته د هغه د پیرودلو حق نه وي ، چې له همدې امله د مربوطه تجارتي شي د تولید حد ، اندازه او د نرخ تعین د هغوی په لاس کې وي او پخپله خوښه د هغه نرخ ټاکي او په دې توګه عام خلک لوټ کوي.

دا که هر ډول مواد وي تیل ، خوراکي مواد او نور ، د احتکار ددې مډرن طریقې په وسیله مارکیټ پخپله قبضه کې نیسي چې په همدې وجه شرکت قابضه بلل کیږي.

**ب) ادماج :**

دا د تجارتي وحدت یو شکل دی ، ادماج یو کولو یا یو شی په بل شي کې په هر اړخیز توګه مدغم کولو ته ویل کیږي ، داسې چې د احتکار په عرض د وارېداتو او یا تولیداتو د څو شرکتونو مالیکان پخپل مینځ کې تجارتي وحدت قائم کړي په بېلابېل ډول په تجارتي اجناسو کې ونډه نه لري بلکي ټول خپله پانګه سره ګډوي او تجارتي منابع هم یو شان او مشترک وي.

دوی د څو تجارتي اجناسو ولکه پخپل لاس کې نیسي او د هغه په وسیله د مارکیټ او بازار نرخ د هغوی په واک کې وي.

**ج) د قیمت وحدت :**

د قیمت یوالی داسې چې د څو کمپنیو یا وارېدونکو تجاران په دې باندې متفق شي چې د تجارتي اجناسو نرخ به یو شان ټاکي او د دغه ټاکلي قیمت په ذریعه د مشریانو لوټول کوي چې دا هم د احتکار یوه نوې طریقه ده.

په هر صورت احتکار حرام ګناه کبیره ده ، که په هره طریقه وي او یا په هر څه کې وي.

امام ابو یوسف رحمه الله وایي : کل ما اضر الناس حبسه فهو احتکار. یعنې د هر هغه شي زیرمه کول احتکار دی چې ټولنې او خلکو ته زیان رسوي که څه هم د زرو رایج الوقت سکو او د رختونو زیرمه کول وي ، د امام ابو یوسف قول ته د نړي زیاتره علماؤ ترجیح ورکړی ده.

## دريم فصل
## د معاملاتو تقسيم

**په مجموع کې معاملات په لاندې برخو ويشل شوي دي :**

البيع، القرض، السلم، الحواله، مضاربت، الرهن، الاجاره، الشركة، الكفالة، المساقات و المزارعة، احياء الموات، المسابقة، الهبة، الوقف، الشفعة، اللقطة، الحجر، الغصب او الصلح.

**البيع (اخيستل او خرڅول) :**

بيع په لغت کې د مال تبادله په مال باندې او په اصطلاح کې په رضا او خوښۍ سره د مال تبادله په مال سره.

جاء في موسوعة الفقهية :

البيع لغةً مصدر باع، وهو: مبادلة مال بمال، أو بعبارة أخرى في بعض الكتب: مقابلة شيء بشيء.

أمّا في اصطلاح الفقهاء : فالحنفيّة عرّفوا البيع بالمعنى الأعمّ بمثل تعريفه لغةً بقيد (التّراضي). يعنى : مبادلة مال بمال بالتّراضي. (الموسوعة الفقهية الجزء التاسع– البيع).

(د بيع لغت د باع د مصدر څخه دی چې عبارت ده د مال تبادله په مال سره ، او يا په بل عبارت چې په ځينو کتابونو کې راغلی د د يو شي تبادله په بل شي يا شی د شي په عوض (کې اخيستل) ، په اصطلاح کې د احنافو په نزد : په خوښۍ سره د مال تبادله په مال سره).

**ځنې اصطلاحات :**

**البيع** : د مال تبادله يا د مال خرڅول چې ضد يې الشراء (د مال اخيستل)

**البايع** : خرڅوونکي (تجار يا سوداګر)

**المشتري** : اخیستونکی

**مال** : هر هغه شی چې شرعاً مباح او د استفادې وړ وي مال بلل کیږي.

**د بيع مشروعيت :**

بیع په قرآن سنتو او اجماع سره جایزه ده.

الله سبحانه وتعالی فرمایي : {وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ} (البقرة الآية ٢٧٥).

یعنې: او الله حلاله ګرځولې ده بیع.

او رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: «البیعان بالخیار ما لم یتفرقا».

یعنې : خرڅونکی او اخیستونکې څو پورې چې یو له بله نه وي جلا شوي د معاملی د فسخې کولو اختیار لري.

**د بيع اركان :**

د بیع ارکان د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد ایجاب او قبول دی ، یعنې بیع په ایجاب او قبول سره تر سره کیږي او د ایجاب او قبول لفظ به په ماضي ضیعه سره وي (شرح قدوري).

مګر صاحب المحیط البرهاني حنفي وایي : په ماضي او حال ضیعه هم تړل کیږي.

قال أصحابنا رحمهم الله: کل لفظین بلسان عن التملیك والتملك على صیغة الماضي والحال ینعقد بهما البیع (المحیط).

موسوعة الفقهیة وایي :

بیع د استفهام یا سوالیه په صیغه او همدارنګه د استقبال (راتلونکي وخت) په ضیعه سره نه صحي کیږي.

استفهام لکه : خرڅوې یې ؟ او استقبال صیغه لکه : خرڅ به یې کړم یا سبا ته به یې خرڅ کړم مطلب یې راتلوونکي زمانه وي.

ولا ينعقد البيع إذا كان الإيجاب أو القبول بصيغة الاستفهام، مثل: أتبعيني ؟ أو المضارع المراد به الاستقبال، مثل: سأبيعك، أو أبيعك غداً (الموسوعة الفقهية).

د امام مالک ، امام شافعې او امام احمد په نزد د بیع درې ارکان دي : عاقد، معقود علیه، او صیغة.

**عاقد** : عبارت له بایع او مشتري یا خرڅونکی او اخیستونکي څخه.

**معقود علیه** : عبارت له مال او قیمت څخه.

**صیغه** : عبارت له : ایجاب او قبول څخه.

ایجاب دا چې د مال څښتن ووایي چې خرڅ مې کړل او قبول دې ته وایي چې اخیسونکی ووایي چې وا مې خیستل.

**ایجاب او قبول په دریو طریقو سره جایز دی :**

**الف) د اقرار په وسیله :**

د ژبې د اقرار په وسیله داسې چې څوک دوکاندار ته ووایي : دغه جنس په څو دی دوکاندار ورته ووایي : په دومره افغانۍ دی او خریدار ورته ووایي چې اخلم يې نو بیع وشو او دغه اقرار ته ایجاب او قبول وايی.

**ب) عملي اقرار :**

که په ژبه باندې دواړه لوري اقرار ونه کړي بلکي په عملي ډول اقرار وکړي هم صحي دی مثلاً : د یو جنس نرخ په بازار کې ثابت معلوم وي اخیستونکي دوکاندار ته وویل چې دا جنس راکړه هغه جنس ورکړ او اخیستونکي يې قیمت ادا کړ نو دا ډول اقرار عملي اقرار دی چې په دې سره هم بیع وشو.

**ج) د لیکنې او تحریر اقرار :**

د لیکلو په ذریغه سره هم د معاملې فیصله کول جایز دي داسې چې په صفا الفاظو وي تر څو په آینده کې څه اختلاف پکې را نشي.

موسوعة الفقهية ليكي :

يصحّ التّعاقد بالكتابة بين حاضرين أو باللّفظ من حاضر والكتابة من الآخر. وكذلك ينعقد البيع إذا أوجب العاقد البيع بالكتابة إلى غائب بمثل عبارة: بعتك داري بكذا، أو أرسل بذلك رسولاً فقبل المشتري بعد اطّلاعه على الإيجاب من الكتاب أو الرّسول.

يعنې : د حاضرينو (بايع او مشتري) تر مينځ په ليكلو سره تړون کول صحي کيږي او يا د حاضر کس اقرار او د غايب کس ليک. همدارنگه د ليکلو په ذريعه د غايب کس تړون صحي کيږي مثلاً (داسې ورته وليکي) پر تا مې کور خرڅ کړ ، او يا هغه ته خط ولېږي او مشتري (اخيستونکی) د ايجاب له خبرېدو وروسته هغه قبول کړي.

**د بيع د صحت شرطونه :**

١- دا چې مالک يا د هغه وکيل به موجود ، عاقل او په معامله باندې پوه وي.

٢- اخيستونکی به عاقل او داسې سن ته رسيدلی وي چې په معامله باندې پوه وي.

٣- مال او جنس به شرعاً پاک وي حرام به نه وي ، مجهول او نا معلوم به نه وي جنس او قيمت به دواړه معلوم وي او داسې شی به نه وي چې د هغه قبض يا لاس ته راوړل نا ممکن وي.

۴- **د عقد ضيعه** : يا په بل عبارت ايجاب او قبول به تر سره شوی وي.

۵- **رضايت** : د دواړو طرفونو به خوښه او رضايت به وي که يو طرف نا راضه وي بيع نه صحي کيږي.

٦- په بيع کې به دوام وي بيع به د مؤقت وخت د پاره نه وي لکه: يو مياشت، يو کال او نور. (موسوعة الفقهية – الفقة الاسلامي وادلته علامه وهبة زحيلي).

**د بیع نارواه طریقې او د هغو حکمونه :**

په عام ډول ناجایزې بیعې په درې ډوله دي لکه : بیع باطل ،بیع فاسده او بیع مکروهه.

**۱- بیع باطل :**

د باطلې بیع حکم دا دی چې معامله او استعمال یې ټول حرام دي مثلاً چا د سود کاربار وکړیا یې د شرابو کارخانه جوړه کړه یا یې شراب د بیع لپاره راوړل یا یې د قمار په ذریعه تجارت وکړ څنګه چې دا څیزونه په اسلام کې مال نه ګڼل کیږی نو ځکه دا ټول کار بار حرام او باطل دی او تجارت یې هم باطل دی.

**۲- بیع فاسده :**

بیع فاسده هغه بیع ده چې د بیعې جنس حلال وي مګر په کوم صورت چې هغه خرڅیږي هغه نا جایز وي لکه: د حیوان په پوست کې وړی په دریاب کې ماهیان ، ځکه په دریاب کې ماهیان د هیڅ چا ملک نشي کیدای تر څو چې ښکار شوي نه وي نو ددی وجې نه دابیعه فاسده ده.

**۳- بیع مکروه :**

په مکروه بیعه کې مال هم حلال وي اوکوم شي چې خرڅیږي هغه هم حلال وي مګر په کومه طریقه چې خرڅیږي او ګټه ترې اخستل کیږی هغه نا جایز وي.

مثلاً یو شی له تجار سره په ۱۰ روپۍ قیمت شوي او ددې یقین شته چې تجار راضي شي دوهم سړی راځې هغه یې په یوولس روپۍ غواړي روپۍ یې ورکړې او هغه جنس واخست د هغه مقصد صرف دا وي چې تجار زیاته ګټه وکړي نوموړی جنس یې په ۱۲ روپۍ خرڅ کړ یایې په ۱۱ روپۍ واخست دغه

یوه یا دوې روپۍ کټه د هغه دوهم سړي په وجه تجار ته زیاتې شوي چې دا فعل او دې بیع ته بیع مکروه وايي.

**مسایل**

۱- هغه ګیا او بوټي چه پخپله شنه شوی وي او اوبول شوي نه وي د هیچا ملک نشي کیدای بیع یې ناجایزه ده.

۲- د حیوان د بچي بیع د حیوان په نس کې نارواه ده که له بچي سره یو ځای خرڅ شي رواه ده.

۳- د حیوان په تیو کې شیدې او په بدن باندې وړی خرڅول حرام دي.

۴- د انسان د ویښتانو هډوکو او نورو بیع او له هغه څخه استفاده کول حرام دي.

۵- دمردار شوي حیوان او خنزیر بیع حرامه ده.

٦- د ځاندارو تصویرونه او مجسمې لکه :پلاستکي ناوکی د وړوکو نجونو لپاره یا پلاستکي حیوان او مرغه او نورو بیع باطله ده په شریعت کې د ځاندارو تصویر او مجسمه هیڅ قیمت نه لري.

۷- په دریاب کې ماهیانو او په هوا کې مرغانو بیعه حرامه ده ځکه چې د چا ملکیت نشي کیدای.

۸- که څوک غوا پدې شرط وپلوري چې د ورځې څلور کلو شېدې کوی دا بیعه حرامه ده مګر که ووايي چې ډیرې شیدې کوي رواه ده.

(اسلامې فقه ،زیورجنتی ،فتاوی هندیه ،شامي).

**المبیع (سودا یا تجارتي مال) :**

لکه څنګه چې د مال په اخیستلو کې د قیمت معلومول شرط دي دارنګه د مبیعې (سودا) یا د اخیستلو د مال معلومول شرط دي لکه :

۱- د مال جنس ، نوع او مقدار به واضح معلوم وي. جنس لکه: مالگه، نوع د کوم هیواد او یا کومې کمپنۍ تولید دی او مقدار د هغه وزن لکه:کیلو، من او نور دا به واضح معلوم وي.

۲- سودا او یا د اخیستلو مال به موجود وي یا به د هغه نمونه موجوده وي او یا که موجود نه وي هغه په دې شرط اخیستل کیږي که مې له لیدو وروسته خوښ شو اخلم يې او که مې خوښ نه شو نه يې اخلم.

۳- کوم مال چې خرڅیږي هغه به د خرڅوونکې ملکیت وي.

۴- په بیع کې د مال شامل او غیر شامل به واضح وي یو داسې مبیعه وي چې په هغه کې يې اجزاء عرفاً شامل بلل کیږي لکه: په کور کې اطاقونه، د قفل سره کلۍ او نور..

هغه مال او سامان چې د اجزاؤ شامل او غیر شاملول يې ضرور وي هغه باید واضح څرگند شي.

**د المبیع (سودا) د صحت شرطونه :**

موسوعة الفقهیة د المبیع د صحت د پاره څلور شرطونه بیان کړي دي چې په لاندې ډول دي :

۱- دا چې د خرڅولو شی به موجود وي که موجود نه وي هغه بیع نه صحي کیږي ، مثلاً د خامې میوې خرڅول ، د څاروي په نس کې د بچې خرڅول او نورو ته غیر موجود وایي چې بیع يې نه صحي کیږي.

۲- دا چې د خرڅولو شی به مال وي : مال هر هغه شي ته وایي چې شرعاً مباح او د گټې او استفادې کولو وړ وي.

۳- د خرڅولو شی به معلوم وي (د جنس ، نوعې او مقدار) له مخې، د مجهول شي بیع د احنافو په نزد فاسده ده.

۴- د تجارتي جنس مالک به معلوم وي ، هغه شيان چې د خاص کس ملک نشي کېدای لکه : د بحر او سيند اوبه ، د فضا هوا په اوبو کې ماهيان هغه د کوم کس ملک نشي کېدای نو ځکه د داسې شيانو بيع جواز نه لري.
او بل ټول هغه مالونه چې اصلي مالک يې بل کس وي لکه : د غصب، غلا او داسې نور د هغه خرڅول او اخيستل نه صحي کيږي.
(موسوعة الفقهية الجزء التاسع ، شروط المبيع).

**ايا شرعاً د غلا مال رانيول جايز دی او که نه ؟**

ځواب: د اسلام مقدس دين له جرم سره د مخالفت ښکاره کولو او د جرايمو د له مينځه وړلو د پاره د داسې شيانو رانيول حرام ګرځولي ،چې مجرم او جرايمو ته قوت حاصليږي ،چا ته چې معلومه شي چې دغه د غلا شوی يا د غصب مال دی يا د مال له اصلي مالک څخه په ناروا طريقه تر لاسه شوی وي را نيول يې حرام دي ،ځکه چې په دغه صورت کې د ده لخوا له غله ،غاصب او ظالم سره د غصب ، غلا او ظلم په ناوړه کار کې يو ډول تعاون دی.
الله تعالی فرمايي[: وَلاَ تَعَاوَنُو عَلَى الاِثمِ وَالعُدُوان] (المائده ۲).
يعنې : او مه کوئ تاسې مرسته يو تر بله د ګناه او ظلم په کار کې.
او خاص په دی معامله کې جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :

«من اشترى سرقة وهو يعلم انها سرقة فقد اشترک فی اثمها وعارها» (السنن الکبری للبيهقي ج۵ ص ۳۳۵ حاکم ج ۳ ص ۳۵).

ژباړه : چا چې د غلا مال رانيوی او دی په دې خبر ؤ چې دا مال د غلا دی، نو دغه کس په دغه ګناه او ناوړه کار کې شريک دی.

**الثمن (قيمت) :**

ثمن يا قيمت هغه مقدار رقم دی کوم چې د مال په اخيستلو کې ورکول کيږي هغه که نغدې روپۍ وي يا مال وي.

د ثمن په ادا کولو کې څو مهم ټکي :

۱- قیمت به په واضح توګه ښودل کیږي مجهول او نا معلوم به نه وي.

۲- که د معاملې په وخت کې قیمت معلوم شي نغد ادا نشي مګر د ادا کولو د پاره یې وخت وټاکل شي داسې کول صحي دي.

۳- د وخت ټاکل به مجهول نه وي داسې چې کله واوره وشي یا کله چې باران وشي نو زه به دا قیمت ادا کوم بلکي د وخت د ټاکلو د پاره به د ورځو او میاشتو تاریخ ټاکل کیږي.

**د مبیع او ثمن هلاکت :**

**د مبیع (تجارتي مال) هلاکت :**

**اول : د قبض او تسلیم څخه مخکې د مبیع کامل هلاکت :**

۱- که چېرې مبیع د آسماني آفت او یا د بایع (خرڅونکي) په لاس او یا هم پخپله مال هلاک شي لکه : حیوان ډیر خوراک وکړي او مړ شي نو په دې صورتونو کې د بیعې تړون ختمیږي.

۲- کله چې تجارتي جنس د اخیستونکي یا مشتري په لاس هلاک شي بیع نه فسخه کیږي مشترې به یې قیمت ادا کوي.

۳- که د بایع او مشتري بغیر د بل اجنبي کس په لاس هلاک شو بیعه نه فسخه کیږي په دې صورت کې مشتري اختیار لري چې اخلي یې او یا یې پریږدي ، اجنبي کس د هلاکت ضامین دی مشتري د اجنبي کس څخه د تاوان غوښتلو حق لري.

**دوهم : د قبض څخه وروسته د مبیع کامل هلاکت :**

که چېرې مبیع د تسلیم وروسته د آسماني آفاتو ، یا د مشتري په لاس ، یا د بایع په لاس او یا هم د کوم اجنبي لخوا هلاک شو نو د هلاکت تاوان په

اخیستونکي (مشتري) دی نه په بایع ځکه چې د بایع د ضمانت څخه وتلی دی او مشتري تسلیم کړی دی.

مشتري د اجنبي کس څخه د تاوان غوښتلو حق لري.

**دریم : که د مبیع څه حصه د قبض مخکې هلاکه شي :**

۱- کچېرې د مبیع (مال) څه برخه د آسماني آفاتو په وجه نقصان ومومي او دغه مبیع یا مال د تول ، وزن او شمیر وړ وي نو بیعه به د نقصاني شوې برخې په اندازه فسخه کیږي او د پاتې برخې به قیمت ادا کوي او په دې کې مشتري اختیار لري چې د هغه پاتې برخي ترون کوي او که نه. او کچیرې نقصان د شي په وصف کې وي لکه : په ځمکه کې کښېنول شوې ونې او یا په ځمکه کې جوړه شوې ودانۍ نو په دې صورت کې بیع نه فسخه کیږي په دې صورت کې مشتري اختیار لري چې په ټول قیمت سره یې اخلي او یا د عیب په وجه یې پرې ږدي.

۲- کچېرې دا نقصان او تلف خپله د مبیع په وجه وشي لکه : پخپله د حیوان زخمي کېدل نو بیع نه فسخه کیږي او نه هم ثمن ساقطیږي ، مشتري اختیار لري خوښه یې اخلي یې او یا یې ردوي.

۳- کچېرې نقصان د بایع لخوا وشي نو بیع د نقصان په اندازه باطلیږي او د مشتري د ذمې څخه د نقصان شوې برخې ثمن ادا کول ساقطیږي (په مشتري باندې د نقصان تاوان نشته) او د پاتې برخې په اخیستلو او نه اخیستلو کې مشتري اختیار لري.

۴- کچېرې نقصان د مشتري له لاسه وشي نو بیع نه باطلیږي او نه هم ثمن ساقطیږي ځکه چې هغه خو ټول مال قبض کړی دی نو د څه برخي په نقصان سره د هغه په قبض کې څه فرق نه راځي.

**څلورم : که د قبض نه وروسته څه برخه هلاک شي :**

۱- کچېرې هلاکت د آسماني آفت ، یا د مشتري په لاس وي او یا خپله مبیع نقصان و مومي نو دا هلاکت په مشتري دی.

۲- کچېرې د بایع په لاس هلاک شي نو دوه صورتونه لري :

الف) : کچېرې قبض د بایع په اجازه وي او قیمت نغد یا پور وي نو حکم یې په مثل د حکم د اجنبي دی یعنې د هلاکت تاوان په بایع دی.

ب) : که قبض د بایع په اجازه نه وي او ثمن قرض وي نو بیع د نقصان په اندازه فسخه کیږي او دغه حصه د مشتري څخه ساقطیږي (په هغه یې تاوان نشته).

**د احنافو په نزد د ثمن هلاکت :**

اول : که ثمن د قبض څخه مخکې د تړون په مجلس کې هلاک شي

۱- که ثمن لره مثل وي لکه نغدې پیسې نو بیع نه فسخه کیږي ځکه د هغه په مثل ادا کول ممکن دي.

۲- مگر که د هلاک شوي شي في الحال مثل نه وي نو بایع د بیعې د تړون کولو اختیار لري که خوښه یې وه هغه دې فسخه کړي او که خوښه یې وه د هغه پیسو برابر قیمت دې ورڅخه واخلي.

**په مبیع (سودا) کې د قبض نه مخکې تصرف کول :**

احناف رحمه الله علیهم وایي : په هغه تجارتي مال یا مبیع کې چې د نقلولو وړ وي د قبض او تسلیم مخکې تصرف کول جایز نه دي ځکه چې جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه منع کړې ده :نهی عن بیع ما لم یقبض.

مگر که غیر منقول څیز او جایداد وي په هغه کې د قبض نه مخکې تصرف کول د امام ابو حنیفه او امام یوسف په نزد جایز دی مگر د امام محمد ، امام شافعې او زفر په نزد جایز نه دی.

(فقه الأسلامي و ادلته، فتح القدير: ٥ ص ٢٦٤، البدائع: ٥ ص ١٨٠ ومابعدها، ص ٢٣٤، رد المحتار لابن عابدين: ۴ ص ١٦٩ ).

**د قبض څخه مخکې په ثمن کې تصرف کول :**

ثمن د قبض نه مخکې د پور حیثیت لري او د پور په ادا کولو کې دا باک نه لري چې سړی د ډالر پر ځای افغانۍ یا د افغانۍ پر ځای کلدارې واخلي په شرط ددې چې د همغه ورځې د اسعارو په نرخ تبادله شي ، په ثمن کې د سکې د بدلون دا ډول تصرف کول جایز دی.

په دلیل د دغه حدیث شریف : قال ابن عمر رضي الله عنهما : كنا نبيع الإبل بالدراهم فنأخذ عنها الدنانير ، ونبيع الدنانير فنأخذ عنها الدراهم ، فقال النبي صلى الله عليه وسلم : «لا بأس أن تأخذها بسعر يومها ما لم تتفرقا وبينكما شيء».

یعنې : ابن عمر رضی الله عنه وایي چې اوښ مو په درهمو پلورلی ؤ او دهغه نه مو دینارونه واخیستل ، او سودا مو په دینار باندې کړی ؤ بیا مو د هغه څخه درهم واخیستل ، دا مسئله مو د جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره شریکه کړه ، هغه وفرمایل : باک نه لري په شرط ددې چې د ورځې په نرخ تبادله شي.

مگر په بیع صرف او بیع السلم کې دا ډول تصرف کول جواز نه لري.

د نور تفصیل لپاره فقه الأسلامي و ادلته - البدائع: ٥/٢٣٨،المبسوط: ١٣/٩، حاشية ابن عابدين: ۴/۴۴ ولولئ.

**د اخیستلو او خرڅولو صورتونه :**

د مال او جنس د خرڅولو درې صورتونه دي لکه : بيع التوليه ، بيع المرابحة او بيع الواضيعة.

**بيع التولية :** د یوه جنس اخیستل او هغه بیرته پخپل سر بغیر له ګټې خرچولو ته وايي.

**بيع المرابحة** : د تجارتي جنس اخیستل او بیا هغه په ګټه خرچول په تجارتي جنس کې ګټې کولو ته مرابحه وايي.

**بيع الواضيعة** : د تجارتي جنس اخیستل بیا د هغه په تاوان خرچولو ته بيع الواضيعة وايي. مثلاً یو کس کمپیوټر اخلي په ۴۰۰ دالره یو کال وروسته هغه په ۳۰۰ دالره خرچوي.

دا درې واړه بیعې د فقهاؤ په اتفاق جایزې دي.

په شرط ددي چې تجارتي جنس قبض شي که تجارتي جنس قبض یا تسلیم نه شي بیعه نه صحي کیږي. (فتح القدير ج ٥ ص ٢٦٦).

مسائل :

١- سوداګر ته دا ضرور نه ده چې ووايي ما دغه جنس په دومره قیمت اخستی خو که کوم سوداګر مشتري ته وويل چې ما په دومره اخستی تا ته یې په دومره ګټه درکوم نو هغه ته ددې نه زيات اخستو حق نشته یعنې څومره ګټه یې چه مشتري ته وښوده د هغه نه زیات اخستل جایز نه دي اوکه داسې نه وي نو دروغ به یې هم ویلي وي او دوکه به یې هم کړي وي چې دواړه حرام دي.

۲- په کوم جنس باندې چې د رسولو او نقل کوم خرڅ راځي مثلاً یوشی په ۱۰۰ افغانۍ واخستل شول ٦ افغانۍ مصرف وربانديې راغی نو ټول به شي ۱۰٦ د ۱۰٦ افغانو پورته کټه شمیرل کیږي خو داسې به نه وایي چې په ۱۰٦ مې رانیولی بلکي داسې به وایي چې په ۱۰٦ تمام شوی ترڅو دروغ نه شي.(فتاوی هندیه ،اسلامې فقه)

**حكم التسعير (د نرخ ټاكلو حكم) :**

په اسلامي اقتصادي نظام کې د شرعي عذر پرته د نرخ ټاكل منع دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«إن الله هو المسعر، القابض الباسط الرازق» (ترمذي ، ابوداود ، ابن ماجه).

ژباړه : په رښتیا سره چې یوازې الله دی چې د نرخ او قیمت واقعي ټاکونکی دی (قیمتي او ارزاني د هغه په واک کې ده) ، هغه (جل جلاله) کم کوونکی او زیاتوونکی او روزي ورکوونکی دی.

مګر کچیرې تجاران په خرڅولو کې د حده څخه تیریدنه او بې انصافي پیل کړي د امام ابوحنیفه او امام مالک په نزد د مسلمانانو ولی الأمر ته جایز ده چې د اهل رایه او اهل علم په مشوره سره نرخونه کنترول کړي څکه چې دا د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه عمل ؤ. مګر د امام شافعی او امام احمد په نزد د نرخ ټاکل جواز نه لري او داسې بیع باطله ده.

جاء في الموسوعة الفقهية :

اختلف الفقهاء في التسعير فذهب الحنفية والمالكية إلى أن لولي الأمر ذلك إذا كان الباعة يتعدون القيمة وعجز القاضي عن صيانة حقوق المسلمين إلا بالتسعير بمشورة أهل الرأي والبصر وذلك لفعل عمر رضي الله عنه حين مر بحاطب في السوق فقال له:" إما أن ترفع السعر وإما أن تدخل بيتك فتبيع

كيف شئت ". وذهب الشافعية والحنابلة إلى تحريم التسعير وكراهة الشراء به وحرمة البيع وبطلانه.

يعنې : د نرخ په ټاکلو کې د فقهاؤ اختلاف دی. حنفيه او مالکيه مذهب دا دی چې : د (اسلامي حکومت) او يا د مسلمانانو ولی أمر ته د نزخ ټاکل او کنترول په هغه صورت کې جايز دی چې کله خرڅوونکي (د نرخونو په لوړلو کې) تجاوز وکړي او (بې انصافي غوره کړي) او قاضي د مسلمانانو د حقوقو په ساتنه کې پاتې راشي نو د اهل رأی او اهل علم په مشوره نرخونه ټاکلی شي (په دليل) د فعل د حضرت عمر رضی الله عنه چې هغه د بازار خلکو ته داسې حکم کړی ؤ چې : خوښه مو چې نرخ لوړوې او يا دا چې پخپل کور کينې څنگه مو چې خوښه وې هسې يې خرڅ کړئ (د بازار د نرخ څخه په لوړ نرخ خرڅونکی په بازار کې د خرڅولو اجازت نه لري).

مگر د شافعيه او حنابله په نزد د نرخونو ټاکل حرام دي.

**د بيع د رد يا فسخه کولو صورتونه :**

اسلامي شريعت بايع (خرڅونکي) او مشتري (اخيستونکي) ته د بيع د رد او فسخه کولو جايز اختيارات ورکړي دي چې په لاندې ډول دي.

**۱- خيار شرط :**

د قيمت د فيصلې نه وروسته خريدار دا شرط ولگولو چه دوې درې ورځې وروسته به زه تا ته ووايم چې اخلم يې اوکه نه ؟، يا يې زه کورته وړم هلته يې گورو د کتلو وروسته مو که خوښ شو ښه او که خوښ مو نه شو بيرته يې درته راوړم دغه بيع ته خيار شرط وايي.

- ✓ په دې معامله کې د وخت مقررول ضروري دي.
- ✓ که په دې موده کې د جنس په استعمال سره څه خرابي راغله نو بيا د واپس او فسخه کولو حق نلري.

د خيار شرط د پاره د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد درى ورځې دي مگر صاحبينو امام يوسف او امام محمد په نزد کچېرې د طرفينو خوښ وي د دريو ورځو نه زيات وخت ټاکل هم روا دي.

**٢- خيار وصف :**

که يوتجار د خپل تجارتي جنس ډير صفت وکړي يا د شپې وخت وي چه تجارتي جنس ښه نه ښکاري او خريدار هغه په غور ونه گوري صرف د تجار په وينا باندې اعتماد وکړي خو چې کله سودا کور ته ورسوي نو هغه سودا يا جنس د صفت مطابق نه وي نو اوس خريدار ته د واپس او فسخه کولو حق شته.

**٣- خيار رويت :**

کومه معامله چې بې ليدلو تر سره شي نو د هغه د ليدلو نه پس خريدار ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار شته چې دغه بيعي ته خيار رويت وايي.

- ✓ که چا نمونه وليدله نو وروسته د واپس کولو حق نه لري مگر که مال د نمونې موافق نه ؤ نو دفسخ کولو حق ورته شته.
- ✓ هغه ځيزونه چې په نمونه سره نه معلوميږي لکه ځاروي يوځاروی د نورو ځارويو نمونه نشي کيدای نو هغه ته د جلا جلا يا ټولو ليدلو اختيارشته.
- ✓ که د سوداگر نمايده يا ايجنټ مال وليد او هغه يې واخيست نو مالک د هغه د ردولو حق نلري مگر که دغه نمايده د خريداری نماينده نه وي د مال د ساتنې لپاره يې ليږلی وي نو بيا د مالک د ليدلو نه وروسته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار لري.
- ✓ که خريدار د جنس په استعمالولو سره جنس خراب کړ نو بيا د واپس کولو حق ورته نشته.

ابن عابدين رحمه الله وايي : اخيستونكی د مال د ليدو څخه وروسته د ردولو حق لري كه څه هم د ليدو څخه مخكې په هغه باندې رضايت ولري او كچېرې د ليدو څخه مخكې هغه رد كړي هم رواه ده ځكه د هغه ناپوهی په وجه چې مال اخيستل شوی دی هيڅكله نه صحي كيږي.

**۴- خيار عيب :**

كچېرې اخيستونكی د مال د اخيستلو په وخت كې د هغه عيب نه وي ليدلی يا نه وې وربانديې پوه شوی مگر وروسته يې ووينې يا چا په دوكه او فريب سره څه شي وپلورل او پيرودنكي ته يې د هغه عيب ونه ښود نو اخيسونكي ته شرعاً حق شته چې هغه فسخه كړي چې دغه بيع ته خيار عيب وايي.

دوكه وركول سخته گناه ده رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«من غشانا فليس مني» (رواه مسلم).

يعنې : څوک چې مونږ سره دوكه كوي له مونږ څخه نه دی.

- ✓ كه خريدار يو جنس د سالم جنس په نرخ واخيست مگر په هغه كې عيب ۇ نو خريدار ته يې د رد كولو حق شته.
- ✓ كه دوكاندار په جنس كې عيب وښودلو خريدار يې د بيرته واپس كولو حق نلري.
- ✓ كه په جنس كې عيب معلوم شي نو دهغه فوراً واپس كول په كار دي ،كه يې استعمال كړ نو بيا د واپس كولو حق نه لري خوكه داسې شی وي چې بې له استعمال څخه نه معلوميږي لكه موټر او داسې نور نو لږ استعمال يې جائز دی.

- ✓ که چا مال واخیست اوکور ته یې ورسولو ځنې خراب وو اوځنې ښه نو ښه یې ځانته کړل او خراب یې واپس کړل داسې کول جواز نه لري خو که د تجار په خوښه وي نو باک نه لري.

**۵- خیار تعین :**

که تجار خریدار ته د ډیرو څیزونو قیمت وښود او ورته ویې ویل چې په دومره موده کې چې ستا کوم څیزونه خوښ شول هغه به معامله کوو نو دا بیع صحي ده په مقرره موده کې چې کوم شیان اخلي دهغه معامله به تعین کوي.

- ✓ ترڅو پورې چې د معاملې خبرې روانې وي تر هغه پورې دواړو ته د معاملې د فسخ کولو اختیار شته ،مگر که د ختم نه وروسته د خیار شرط ،خیارعیب ،خیار رویت او خیار وصف په وجه سره معامله ختم کیدای شي.
- ✓ که ځمکه خرڅه شي په هغه کې څه فصل ولاړ وي نومالک به هغه فصل لرې کوي او ځمکه به خالي کوي مگر که خریدار د فصل تر پخیدو پورې اجازه ورکړه نو جواز لري.
- ✓ تجار چې کوم شی خرڅوي نو دهغه د شي په ورسپارلو کې باید کوم مانع نه وي.
- ✓ د حواله کولو مطلب دا دی چې کوم ځای مال خرڅ شو نو هملته به یې ورسپاري بل ملک او بل ځای ته رسول دخریدار په غاړه دي.
- ✓ که تجار څه مال خرڅ کړ خو خریدار ته یې د هغه ځای ونښود او وروسته خریدار ته معلومه شوه چې هغه ځای خطرناک دی یا یې په راوړلو ډیر مصرف راځي نومعامله فسخه کولای شي.
- ✓ معامله فیصله شوه مگر قیمت یې نه دی ادا شوی خریدار بغیر د تجار له اجازې څخه مال نشي پورته کولای.

- ✓ معامله فیصله ده ولې خریدار هغه نه وي قبض کړی که په مال کې څه خرابي راشي نو د هغه تاوان په تجار دی.
- ✓ که تجار په خپله خوښه خریدار ته څه شی زیات ورکړ نو د معاملې د فیصلې نه وروسته څوک هغه په واپس کولو نشي مجبوره ولای مګر که پخپله خوښه یې بیرته ورکړي نو خیر دی.
- ✓ که دمعاملې له فیصله کولو پس خریدار قیمت نه وي اداکړی نو ددې د پاره دوه صورتونه کیدای شي:
- ✓ اول: دا چې د قیمت د ژر ادا کولو وعده به کوي څو پورې چې قیمت ادا نه کړي تجار خپل مال پخپله قبضه کې ساتلی شي دوهم: دا چې معامله یې په قرض فیصله کړي وي نوکله چې خریدار مال خپل کور ته ورسوي ورسته تجار د هغه د واپسی حق نه لري.

د قیمت د ادا کولو دري طریقې دي :

۱- په نقد ډول د شي اخیستل.

۲- په قرض سره د شي اخیستل.

۳- دا چې اخیستونکی مخکې قیمت ورکړي او دشي د وروسته ورکولو وعده ور سره وکړي چې دې ته بیع سلم وایي چې مفصل بحث یې وروسته را روان دی.

**اقاله :**

د بیع د تر سره کولو وروسته د خرڅونکي یا اخیستونکې پښېمانه کیدو او د بیع فسخه کولو ته اقاله وایي.

اقاله په دې شرط جایز ده چې دواړه لورې خوښ وي او په لومړې قیمت باندې فسخه شي.

که څوک په معامله کې پښېمانه شي نو د هغه څخه په ښه شان او ښه رویه خپل جنس او مال اخیستل په کار دي ځکه چې داسې کول ثواب لري.

رسول الله صلى الله علیه وسلم فرمايي :«من أقال مسلماً أقاله الله عثرته يوم القيامة» (رواه أحمد وأبو داود وابن ماجة والحاكم وصححه ووافقه الذهبي).

یعنې : چا چې په ښه شان د مسلمان ورورہ سره د هغه د پښېمانتیا په صورت کې معامله فسخه کړه ، الله تعالی به يې د قيامت په ورځ له سختۍ نه وساتي او گناه به يې لرې کړي.

جناب رسول الله صلى الله علیه وسلم رحم کوونکو ته داسې دعا کړې ده :

«اللهم من رفق بأمتي فارفق به، ومن شق عليهم فشق عليه» (رواه أحمد ومسلم والنسائي).

ژباړه : ای الله ! څوک چې زما د امتیانو سره مهرباني او ترحم کوي ته د هغه سره مهرباني وکړې او څوک چې بده رویه ورسره کوي ته د هغه جزا ورکړې.

**بیع نسیه :**

د مال په پور یا قرض سره خرڅولو او اخیستلو ته بیع نسیه وايي.

بیع په نغد رقم او نسیه (د مودې د پاره په قرض سره خرڅول) دواړه جایز ده ، په قرض باندې بیع په دې شرط جایز ده چې د بیع د تړون په وخت کې د جنس قیمت معلوم او ثابت وي.

موسوعة الفقهيه ليکي :

يجوز البيع بثمن حال أو مؤجل إذا كان الأجل معلوما بدليل:

یعنې : بیع لاس په لاس (نغدو) او مؤجل تر څه وخت پورې (قرض) جایز ده نظر په لاندې دلائلو :

١ - إطلاق قوله تعالى: {وأحل الله البيع} فشمل ما بيع بثمن حال وما بيع بثمن مؤجل.

يعنې : په دليل د دغه قول د الله تعالى چې : الله بيع حلاله ګرځولې ده. نو دا حکم لاس په لاس او همدارنګه په پور سره دواړو ته شامل دی.

٢ - عن عائشة رضي الله عنها أنها قالت: «اشترى رسول الله صلى الله عليه وسلم من يهودي طعاما إلى أجل ورهنه درعا من حديد».

يعنې : عايشه رضی الله عنها وايي : چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د يهودي څخه طعام په قرض واخيست او هغه ته يې د اوسپنې زغره په ګاڼه کې ورکړه.

**د مودې په مقابل کې د قيمت زياتوالی :**

داسې معامله چې په نغدو په يوه نرخ او په پور باندې په بل نرخ و پلورل شي شرعاً جواز لري په شرط ددې چې دواړه لورې موافق وي او نرخ د تړون په وخت کې ټاکل شوی وي.

قال العلامة محمد تقي العثماني :

«اما الائمة الاربعة و جمهور الفقاء المحدثين فقد اجازوا البيع المؤجل بأكثر من سعر النقد بشرط أن يبت العاقدان بأنه بيع مؤجل بأجل معلوم بثمن متفق عليه عند العقد».(بحوث في قضا فقهية معاصرة:ص١٢)

يعنې : څلورو امامانو او جمهورو فقهاء محدثينو د قرض بيع چې د نغدو څخه په زيات قيمت (وپلورل شي) اجازت ورکړی دی په شرط ددې چې بايع او مشتري د تړون پر مهال په خپل مينځ کې قيمت ثابت وټاکي او د قرض وخت معلوم وي.

او مجموع الفقه اسلامي ليکي :

أولاً : تجوز الزيادة في الثمن المؤجل عن الثمن الحال ، كما يجوز ذكر ثمن المبيع نقداً ، وثمنه بالأقساط لمدد معلومة ، ولا يصح البيع إلا إذا جزم العاقدان بالنقد أو التأجيل ، فإن وقع البيع مع التردد بين النقد والتأجيل بأن لم يحصل الاتفاق الجازم على ثمن واحد محدد ، فهو غير جائز شرعاً.

ثانياً : لا يجوز شرعاً ، في بيع الأجل ، التنصيص في العقد على فوائد التقسيط ، مفصولة عن الثمن الحال ، بحيث ترتبط بالأجل ، سواء اتفق العاقدان على نسبة الفائدة أم ربطها بالفائدة السائدة. (مجمع الفقه الإسلامي ص ١٤٢).

مجموع فقه اسلامي دوه شرطونه ذکر کړل ، اول دا چې :په قرض باندې خرڅولو کې د قيمت زيادت جايز دی په دې شرط چې :په نغد او مؤجل (قرض) کې د طرفينو موافقه شرط ده که طرفين په نغد يا قرض معامله کې موافقه ونه کړي بيع نه صحي کيږي.

دوهم : د قسط په ادا کولو سره به فائده نه وي ، يعنې قيمت به ثابت وي داسې به نه وي که يو ځل قرض ادا شي څومره قيمت او که په يو ځل ادا نه شي په دوهم ځل يا دوهم قسط دومره قيمت داسې کول جايز نه دي بلکي د مال قيمت به ثابت وي.

همدارنګه نومړې مسئله د حنفي فقه په لاندې مراجعو کې جايز بلل شوې ده په شرط ددې چې قيمت د بيع د فيصلې په وخت کې ټاکل شوی وي.

(الجامع الصغير لمحمد بن الحسن ص٣٤٧ ،العناية شرح الهداية للبابرتي ٢٦٤/٩، حاشية ابن عابدين ١٤٢/٥، الجامع الصغير لمحمد بن الحسن ص٣٤٧، الهداية شرح البداية للمرغياني٥٨/٣،شرح فتح القدير لابن الهمام ١١٢/٦).

فتاوي معاصر علماء البلدالحرام ليکي :

مونږ اوريدلي دي چې ځينې خلک د يوه ضرورتمند اخيستونکي څخه خبريږي او په هغه باندې نومړی شی خرڅوي داسې چې هغه يي مالک نه وي مثلاً يو کس تجار ته ورځي او ورته وايي زما فلاني شي ته ضرورت دی او د

هغه د اخيستلو وس او قدرت نه لرم تجار هغه جنس اخلي او په هغه باندې يې د پور په شكل په لوړ نرخ خرڅوي ، يقيناً چې دا ښكاره حيله ده ځكه تجار دې جنس ته هيڅ ضرورت نه لري او خپل ځان ته يي هم نه دی رانولی بلكي د سود د پاره يي لاره برابره كړه ، او كله دا هم وايي چې لومړی كال ٨٪ دوهم كال ١٠٪ دريم كال ١٥٪ سود در څخه اخلم.

نو دا معامله يو سودي لين دين دی او كه سړی ښه فكر وكړي د بيع عينه سره شباهت لري.

(فتاوي معاصر علماء البدالحرام (٥)، (٢/٥٥-٥٨)

**خبرداریٔ :**

پورته ذكر شول چې د مودې په عوض كې د قيمت زياتوالی د څلورو امامانو او جمهورو فقهاؤ په نزد جايز دی كه څه هم د زين العابدين او ابی بكر الجصاص په نزد جواز نه لري خو د جمهورو رايه معتبره ده.

د مودې په عوض كې د نرخ زياتوالی په دې شرط جايز دی چې طرفين قاطع فيصله وكړي چې په نغدو او كه په پور مثلاً كه فيصله په پور باندې وشو د هغه نرخ به معلوم وي او نرخ به ثابت وي داسې به نه وي چې يو مياشت مثلاً ١٠٠ افغانۍ دوهمه مياشت ١٥٠ افغانۍ دا بيا سودي لين دين شو.

او بل دا چې اخستونكي بايد تجارتي جنس قبض كړي ځكه د جنس قبض كول د بيعې د صيحت شرط دی. و الله اعلم

**بيع التقسيط (د قسطونو بيع) :**

د قسطونو له مخې بيع چې (بيع بلتقسيط) هم ورته وايي داسې بيعه ده چې پلورونكی خپل مال اخسيتلونكی ته ور سپاري مگر قيمت يې د قسطونو له مخې (په يو ځل نه بلي جلا جلا) ادا كوي ، په بيعه تقسيط كې معمولاً د شي نرخ د بازار له نرخ څخه زيات ټاكل كيږي.

**د بيع التقسيط حکم :**

په قسطونو باندې د شي خرڅول د جمهورو فقهاؤ په نزد جايز دي په شرط ددې چې قيمت معلوم او ثابت وي، داسې نه وي چې د مودې او قسط له مخې يې قيمت لوړ شي چې داسې کول سود دی.

د تفصيل لپاره لاندې فقهې کتابونه ولولئ :

(بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع و المبسوط)

همدارنګه المعاملات المعاصرة ليکي :

جماهير أهل العلم أن البيع بالتقسيط جائز ولا بأس به ، فيصح أن يبيع الإنسان سلعته مقسطة كما أنه يصح له أن يبيعها بسعر حال ؛ يعني إذا باعها بثمنٍ مؤجل وهذا الثمن يكون على آجال يتفق عليها المتعاقدان فإن هذا جائز ؛ وسواء كان الثمن مساوياً للسلعة أو أنه زيد في الثمن من أجل .

واستدلوا على ذلك بما تقدم من الأصول ، فالأصل في المعاملات الحل كما قال تعالى : (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ) ، والأصل في الشروط في العقود الحل فإذا اتفقا على هذا الشرط وهو أن يكون الثمن مقسطاً فالأصل في ذلك الحل.

يعنې : د جمهورو اهل علم په نزد د قسطونو بيع جايز او څه باک نه لري ، دا صحي ده چې انسان خپل مال د قسطونو له مخې و پلوري لکه څنګه چې فی حال يا نغد يې پلوري ، يعنې د بايع او مشتري اتفاق په دې باندې چې مال د څه نيټې د پاره په پور (چې قيمت يې د قسطونو له مخې ادا شي) جايز دی ، فرق نه کوي که د نغدو په قيمت وي يا تر هغه زيات وي.

په دې دليل چې اصلاً په معاملاتو کې الحل (حلالوالی) شرط دی لکه چې الله سبحانه وتعالی فرمايي :[**يَا** أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ] ژباړه: ای مؤمنانو! په خپلو تړونونو وفا کوئ.

نو كه چېرې په دې تړون باندې اتفاق وشي چې د قيمت ادا كول به د قسطونو له مخې وي داسې كول جايز **دي.**

**بيع الصرف (د اسعارو بدلول) :**

صرف په لغت کې بدلولو ته وايي.او په اصطلاح کې : هو بيع النقد بالنقد جنساً بجنس أو بغير جنس: أي بيع الذهب بالذهب، أو الفضةبالفضة أو الذهب بالفضة.

(فتح القدير مع العناية: ٥/٢٨٤، ٣٦٨، البدائع: ٥/٢١٥، رد المحتار: ۴/٢۴۴).

يعنې : بدلول د نغد په نغد ، جنس په جنس او يا غير جنس او بدلول د سرو زو په سرو زرو او د سپينو زرو په سپينو زرو او يا بدلول د سرو زرو په سپينو زرو.

بيع الصرف ته په اوس عصر د اسعارو (نغدو پيسو) تبادله وايي.

**د بيع الصرف د صحت شرطونه :**

**١- د اسعارو بدلول به لاس په لاس وي :**

د صرف يا اسعارو د تبادلې د صحت لومړی شرط دا دی چې د پيسو او اجناسو بدلول به لاس په لاس وي ځنډ او قرض به پکې نه وي په دليل د دغه حديث شريف :«الذهب بالذهب مثلاً بمثل، يداً بيد، والفضة بالفضة مثلاً بمثل، يداً بيد» (المسلم).

يعنې **:** سره زر په سرو زرو ، سپين زر په سپينو زرو يو شان برابر او لاس په لاس به وي.

كچېرې د قبض يا تسليمولو څخه مخكې يو كس موجود نه وي يا سره جلا شي نو دا بيع د احنافو په نزد فاسده ده ځكه په دې کې د قبض يا لاس په لاس شرط صحت و نه موند (فقه اسلامي و ادلته - فتح القدير ج٥ ص ٣٦٩ -٣٧١).

او د نورو فقهاؤ په نزد باطله ده (فقه اسلامي و ادلته).

په قبض او تسليم کې که خپله مالک نه وي د يو لوري شخه يا د دواړو طرفونو شخه د وکيل قبض او تسليم هم صحت لري.

جاء في الموسوعة الفقهية :

ذهب جمهور الفقهاء: إلى أنّه تصحّ الوكالة بالقبض في الصّرف، فلو وكّل المتصارفان من يقبض لهما، أو وكّل أحدهما من يقبض له، فتقابض الوكيلان، أو تقابض أحد المتصارفين ووكيل الآخر قبل تفرّق الموكّلين، أو قبل تفرّق الموكّل والعاقد الثّاني الّذي لم يوكّل جاز العقد، وصحّ القبض، لأنّ قبض الوكيل كقبض موكّله.

**۲- همجنس شيان به يو شان او برابر بدليږي :**

که چيرې جنس په جنس بدليږي لکه : سر زر په سرو زرو او سپين زر په سپينو زرو ، ډالر په ډالرو ، افغانۍ په افغانيو نو يو شان او برابر به وي مګر که جنس يې سره فرق ولري لکه : سره زر په سپينو زرو او ډالر په افغانيو نو بيا زيادت او کمبود فرق نه لري په شرط ددې چې لاس په لاس وي په دليل د دغه حديث شريف :«اَلذَّهَبُ بِاالذَّهَبِ وَالفِضّةُ بِاالفِضّةِ مِثلاً بِمِثلٍ سَوَاءً بِسوَاءٍ يَداً بِيداٍ فَاِذَا ختَلَفَت هذِهِ الاَجنَاس ُ فَبيعُوا كَيفَ شِءتُم اِذاَ كَانَ يداً بِيَدٍ» (رواه مسلم).

يعنې:سره زر په سرو زرو ، سپين زر په سپينو زرو په بدل کی دي – يو شان برابر او لاس په لاس ، او هر کله چه جنسونه سره مختلف وي نوڅنګه مو چه خوښه وي خرڅوئ ،په شرط ددې چه لاس په لاس وي.

إذا بيع الجنس بالجنس كفضة بفضة، أو ذهب بذهب، فلا يجوز إلا مثلاً بمثل وزناً، وإن اختلفا في الجودة والصياغة بأن يكون أحدهما أجود من الآخر أو أحسن صياغة لقوله صلّى الله عليه وسلم في الحديث السابق: «الذهب بالذهب مثلاً بمثل»

(فقه الاسلامي و ادلته بحواله - فتح القدير: ص ٣٦٩، البدائع: ص ٢١٦، رد المحتار: ص ٢٤٥).

**٣- د صرف په معامله کې به خيار الشرط نه وي :**

د څلورو واړو مذاهبو په دې باندې اتفاق دی چې په بيع صرف کې خيار الشرط لګول بيع فاسدوي ځکه د صرف په معامله کې قبض او تسليمول شرط دی خو د اختيار شرط لګول هغه که يو طرف نه وي يا د دواړو طرفونو څخه د صرب بيع فاسدوي ځکه چې خيار الشرط لګول د قبض مانع ګرځي.

جاء في الموسوعة فقهية : يرى جمهور الفقهاء - الحنفيّة والمالكيّة والشّافعيّة في المذهب - أنّ الصّرف لا يصحّ مع خيار الشّرط. فإن شرط الخيار فيه لكلا العاقدين أو لأحدهما فسد الصّرف، لأنّ القبض في هذا العقد شرط صحّة، أو شرط بقائه على الصّحّة والخيار يمنع انعقاد العقد في حقّ الحكم، فيمنع صحّة القبض كما قال الكاسانيّ.

خيار الشرط : که بيعې د فيصلې نه وروسته خريدار دا شرط ولګولو چه دوې درې ورځې وروسته به زه تا ته ووايم چې اخلم يې اوکه نه ؟، يا يې زه کور ته وړم هلته يې ګورو د کتلو وروسته مو که خوښ شو ښه او که خوښ مو نه شو بيرته يې درته راوړم دغه ته خيار شرط وايي.

مګر که په اجناسو کې عيب وي نو ردول يې جايز دي :

جاء في الموسوعة الفقهية :

امّا خيار العيب فلا يمنع تمام العقد فيثبت في الصّرف، لأنّ السّلامة عن العيب مطلوبة عادةً ففقدانها يوجب الخيار كسائر البياعات.

قال الحنفيّة: إنّ بدل الصّرف إذا كان عيناً فردّه بالعيب يفسخ العقد، سواء أكان الرّدّ في المجلس أو بعد الافتراق،وإن كان ديناً بأن وجد الدّراهم المقبوضة زيوفاً أو كاسدةً، أو وجدها رائجةً في بعض التّجارات دون البعض -

وذلك عيب عند التّجارة - فردّها في المجلس ينفسخ العقد بالرّدّ، حتّى لو استبدل مكانه مضيّ الصّرف.

يعنې : مگر خيار العيب د صرف د تړون مانع نه گرځي ، ځکه د عيب څخه روغوالی او سلامتيا په ټولو بيعو او معاملاتو کې مطلوب وي.

احناف وايي : که چېرې د صرف په بدلون کې عيب وموندل شي نو تړون دې فسخه شي باک نه لري که په مجلس کې وي يا د بيلتون څخه وروسته ، که په قبض شويو پيسو کې څه خرابی وليدل شي چې په رواجي تجارت کې (عيب) گڼل کيږي نو هغه دې بيرته په مجلس کې ورکړي او تړون دې فسخه کړي که څه هم د بدلون ځای تغير وي.

**۴- د صرف په معامله کې په ځنډ او تأخير نه وي :**

د صرف په بيع کې دا شرط دی چې د صرف تړون به د ځنډ او مودې ټاکلو او تأخير څخه خالي وي هغه که د طرفينو لخوا وي او يا هم د يو طرف څخه وي که داسې نه وي نو د صرف يا تبادله اسعارو معامله فاسده ده.

ځکه چې د بدل شويو قبض او تسليم د جلا کيدو نه مخکې شرط دی او د ځنډ او مودې ټاکل قبض ځنډوي او تړون فاسدوي.

يشترط أن يكون عقد الصرف خالياً عن الأجل لكل من المتعاقدين أو لأحدهما، وإلا فسد الصرف؛ لأن قبض البدلين مستحق قبل الافتراق، كما عرفنا، والأجل يؤخر القبض، فيفسد العقد.

(فقه الأسلامي و ادله بحواله : مختصر الطحاوي: ص ٧٥، فتح القدير: ٥/٣٦٧، البدائع: ٥/٢١٩، الدر المختار: ٤/٢٤٦).

**نورو هيوادونو ته د پيسو په حواله کولو کې د ځنډ حکم :**

**پوښتنه: نن صبا په ټولو هيوادونو کې د اسعاروتبادله او حواله يومعمول**

**دی زمونږ په ملك كې ډير قسمونه د اسعارو په مختلفو طريقو تبادله كيږي غواړم چی پوه شو چې صحيح طريقه يي كومه ده.**

۱-يونفر ډالر په افغانۍ تبادله كوي يولك ډالر صراف ته وركوي چې په مقابل كی صراف د (٥٦)لكه پرچه وركوي او تاريخ يو يا دوه ورځې وروسته ورته ليكي چې دلته ديو شخص له خو ډالر قبض شول او بل خوا څخه تأخير شو آيا دغه معامله سود ده او كنه؟

۲ -صرافان نن صبا حواله كوي چی په كابل كي يو نفر ورته يولك دالر وركړي په دوبی كي ورته يو يا دوه ورځې وروسته (۹۹۰۰۰) ډالر وركوي او د (۱۰۰۰) ډالر ددوی په اصطلاح كميشن ورنه اخلي او يا د ډالرو په مقابل كې هلته درهم وركوي چې دلته د يو طرف نه نغد اخستل كيږي او بل ورته يوساعت يا يوه ورځ ورسته اسعار وركوي ايا دغه خو سود يا ربا نه ده؟ كه چيرې سود وي نو صحيح او اسانه لاره يي كومه ده ؟

مننه ستاسو د تفصيلي جواب په هيله

محمد نبی د كابل نه

ځواب:

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

**اول :** د قرض مبلغ به ثابت وي يا ډالكر او يا افغانۍ ، داسې نشي كيدای چې د مودې مخكې د اسعارو د تبادلې نرخ وټاكل شي ، چې ما ته به هغه وخت د لسو زرو ډالرو شپږ لكه افغانۍ راكوي ، داسې كول حرام دي.

بلكي د پور د ادا په وخت كې به يا ۱۰۰۰۰ ډالر او يا د هغه ورځې د اسعارو د نرخ موافق افغانۍ اخلي.

د پور په ادا کولو کې دا باک نه لري چې سړی د ډالر پر ځای افغانۍ یا د افغانۍ پر ځای کلدارې واخلي په شرط ددې چې د همغه ورځې د اسعارو په نرخ تبادله شي.

په دلیل د دغه حدیث شریف : قال ابن عمر رضي الله عنهما : كنا نبيع الإبل بالدراهم فنأخذ عنها الدنانير ، ونبيع الدنانير فنأخذ عنها الدراهم ، فقال النبي صلى الله عليه وسلم :«لا بأس أن تأخذها بسعر يومها ما لم تتفرقا وبينكما شيء».

یعنې : ابن عمر رضی الله عنه وایي چې اوښ مو په درهمو پلورلی ؤ او دهغه نه مو دینارونه واخیستل ، او سودا مو په دینار باندې کړی ؤ بیا مو د هغه څخه درهم واخیستل ، دا مسئله مو د جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره شریکه کړه ، هغه وفرمایل : چې باک نه لري په شرط ددې د ورځې په نرخ تبادله شي.

**دوهم :** د نغدو پیسو بدلول لکه دالر په افغانۍ او افغانۍ په کلدارو په مختلف نرخ جایز دي په دې شرط چې لاس په لاس وي ځکه چې جنس یې سره مخالف دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:«فَإِذَا اِخْتَلَفَتْ هَذِهِ الْأَصْنَافُ فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ» (مسلم).

ژباړه:کله چې دا اجناس مختلف وي څنګه چې غواړی لاس په لاس معامله کړئ.

د اسعارو په تبادله کې دا شرط دی چې لاس په لاس به وي یعنې طرفین به په یوه مجلس کې عقد کوي او پیسی به تحویل اخلي او که داسې نه وي نو ربا نسیه بلل کیږي.

د پورته حديث شريف په دليل ځينې معاصر فقهاء د حوالی دا شکل چې بل هيواد ته حواله کوي او د پيسو په اخيستلو کې څنګه راځي صحي نه بولي.

**دريم : د اسعارو په تسليم او يا قبضولو کې څنګه :**

دا چې په بيع صرف کې قبض شرط او څنګه جواز نه لري ځنې معاصر فقهاء وايي : چې د اسعارو په مقابل کې د چک او سند ورکول د قبض حکم لري.

د علمي ټولنې او افتاء دايمي ټولنه ليکي : د يو هيواد څخه بل هيواد ته حواله کول د هغو هيوادونو په رواجي پيسو باندې جايز دي که څه هم برابر نه وي ځکه جنس يې يو شان نه دی مګر دا حواله کول به په دې شرط وي چې په يو مجلس او عقد کې صورت و نيسي البته د چک يا سند اخيستل د قبض په حکم کې داخل دي

وقد جاء في "فتاوى اللجنة الدائمة للإفتاء" (١٣/٤٤٨) :

"يجوز تحويل الورق النقدي لدولة إلى ورق نقدي لدولة أخرى ولو تفاوت العوضان في القدر ، لاختلاف الجنس ، لكن بشرط التقابض في المجلس ، وقبض الشيك ، أو ورقة الحوالة حكمه حكم القبض في المجلس" انتهى.

فقهاؤ ددې مسئلې قياس د ابن زبير او ابن عباس رضی الله عنهم په عمل کړی دی چې هغوی به په مکه کې د تجار څخه پيسې اخيستې او بيا يې هغوی ته په کوفه يا بصره کې ليکلې.

نن عصر د پيسو د اخيستلو په بدل کې د بانک چک او رسيد ورکوي د بانک سند په دې شرط د قبض لپاره صحي دی چې د همغه ورځې په تاريخ او د اسعارو په نرخ وي نو بيا دا د نن عصر د اسعارو صرف به همداسې وي لکه د ابن زبير رضی الله عنه عمل ځکه چې د بانک سند د قبض قايم مقام ګرځي.

القياس على ما كان يحصل من ابن الزبير و ابن عباس -رضي الله عنهم-، فعن عطاء -رحمه الله- أن ابن الزبير -رضي الله عنهما- كان يأخذ بمكة الورق من التجار فيكتب لهم إلى البصرة وإلى الكوفة فيأخذون أجود من ورقهم، قال عطاء: فسألت ابن عباس رضي الله عنه عن أخذهم أجود من ورقهم؟ فقال: "لا بأس بذلك ما لم يكن شرطا وبه نأخذ، وعن ابن عباس رضي الله عنهما أنه كان يأخذ الورق بمكة على أن يكتب لهم إلى الكوفة بها.

إن ما يحصل اليوم من أخذ البنك النقود من طالب التحويل وتسليم شيك بشرط أن يكون الشيك بتاريخ اليوم وسعر صرف اليوم هو عين ما كان يفعله ابن الزبير، فإن قبض الشيك يقوم مقام قبض محتواه، فهو كالنقود، فإذا كانت السفتجة تقوم مقام القبض، فالشيك يقوم مقامه من باب أولى. (المبسوط للسرخسي(١۴/ ٣٧)

**بيع السلم :**

بيع السلم ته بيع السلف هم وايي.

سلم يا سلف د قيمت مخکې ادا کولو يا د جنس او مال مخکې خرڅولو ته وايي.

په بيع کې د قيمت ورکولو درې طريقې دي:

١- په نغدو پيسو سره د مال اخيستل.

٢- په قرض سره د مال اخيستل او هغه قبض کول.

٣- د سلم معامله.

د قرض يو قسم معامله سلم دی يعنی داسې چې تجار يا بائع مخکې له مشتري يا خريدار څخه قيمت واخلي يا مشتري مخکې قيمت ورکړ او دشي د وروسته ورکولو وعده يې وکړه نو دا ډول بيع رواه ده.

مثلاً يوکس چا ته پيسی ورکړي چه کله فصل ټول شي ماته به شل منه غنم راکوې.

**د سلم د بيع مشروعيت :**

د سلم بيع په اتفاق د مذاهبو جايزه ده.

الله سبحانه وتعالی فرمايي :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ](البقرة : ٢٨٢).

ژباړه : ای مؤمنانو ! کله چې تر ټاکلې نيټې پورې د قرض او پور معامله کوئ نو تاسې هغه وليکئ.

او بل په دليل د دغه حديث شريف : عن ابن عباس رضي الله عنهما أن رسول الله- صلى الله عليه وسلم- قال:«مَنْ أَسْلَفَ فِي شَيْءٍ فَفِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ، وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ» (متفق عليه).

ژباړه: ابن عباس رضی الله عنهما روايت کوي چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : څوک چې په يو شي کې د سلف يا سلم (معامله) تر سره کوي نو هغه به په معلومه پيمانه ، معلوم وزن او معلومه نيټه تر سره کوي.

د سلم بيع دبائع اومشتري دواړو د آسانتيا دپاره جايز شوی ده ،دسلم بيع دهر هغه شي جايزه ده چه دهغه صفت اوځرندوالی په ژبه او قلم سره بيان کړ شي.

ددی لپاره چې په آينده کې د بايع او مشتري ترمنځ اختلاف رانشي نو ددی بيعې دصحت لپاره شرايط ټاکل شوی که په دغه شرايطو کې يوهم نه وي نو بيع جايزه نه ده.

**د بيع السلم د صحت شرطونه :**

**اول شرط :**

کوم شی چې معامله کیږي دهغه پوره تفصیل بیانول په کار دي مثلاً که غنم وي د هغه په باره کې تفصیل چې وطني یا زراعتي یالیلمي ،غټ یانري ،سپین یا سره ،گردغبار به لري اوکه نه؟او داسې نور همدارنگه که رخت وي کوم ډول رخت ململ ،نیلون یا د فلانی کمپنۍ به وي.

**دوهم شرط :**

نرخ یا قیمت به فیصله کوي مثلاً که غنم اخلي نو قیمت به یې ټاکي داسې صحي نه ده چې ووایې کله چې فصل تیار شي هغه وخت چه څه نرخ وو همغه به یې نرخ وي.

همدارنکه که کوم جنس راغواړي نوقیمت به یې فیصله کوي دا ورسره ویلای شي چه څومره خرڅ په واردولو اوراوړو راغی هغه به راکوې.

**دریم شرط :**

د سودا د اخستلو موده به مقرروي داسې فیصله به کوي چې په فلانی میاشت یا فلاني تاریخ به دغه سودا یاجنس درکوم.

**څلورم شرط :**

دځای ښودل ،خریدار ته به دا ښیي چې په فلاني ځای کې به جنس درته رسوم البته دا شرط د هغه معاملې دپاره دی چې رسول او انتقال یې آسانه نه وي لکه سل منه غنم یا پنځه سوه چوکۍ اوداسې نور.

که داسې جنس وي چې وړل یې آسان وي لکه څو دانې قلم یا یو درجن کتابچې د هغه لپاره دا شرط نشته.

**پنځم شرط :**

ټولی روپۍ به دمعاملې کولو په وخت کې اداکوي.

**شپږم شرط :**

د ځومره مودې لپاره چې معامله شوی ده په دغه ټوله موده کې به د معاملې جنس په بازار کې موجود وي که هغه شی د بازار نه غایب شي نو بایع به روپۍ بیرته ورکوي دا شرط د احنافو دعلماء کرامو دی.

مګر امام شافعي ،امام مالک او امام احمد وایي چه کوم وخت هغه شي ورکوي هغه وخت ددې موجودګي په کار ده په ټوله موده کې په کار نده.

د مودې له تیردلو وروسته که بایع هغه شی ورنه کړل نو بیرته به پیسې ورکوي په دغه پیسو بل شی نشي اخیستلای یابه روپۍ بیرته ورکوي اویا به هغه ته نور مهلت ورکوي. (اسلامې فقه ،زیورجنتي ،فتاوي هندیه ، درالمختاراو شرح البدایه).

**په حیوان کې سلم :**

د احنافو په نزد په حیوان کې د سلم بیع جواز نه لري په دلیل د دغه حدیث شریف : روي عن ابن عباس «أن النبي صلّى الله عليه وسلم نهى عن السلف في الحيوان» (أخرجه الحاكم والدارقطني)

ځکه په هغه کې اختلاف رامینځته کیږي.

**په غوښو او هدوګو کې سلم :**

د امام ابوحنیفه په نزد په هدوګو واله غوښه کې سلم جواز نه لري ځکه په هغه کې د هدوګو د لږوالی او ډیروالی په وجه اختلاف رامینځته کیږي.

مګر امام یوسف ، امام محمد ، امام مالک ، امام شافعي او امام احمد په نزد په غوښو کې سلم په دې شرط صحي کیږي چې ټول صفات یې معلوم شي لکه : جنس : د پسه غوښه که د غوایه او ډول : د نارینه حیوان او که د ښځینه حیوان ، د خصي شوي او غیر خصي شوې حیوان او سن: وری که پسه، صفت: غوړ، متوسط او که سپور، ځای : ورنونه، سینه او که بل ځای، مقدار: دوه منه، دری منه او نور

په دلیل د دغه حدیث شریف : من أسلف فلیسلف في کیل معلوم أو وزن معلوم(متفق علیه)

**په ماهیانو کې سلم :**

په ماهیانو کې سلم د غوښو د سلم حکم لري چې د جمهورو په نزد جایز دی د امام ابوحنیفه په نزد په کوچنیو ماهیانو کې جایز دی ځکه په هغه کې د غوړو او سپرو اختلاف کم وي.

**په لباس او جامو کې سلم :**

په لباس او جامو کې سلم د امام ابوحنیفه په نزد جایز نه دی ځکه په هغه کې فرق موجود وي مګر که جنس ، نوع او صفت لکه : رخت ، رنګ ، طول او عرض یې معلوم وي جایز دی.

مګر د امام مالک ، امام شافعی او امام احمد په نزد په لباس او جامه کې سلم جایز دی.

**په ډوډی کې سلم :**

د امام ابوحنیفه په نزد په ډوډی کې سلم جایز نه دی ځکه په لویوالی او کوچنیوالی یې فرق وي.

امام یوسف وایي :که نوع او وزن یې معلوم وي جایز دی.

(فقه الأسلامي وادلته دوکتور وهبة زحیلي – بیع السلم)

**بیع استصناع :**

استصناع جوړولو ته وایي یعنې هغه بیع چې د څه شي د جوړولو او تولید لپاره تر سره کیږي. د بیع سلم یو قسم بیع استصناع ده. په بیع سلم او بیع استصناع کې صرف دومره فرق دی چې په بیع سلم کې قیمت د معاملې کولو سره سم ادا کیږي مګر په بیع استصناع کې قیمت فوراً ادا کول ضرور نه دي

بلکي هر کله چې ده ته مال ورکړل شي بيا به قيمت ادا کوي نور ټول شرايط يې د سلم په شان دي.

د احنافو په نزد د بيع استصناع د پاره درې شرطونه دي :

١- د جوړېدونکي شي جنس ، نوع ، اندازه او نور صفات به معلوم وي ، کچېرې د جوړېدونکي شي صفات معلوم نه وي بيع فاسده ده ځکه په دې کې جهل دی د اختلاف سبب گرځي.

٢- جوړېدونکی شی به داسې څيز وي چې په خلکو کې مروج وي لکه زمونږ په عصر کې د جامو جوړول او توليد ، ماشين آلات ، موټرونه ، برقي سامان او نور چې شرعاً مباح وي.

٣- په بيع استصناع کې به وخت نه ټاکل کيږي ، د امام ابوحنيفه په نزد کچېرې په بيع استصناع د تسليم وخت وټاکل شي بيع استصناع باطل ده بيع سلم گرځي او د سلم شرايط ورباندې جاري کيږي ، مگر د صاحبانو (امام يوسف او امام محمد) په نزد په بيع استصناع کې د وخت ټاکل صحي دي ، مجلة الأحكام العدلية ماده ٣٨٩ کې راغلي چې په عهد عثماني کې په همدې رايه عمل کيدلو ځکه چې د بيع استصناع د پاره د وخت ټاکل يو عام ضرورت دی. (المعاملات مالية المعاصرة وهبة زحيلي ص ٥٩).

**بيع الوفاء :**

الوفاء په وعده باندې عمل کولو ته وايي ،دا داسې بيع ده چې يو شي د څه وخت د پاره په وعده کولو سره پلورل کيږي اخيستونکی له خرڅونکی سره دا وعده کوي چې هر کله دې د مال قيمت ما ته بيرته راکړ زه به تا ته شي بيرته درکړم.

مشروعيت :

ددې بيع په جواز کې د فقهاء کرامو تر مينځ اختلاف دی :

بيع الوفاء چه مونږ تعبير ورڅخه په ګروی کوو په دې کښې اختلاف ده.

**اول قول** : حکم د بيع الوفاء عين حکم د رهن ده ټول د رهن احکام پرې جاري کيږي او نفع په مرهون اخستل ناروا ده نو بيع الوفاء هم ناروا ده.

البيع الوفاء باطل وهو رهن (خيريه،جامع الفصولين -١٦٩،کامليه ٨٣-،مجله اتاسي ۴۱۴)

فتاوٰی خيريه او جواهر الفتاوی کې او امام حسن الماتريدي دوی ټولو پربطلان فتوی ورکړي ده.

**دوهم قول** :بيع الوفاء بيع بولي او دا ډول تړون صحيح بولي.

قال الزيلعي انه بيع صحيح مفيد لبعض احکامه من حل الانتفاع به وعليه الفتوی.

القول الجامع لبعض المحققين انه فاسد في حق بعض الاحکام صحيح في حق بعض الاحکام ورهن في حق بعض الاحکام جوز لحاجه الناس اليه بشرط سلامة البدلين (قال في البحر)وينبغي ان لا يعدل في الافتاء عن القول الجامع(قال في النهر) والعمل في ديارنا على ما رجحها لزيلعي (الدرمحتار ج ٧ ص ٥٨٠).

**دريم قول** : که چيرې لفظ د بيع په عقد کې استعمال شي نو بيا بيع صحي ده او که نه شو استعمال بيا رهن ده ناروا ده (ردالمحتار).

**څلورم قول** : مشائخو د بلخ او خوارزم او ابوعلي النسفي فتوی ورکړې په جواز د بيع الوفاءباندې ځکه عرف ورباندې جاري ده (ردالمحتار)

**پنځم قول** : دا چه دغه بيعه صحيح ده او نافذه ده ځکه دخلکو حاجت ده او له سود څخه دخلاصو ن يوه لاره ده.

**شپږم قول**: د قاضيخان ده کچيري د بيع لفظ استعمال شي او شرط د فسخ ذکر نشي او وروسته بيا وعده وکړي جايز ده.

قال والصحيح ان العقد الذي جرى بينهما ان كان بلفظ البيع لا يكون رهنا ثم ينظر ان ذكرا شرط الفسخ في البيع وتلفظا بلفظ البيع بشرط الوفاء اوتلفظا با لبيع الجائزوعندهما هذا البيع عبارة عن عقد غير لازم فكذلك وان ذكر البيع من غير شرط ثم ذكرا على وجه المواعدة جاز البيع ويلزمه الوفاء باا لوعد لان ا لمواعد قد تكون لا زمة فتجعل لازمة لحاجة الناس) (قاضيخان ۲ج۳۵۳ص)

په موسوعة الفقهية کې راغلي دي :

د بيع الوفاء په اړه د فقهاؤ اختلاف دی ، مذهب مالکي او حنابله او پخوانيو احنافو او شافعي مذهب په نزد فاسده ده ، ځکه چې په بيع کې دوام شرط دی کله چې کوم شی وپلورل شي نو د مالک ملک گرځي. او دا چې په مؤقت ډول شی و پلورل شي او له هغه څخه بايع گټه واخلي دا شرط باطل دی، نو کله چې بيع صحي نه شوه د هغه څخه منفعت او گټه اخيستل سود دی.

مگر د ځنو متأخرينو احنافو او شافعي مذهبو په نزد جايزه ده ځکه دخلکو حاجت ده او له سود څخه دخلاصو ن يوه لاره ده او تر ټاکلي وخته پورې د مال ورکول دي.

مگر د احنافو څخه أبو شجاع وعليّ السّغديّ والقاضي أبو الحسن الماتريديّ وايي :چې بيع الوفاء اصلاً بيع نه ده بلکي رهن او گروي ده په هغه باندې د گروي ټول احکام جاري کيږي ، د هغه څخه گټه اخيستل سود دی.

دا مطلب الموسوعة الفقهية داسې بيان کړی دی :

اختلف الفقهاء في الحكم الشّرعيّ لبيع الوفاء.

فذهب المالكيّة والحنابلة والمتقدّمون من الحنفيّة والشّافعيّة إلى : أنّ بيع الوفاء فاسد ، لأنّ اشتراط البائع أخذ المبيع إذا ردّ الثّمن إلى المشتري يخالف مقتضى البيع وحكمه ، وهو ملك المشتري للمبيع على سبيل الاستقرار

والدّوام. وفي هذا الشّرط منفعة للبائع ، ولم يرد دليل معيّن يدلّ على جوازه ، فيكون شرطاً فاسداً يفسد البيع باشتراطه فيه.

ولأنّ البيع على هذا الوجه لا يقصد منه حقيقة البيع بشرط الوفاء ، وإنّما يقصد من ورائه الوصول إلى الرّبا المحرّم ، وهو إعطاء المال إلى أجل ، ومنفعة المبيع هي الرّبح ، والرّبا باطل في جميع حالاته.

وذهب بعض المتأخّرين من الحنفيّة والشّافعيّة إلى أنّ بيع الوفاء جائز مفيد لبعض أحكامه ، وهو انتفاع المشتري بالمبيع – دون بعضها – وهو البيع من آخر.

وحجّتهم في ذلك : أنّ البيع بهذا الشّرط تعارفه النّاس وتعاملوا به لحاجتهم إليه، فراراً من الرّبا.

وذهب أبو شجاع وعليّ السّغديّ والقاضي أبو الحسن الماتريديّ من الحنفيّة إلى : أنّ بيع الوفاء رهن وليس ببيع ، فيثبت له جميع أحكام الرّهن فلا يملكه المشتري ولا ينتفع به.

مجتمع الفقه الاسلامية ليكي :

بيع الوفاء د جمهورو فقهاؤ په نزد فاسده ده ځکه ددې بيع اصلي حقيقت او مقصد د قرض څخه ګټه پورته کول دي (قرض جر نفعاً) کې راځي نو په هر قرض کې چې ګټه وي هغه سود دى ، او بل دا چې داسې عقد شرعاً جايز نه دى.

جاء فى مجتمع الفقه الاسلامية :

بيع الوفاء وحقيقته : بيع المال بشرط أن البائع متى رد الثمن يرد المشتري إليه المبيع.

وقرر ما يلي :

أولاً : إن حقيقة هذا البيع (قرض جر نفعاً) فهو تحايل على الربا وبعدم صحته قال جمهور العلماء.

ثانياً : إن هذا العقد غير جائز شرعاً.(مجمع الفقه الإسلامي)

**د مطلب خلاصه:** بيع وفاء څو قسمه ده خو نن صبا مروجه بيع الوفاء روا نه ده ځکه:

اول: لفظ دبيع نه استعمالوي.

دوهم :که لفظ دبيع استعمال شي بيا هم نيت او قصد يې دبيع نه وي بلکه مقصد نفعه په قرض باندې وي.

دريم : دلته شرط لګوي د فسخ نو اوس که دا بيع بولي نو بيع بشرط راغله او بيع بشرط ناروا ده او که يي رهن بولي نو په رهن باندې ګټه اخيستل نارواه دي.

نو هغه فقهاؤ چې بيع الوفاء جايز بولي نو بيع الوفاء بايد په لاندي شرائطوباندې وشي :

اول: لفظ دبيع به استعمالوي.

دوهم: په وقت دعقد کي به شرط د فسخه کولو نه لګوي.

دريم: اخستونکی خرڅونکي به دواړه عقد لازم بولي او نيت به يي د خريد او فروخت وي.

څلورم: چې کله عقد وشو بي له شرط څخه وروسته به بيا وعده سره وکړي چي زه به پيسې درکړم ته به ځمکه راکوي نو دا وعده شوه او وفاء په وعده باندي لازمه ده.ځکه (صاحبين) وايي چه شرط په اصل عقد پورې نه ملحق کيږي او شرح مجله هم دا صحيح بللی.

پنځم: په قواله کي هم بايد اذن با الانتفاع وليکل شي تر څو له اختلاف څخه خارج شي.

(نو که دغه شرطونه مراعات شي د قاضيخان په قول به عمل وشي او د ده باره کي علامه ابن عابدين رحمه الله ذکر کړي دی (ان القاضي خان من اهل التصحيح والترجيح)

قال و الصحيح ان العقد الذي جرى بينهما ان كان بلفظ البيع لا يكون رهنا ثم ينظر ان ذكر شرط الفسخ في البيع وتلفظ بلفظ البيع بشرط الوفاء اوتلفظ بالبيع الجائز وعندهما هذا البيع عبارة عن عقد غير لازم فكذلك و ان ذكر البيع من غير شرط ثم ذكر على وجه المواعدة جاز البيع ويلزمه الوفاء بالوعد لان المواعد قد تكون لا زمة فتجعل لازمة لحاجة الناس (قاضيخان۲ج۳۵۳ص)

و في الظهرية لو ذكر الشرط بعد العقد يلتحق بالعقد عند ابي حنيفة رحمه الله و قدمنا في البيع الفاسد ترجيح قولهما بعدم التحاق الشرط المتاخر عن العقد به (ردالمحتار۷ج۵۸۳ص)

په فتاوي حقانيه کښي د بيع الوفاء په باره کښي وائي چي په حالت د اضطرار او مجبوري کښي د بايع د پاره د متاخرينو په فتوي باندي د عمل کولو گنجايش شته مگر د سخت مجبوريت څخه بغير ددې معاملې څخه اجتناب پکار دی (حقانيه ۵ج۱۵۱ص)

**دبيع الوفاء فسخه په هر وخت کي روا ده :**

مسئله : دبيع الوفاء فسخه په هر وخت کي روا ده نو که چېرې بايع د مشتري په غوښتنه روپۍ ورکړې مشتري به زراعت قطعه کوي بائع ته به ځمکه ورخلاصوي او که بدون د طلب د مشتري يې ورکړې بيا به د زراعت تر پخېدلو ځمکه د مشتري په لاس کي په اجرت مثل سره پاته وي او که چېرې په مابين د کال کي فسخه وشي نو اخستونکي ته به خپل حساب ورکوي او تقسيم به ئي په دولسو مياشتو کوي وروسته له تقسيم نه به د هر يوه خپله حصه ورکوي.

(جامع الفصولين ا‌ج۱۷۲ص، كامليه ۲۴۸صــ مجله اتاسي ۲ج۴۲۲ص).

(لوفسخ البيع الجائزبعد مضي بعض السنة قيل للمشتري ان ياخذ من الغلة بالحصة فيقسم الغلة على اثنى عشر جزا فياخذ ما مضى سواء ظهرت الغلة اولا(جامع الفصولين ا‌ج۱۷۲ص، مجلةاتاسي۲ج۴۲۲ص)

مسئله: څرنگه چه په بيع الوفاء كي بائع حق لري چه مشتري ته روپۍ وركړي او مبيعه ځيني قبض كړي دارنگه مشتري هم حق لري چه مبيعه وركړي لكن په دې شرط چه د روپو په وركولو كې يې موده نوي معلومه كړې او كه يې موده معلومه كړې وي نو بيا مخكې له تيردلو د مودې مشتري حق د غوښتلو د روپو نلري.

(كما ان للبائع وفاء له ان يرد الثمن وياخذ المبيع كذلك للمشتري ان يرد البيع ويسترد الثمن غير انه اذا كان الثمن مؤجلا فلا يجبر البائع على اداء مثله قبل حلول الاجل لان التاجيل حقه فله ان لايسقطه و اما المديون فله اداء الثمن قبل حلول الاجل و استرداد المبيع اذا اراد و يجبر المشتري لان التاجيل حقه وقداسقطه (مجلة الاحكام ۲ج الماده ۲۹۶،جامع الفوائد۳۳۷ص).

مسئله: كه چيرې يو سړی بيع الوفاء وكړي بيا مشتري په مبيعه باندې بي له اجازې د بائع څه څه مصرف وكړي نو بيا مشتري په بائع باندې رجوع نه شي كولای او كه په امر د قاضي سره يې وكړي بيا رجوع كولای شي.

(باعه جائزا و احتاج الى العمارة ففعل بامر القاضي ان يرجع فله الرجوع (جامع الفصولين ۱۷۴ص)

مسئله: كچيرې مشتري د بيع الوفاء ځمكه شيداره كړي او د زراعت مخكې بائع روپۍ وركړي بې له طلب د مشتري څخه نو د مشتري مزدوري به وركوي

(كرب المشتري وفاء ارض الوفاء للزراعة ثم ادى البائع مال الوفاء وفسخ البيع للمشتري ان يطلب من البائع اجرة الكرب اذاكان بلاطلب المشتري (مجلة الاحكام ٢ج٤٣٠ص)

و الله سبحانه وتعالى اعلم

## د نا جايزو او غير مشروع معاملاتو لنډيز

علامه دوكتور وهبة زحيلي په فقه اسلامي و ادلته كې ليكي :

هغه بيعې او معاملې چې په اسلامي شريعت كې نا جايزه او منع كړ شوې دي ډيرې دي دلته هغه مهم ډولونه بيان شوي چې په څلور ډوله دي :

اول- د اهليت له وجې منع شوې بيعې

دوهم- د صيغې (ايجاب او قبول) له وجې منع شوې بيعې

دريم- د المبيع (مال) او الثمن (قيمت) له وجې منع شوې بيعې

څلورم- د شرط ، وصف او شرعي منع له وجې منع شوې بيعې

**اول- د اهليت له وجې منع شوې بيعې :**

د بيع د صحت د پاره د طرفينو اهليت (بلوغ او عقل) شرط دى په دې خاطر د لاندې اشخاصو سره معامله كول منع دي :

**١- المجنون (لېونى) :** د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دى چې د بيعې د پاره عقل او تميز (په معامله باندې پوهېدل) شرط دي نو ځكه د ليوني او همدانگه نېشه كس سره بيع او معامله كول شرعاً منع دي.

**٢- الصبي (ماشوم) :** د هغه ماشوم سره چې سن يې دومره كوچنى وي چې په معامله نه پوهيږي بيع كول منع دي.

**٣- الأعمى (ړوند) :** كه چيري خرڅونكى ړانده سړي ته د مال ټول توضيحات وكړي او ړوند ورباندې راضي شي بيع د امام ابوحنيفه په نزد صحي ده

مگر د امام شافعي په نزد صحي نه ده ځکه په هغه کې د ادراک جهل دی.

۴- **بيع الفضولي :** بيع فضولي هغه بيع ده چې يو کس د بل چا مال خرڅ کړي حال دا چې نه يې وکيل وي او نه هم اجازت ورته شوي وي يعنې د اجازت څخه بغير د مال خرڅولو ته بيع فضولي وايي دا بيع صحي نه ده مگر په هغه صورت کې چې مالک يې اجازه وکړي دا رايه د امام ابوحنيفه او امام مالک ده مگر د امام شافعی او امام احمد په نزد اصلاً نه صحي کيږي.

۵- **بيع المکره (د الزام او اکراه بيع) :** دا ډول بيع هم د فضولي په څير نه صحي کيږي ځکه په بيع کې رضايت شرط دی په جبر او زور سره بيع نه صحي کيږي.

٦- **بيع المحجورعليه :** محجور هغه کس ته وايي چې مال يې شرعاً حجر شوي وي يعنې د هغه په مال د تصرف کولو څخه منع شوي وي لکه : د مفلس پوروړي هغه پوروړی چې تر مال او جايداد څخه يې پورونه زيات وي او يا د مريض کس ، د حجر مفصل بيان به وروسته راشي.

**دوهم - د صيغې (ايجاب او قبول) له وجې منع شوې بيعې :**

د بيع د پاره ايجاب او قبول شرط دی د بيع لاندې صورتونه ممنوع دي :

۱- **بيع المعاطاة :** بيع المعاطاة هغه بيعې ته وايي چې بايع او مشتري په قيمت او مال سره خوښ او راضي شي مگر ايجاب او قبول ونه کړي (دې ته عملي اقرار وايي) داسې بيع هم د جمهورو په نزد صحي ده ځکه بيع پر هغه څه باندې چې په رضا دلالت وکړي صحي کيږي هغه که په ژبه سره وي او يا اشاره مگر د امام شافعي په نزد دا ډول عقد نه صحي کيږي.

جاء في الفقة الأسلامي وادلته : بيع المعاطاة ،أن يتفق العاقدان على ثمن ومثمن، ويعطيا من غير إيجاب ولا قبول، وقد يوجد لفظ من أحدهما. وهو بيع صحيح عند الجمهور؛ لأن البيع ينعقد بكل ما يدل على الرضا بتبادل الملك في الأموال، سواء بالصيغة المعبرة عن الإرادة صراحة من إيجاب وقبول، أم بما يدل على الرضا عرفاً، اعتباراً بعرف الناس واحتراماً لعاداتهم السائدة فيما بينهم، ما لم تصادم نصاً من نصوص الشرع. فيصح البيع باللفظ أو الإشارة أو بغيرهما، ما دام يدل على المقصود من العلم بتراضي العاقدين، ولم يثبت اشتراط لفظ، فيرجع للعرف كسائر الألفاظ المطلقة. ولا ينعقد البيع بالمعاطاة عند الشافعية

(فقه الاسلامي وادلته، فتح القدير : ٥ ص ٣٠٢ وما بعدها ، رد المحتار : ۴ ص ١٣٧ ، البدائع : ٥ ص ٣٠۴ ).

٢- **البيع بالمراسلة :** د رسالې ، ليک او خط ليږلو په وسيله بيع په اتفاق د فقهاؤ صحي کيږي چې اتحاد د مجلس يې د خط او ليک رسيدل دي او په هغه باندې رضا کيدل دي. کچېري خط او ليک ځواب نشي او په لېږل شوي خط باندې رضا نشي بيع نه صحي کيږي.

٣- **بيع الأخرس بالإشارة المفهومة أو الكتابة :** د ګونګي سړي بيع په اشاره او يا ليکلو سره صحي کيږي ځکه د ضرورت په وخت کې اشاره د نطق او خبرو په معنى ده لکن که اشاره ونه کړي يا يې ونه ليکي بيع نه صحي کيږي.

۴- **البيع مع غائب :** د غايب سړي سره معامله کول چې نه په ژبه وشي او نه په ليک لېږلو سره هغه بالکل غايب او ناخبره وي داسې بيع نه صحي کيږي.

٥- **البيع مع عدم تطابق القبول والإيجاب :** په معامله کې چې ايجاب او قبول موافقه نه وي هغه که د ژبې په اقرار سره وي ، عملي اقرار سره وي

يا خط په وسيله وي د بايع او مشترې د فيصلې او رضايت څخه بغير بيع نه صحي کيږي.

٦- **البيع غير المنجز** :غير انجام او غير تکميل شوې بيع نه صحي کيږي داسې چې د مستقبل په شرط وي چې په راتلونکي وخت کې به مثلاً سبا ته به سواد کوو داسې بيع هم نه صحي کيږي ځکه د بيع د پاره د ماضي او حال ضيعه وي نه د مستقبل دا ډول بيع د امام ابوحنيفه په نزد فاسده او د جمهورو په نزد باطله ده.

**دريم - د المبيع (مال) او الثمن (قيمت) له وجې منع شوې بيعې :**

١- **بيع المعدوم** : د نامعلوم شي بيع لکه بيع مضامين ،الملاقيح او وحبل الحبلة .

**مضامين** : د بچي خرڅول د څاروي په ګېډه کې.

**الملاقيع** : د حيوان د القاح او تخم خرڅول.

**حبل الحبلة** : داسې بيع چې اخيستونکی په خرڅونکي دا شرط کيږي چې زه دغه څاروي په دې شرط اخلم چې لنګه شي او بچی وزيږوي.

دا ډول بيعې په اتفاق د مذاهبو باطلې دي ځکه په صحيح احاديثو کې ورڅخه منع شوې ده.

٢- **بيع معجوز التسليم** : د داسې شي بيع چې قبض کول يې ممکن نه وي لکه په هوا کې مرغان او په سيند کې مهيان دا بيع هم په اتفاق د فقهاؤ نه صحي کيږي.

٣- **بيع الکالئ بالکالئ** : يعنې پور په پور بيع چې (بيع الدين بالدين) هم ورته ويل کيږي دا هغه بيع ده چې يو کس پر بل کس باندې مال تر ټاکلې مودې پورې پلوري کله چې خرڅونکی پور وغواړي او له اخيستونکي سره پور نه وي. ورته وايي دغه پور را باندې بيا وپلوره. يعنې مثلاً : سل افغانۍ

پور وي نيته يې اوږده کړي پرې دوه سوه افغانۍ يې کړي يعنې پور په پور پرې خرڅ کړي.

دا بيع په اتفاق د مذاهبو باطله ده له جهته د منع شرعي.

**۴- بيع الغرر الفاحش :** د زيات غرر بيع د معدوم د بيع په څير باطله ده.

غُرر داسې بيع ته وايي چې په هغه کې د مال يا نرخ کوم يو مقدار او اندازه نه وي معلومه داسې بيع چې مقدار او نرخ يې نا معلوم وي وي منع ده ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه څخه منع فرمايلي ده « نهى عن بيع الغرر» (رواه المسلم).

المعاملات المعاصرة ليکي :

غرر په لاندې دوو شرطونو حرام دی :

که غرر يا اټکل زيات (الغرر الفاحش) ؤ حرام او که لږ وو نو د بيع د صحت د پاره تاوان نه رسوي ، لکه : په حمام کې غسل ځکه په دې کې غرر دی په قد او جسم کې فرق وي ټول يو شان اوبه نه مصرفوي بلکي ځنې کمې او ځنې زياتې اوبه مصرفوي.

يا د يوې ورځې او دوو ورځو د پاره د موټر کرايه کول چې په دې کې هم د وزن ، د سپرلی د شمير او فاصلې فرق وي.

چې په دې کې هم غُرر شته مګر د آسانۍ د پاره په شريعت کې عفوه دی.

**۵- بيع النجس :** د ناپاک او جنس شی بيع نه صحي کيږي لکه : خنزير ، شراب ، مرداره ، وينه او نور

**٦- بيع الماء:** د اوبو بيع درې صورتونه لري :

اول : عامې اوبه لکه : بحرونه ، سیندونه او نور دا د هیڅ چا ملک نشي کیدای

په دلیل د دغه حدیث شریف : «المسلمون شرکاء في ثلاث : في الماء و الکلأ و النار» (رواه أبوداود او احمد).

یعنې : مسلمانان په دریو شیان کې شریک دي : په اوبو کې په خپل سر شنه شویو وښو کې او په اور کې.

دوهم : هغه اوبه چې یو کس یې په ظرف او ذخیره کې ځای پر ځای کړې نو

دغه اوبه د ده ملک دی د دغه اوبو خرڅول جایز دي په دلیل د دغه حدیث شریف :«لأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ فَيَحْتَطِبَ عَلَى ظَهْرِهِ، خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْتِيَ رَجُلاً فَيَسْأَلَهُ، أَعْطَاهُ أَوْ مَنَعَهُ». (بخاری:۱۴۷۰)

ژباړه : که څوک د تاسې څخه طناب واخلي هیزوم (لرګي) جمع کړي او هغه خرڅ کړي او ځانته نفقه ورباندې برابر کړي دا کار د هغه د پاره تر دې غوره دی چې خلکو ته د سوال لاس وړاندې کړي او هغه هم معلوم نه وي چې څه ورکړي او که نه.

د غره پخپل سر شنه شوي واښه او بوټې د چا ملک نه دی مګر که څوک هغه جمع کړي او خرڅ یې کړي جایز دي همدارنګه د ذخیره شویو اوبو خرڅول هم جایز دي.

دریم : د کوهي اوبه او همدانګه د چا په ځمکه کې د باران جمع شوې اوبه ملک بلل کیږي مګر د ضرورت څخه علاوه د چا د منع کولو حق نه لري.

په دلیل د دغه حدیث شریف : «لا تَمْنَعُوا فَضْلَ الْمَاءِ ». (بخاری:۲۳۵۴)

یعنې : د اضافي اوبو څخه څوک مه منع کوئ

(مختصر فقه المعاملات صفه ۷).

**۷- بیع المجهول :** مجهوله او نامعلومه بیع نه صحي کیږي چې جنس ، نوع او مقدار او قیمت یې نه وي معلوم.

**٨- بيع الشيء قبل القبض :** د قبض کولو مخکې بيع نه صحي کيږي که څوک منقول (د نقل وړ) اجناس واخلي مګر پخپله قبضه او ملکيت کې يې را نه ولي يعنې قبض يې نه کړي نو بيا ئې دغه شخص پر بل چا نشي خرڅولای ولو که په خپله بائع باندې هم وي ځکه په دې کې غرر ده..

وقبضه لان بيع المنقول قبل قبضه لايجوز ولو من بائعه کما سياتي في بابه (ردالمحتار٧ج ٢٦٨ص)

**٩- بيع الثمار أو الزروع :** د پخوالي مخکې په ونو کې د مېوې او په ځمکه يا پټې کې د فصل خرڅل جايز نه دي ځکه چې نامعلوم وي.

**څلورم - د شرط او وصف له وجې منع شوې بيعې :**

**١- بيع العَرَبون :** بيع العربون د امام ابوحنيفه په نزد فاسده او د امام شافعي او امام مالک په نزد باطله ده ځکه په سنتو کې ورڅخه منع شوې ده.

بيع العربون هغه بيع ده چې : يو کس په ټاکلي قيمت باندې مال واخلي او د هغه څه پيسې پيشکي ورکړي او ورته ووايي چې نورې پيسې به په فلاني تاريخ درکړم که مې در نه کړې او پښمانه شومه غه پيشکي پيسې ستا شوې چې مونږ ورته بيانيه وايو ، بايع (تجار) ته د بيانيې خوړل رواه نه دي او داسې بيع نه صحي کيږي.

**٢- بيع العينة :** يو سړی څه مال واخلي په معلوم قيمت او د معلومې مودې په قرض سره مګر قيمت يې نه وي ادا کړی چې بايع ورته وايي چې څه قيمت يې کم کړه او په ما يې خرڅ کړه دغه بيع ته بيع عينه وايي په سنتو کې ددې بيع څخه منع شوي د احنافو په نزد فاسده ده.

**٣- بيع الربا :** د سود هر ډوله معامله که د راکړې ورکړې وي او که د پور وي نه صحي کيږي (ددې تفصيل د معاملاتو په بنسټونو کې بيان شوی دی).

**۴- بيع حاضر لباد :** د ښار اوسيدونکی به د اطرافي څخه مال نه اخلي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم ددې څخه منع فرمايلي : «نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم أَنْ يَبِيعَ حَاضِرٌ لِبَادٍ وَإِنْ كَانَ أَخَاهُ لأَبِيه وَأُمِّه» (متفق عليه).

يعنې :رسول الله صلی الله عليه وسلم د ښاري کس خرڅول په اطرافي باندې منع کړي ولو که سکه ورور يې هم وي.

امام نووی رحمه الله په رياض الصالحين کې د دغه حديث شرحه داسې بيان کړې ده :

د ښاري کس لخوا د اطرافي د مال خرڅولو منع داسې ده چې : که يو اطرافي کس ښار ته مال راوړي چې هغه د خلکو ضرورت وي او وغواړي چې هغه د وخت په قيمت خرڅ کړي ، مگر يو ښاري کس ورته وايي دا ما ته پرېږده تر څو زه يې په لوړ قيمت خرڅ کړم ، جمهور فقهاء وايي چې دا نهی په معنی د تحريم ده کچېرې په هغه باندې علم ولري.

د امام ابوحنيفه په نزد نهی کلمه د مکروه تحريمي معنی لري مگر جمهور فقهاء يې په تحريم قائل دي.

**۵- تلقي الرکبان:** د تجارتي کاروان مخې ته د استقبال د پاره مه ورځئ.

رَسُولُ اللَّهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم فرمايي:«لا تَتَلَقَّوُا الرُّكْبَان» (متفق عليه).

يعنې : د سورليو (تجارتي کاروان) استقبال ته مه ورځئ.

مطلب دا چې بغير د اخيستلو څخه د قيمت د زياتوالی څخه منع شوې ده.

دا ډول بيع هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد مکروه تحريمي ده.

**٦- البيع وقت النداء لصلاة الجمعة :** د جمعې د آذان څخه وروسته د بيع ممانعت.

د امام ابوحنيفه په نزد د اول آذان وروسته بيع كول مكروه تحريمي دي او د امام شافعي په نزد حرام د امام مالک په نزد فسخ كول او د امام احمد په نزد بيع نه صحي كيږي.

المبسوط فقه حنفي ليكي : په دې مسئله کې د مكروه تحريمي اطلاق په حرام سره كيږي، المبسوط (ج١ ص١٣٤).

جاء فى الفقه الاسلامي و ادلته :

من حين يصعد الإمام على المنبر إلى أن تنقضي الصلاة، وعند الحنفية: من الأذان الأول.

وهو مكروه تحريماً عند الحنفية، صحيح حرام عند الشافعية، ويفسخ في المشهور عند المالكية، ولا يصح أصلاً عند الحنابلة

٧- **بيع النَجَش :** بيع نجش هغه بيعې ته ويل كيږي چې بايع د خپل مال د اوچت خرڅولو لپاره څو كسان د بولۍ لپاره برابر كړي كله چې مشتري د هغه د مال د قيمت پوښتنه وكړي ، بايع ورته وايي مثلاً په سل افغانۍ، د ده له كسانو څخه يو تن ووايي زه يې په يوسل او لس اخلم بل كس يې وايي زه يې په يوسل او شل افغانۍ اخلم چې اصلاً د دوی اخيستل مطلب نه وي مگر مطلب به يې دا وي چې په مشتري خپل مال په اوچت قيمت خرڅ كړي

دا بيع د امام ابوحنيفه په نزد مكروه تحريمي ده.

٨- **بيع العنب لعاصر الخمر:** كه چېرې څوک په دې باندې علم ولري چې دغه انگور چې په كوم كس باندې خرڅيږي هغه شراب ورځنې جوړوي نو ددې انگورو بيع د جمهورو په نزد حرامه ده.

٩- **بيع الإنسان على بيع أخيه :** د يو انسان بيع د بل ورور په بيع يا په قيمت باندې قيمت هم منع دی ، داسې چې يو كس د يو شي قيمت ولگولو او

تیار شو چې هغه مال واخلي دغه مهال بل کس راغی او قیمت یې ددې لپاره زیات کړ چې خریدار یې وانخلي یا یې دی پخپله واخلي او معامله فیصله شوه بل سوداګر راغی چې زه یې ددې نه په کم قیمت درکوم دا ټول صورتونه په اتفاق د فقهاؤ منع دي په دلیل د دغه حدیث شریف : « لایبع أحدکم علی بیع أخیه » (رواه احمد).

د امام ابوحنیفه او امام شافعي په نزد بیع د ګناه سره صحي ده ، د امام احمد او امام مالک په مذهب بیع فاسده ده.

جاء في فقه الأسلامي وادلته :

وقد أجمع العلماء على تحريم هذه الصور كلها، وأن فاعلها عاص للحديث: « لايبع أحدكم على بيع أخيه »وأما حكم البيع المذكور فمختلف فيه: فذهب الحنفية والشافعية إلى صحته مع الإثم. وذهبت الحنابلة وابن حزم الظاهري والمالكية في إحدى الروايتين عنهم إلى فساده.

۱۰- **بیع وشرط:**دې بیع ته بیع الثنیا هم ویل کیږي، دا داسې بیع ده چې په هغه کې یو شی مجهول وي او یا مجهول او فاسد شرط پکې وي چې د فاسد شرط په لګولو سره بیع فاسدیږي ، مثلاً یو کس د رخت یو ټوټه په دې شرط اخلي چې خرڅوونکی به قمیص ورته ګنډي ، بیع صحي مګر شرط یې فاسد دی.

په حدیث شریف کې راغلي دي : عن جابر أن النبي صلى الله عليه وسلم«نهى عن المحاقلة والمزابنة والمخابرة وعن الثنيا إلا أن تعلم» (النسائي).

همدارنګه په بخاري شریف کې داسې روایت نقل شوی دی :

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضى الله عنه أَنَّهُ قَالَ:«نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُخَاضَرَةِ وَالْمُلامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ وَالْمُزَابَنَةِ» (بخاری: ۲۲۰۷)

ژباړه : انس رضی الله عنه وايي : رسول صلی الله علیه وسلم له دغو معاملاتو څخه منع فرمايلي ده :

**محالقه ، مخاضره ، ملامسه ، منابذه او مزابنه.**

**المحاقلة (د دانو خرڅول په وږو کې):**محاقله بیع دا ده چې تاجر د کښت او فصل له څښتن څخه د وږي له ایستلو سره سم او د پخیدو څخه مخکې غله واخلي او قبضه پرې وکړي او بيا کله چې فصل ورسيږي تجار پخپله خوشه هغه و پلوري.

**المزابنة** : د مزابنه بيع دا ده چې پخه او رسيدلې او وچه شوې له ونو څخه شکول شوي ميوه د داسې (مېوې په بدل کې وپلورل شي) چې په ونو کې وي شکول شوې نه وي، دغه بيع يا راکړه ورکړه اټکلي ده او د اختلافوتو امکان پکې دی.

**مخاضره** :مخاضره بيع هم د خامې مېوې خرڅول ته وايي.

**منابذه** : منابذه د جاهليت د وخت بيع ؤ چې کله به بايع مشتري ته څه مال مثلاً يو تان رخت يا بل جنس ور واچولو نو د هغه بيع به پرې لازمه شوه.

نن هم په ځينو تجارانو کې دا عادت شته که مشتري د کتلو د پاره څه جنس را کوز کړي او بيا يې مشتري وانخلي په تجار ښه نه تماميږي چې دا يو جاهلي عادت دی.

**المخابرة** :مخابرة داسې بيع او تړون دی چې بزګر د ځمکې مالک ته ووايي چې د دغه پټې د فصل دغه طرف زما وي او هاغه طرف به ستا وي دا ډول معامله فاسده ده.

**الثنيا**:الثنيا داسې بيعې ته وايي چې په مال کې څه برخه مثتنی او نا معلومه او مجهوله وي نو داسې بيع هم صحي نه ده ځکه په دې کې غرر دی په بيع کې بايد د مبيع (تجارتي جنس) ټول اجزاء او برخې معلومې وي.

**الملامسة:** ملامسه داسې بيع ته وايي چې که مشتري په تجارتي مال باندې لاس ولګوي نو بس اخيستل يې پرې لازم دي بيا د هغه د کتلو او خوښولو حق نه لري ، دوهم صورت يې دا ؤ چې مشتري به سترګې پټې کړې او بايع او مشترې به دا فيصله وکړه چې په کوم جنس د ده لاس ولګيده هغه په دومره قيمت د ده شو ، دا بيع د جاهليت په وخت کې رواج ؤ چې د اسلام سپېڅلي دين هغه منع اعلان کړه.

**۱۱- الجمع بين البيع وبين عقود:**

د بيع تړون د شپږو نورو معاملاتو له تړون سره يو ځای کول منع دی لکه : د بيع تړون د الجعالة ، الصرف ، المسقاة ، الشركة ، النكاح او المضاربة معاملاتو د تړون سره يو ځای کول منع دي.

ځکه چې بيع او دغو شپږو تړونونو په يو ځای کولو کې غرر او جهالت را مينځته کيږي.

## څلورم فصل
## قرض

**د قرض تعریف :**

قرض په لغت کې پرې کولو ته وايي یعنې قرض ورکونکی د خپل مال یوه ټاکلې اندازه پرې کوي او هغه پورغوښتونکي ته ورکوي.

د فقهې په اصطلاح کې قرض یو ځانګړی تړون دی چې د یو کس له لورې بل کس ته د مال په ورکولو سره صورت نیسي په دې شرط چې د هماغه په اندازه به یې بیرته ورکوي.

جایز او شرعي قرض اصلاً یوه داسې معامله ده چې په هغه کې هدف د بل محتاج کس سره احسان او کومک وي او نیت یې د الله تعالی رضایت وي.

ځکه په شرعي قرض کې مطلب فقط د محتاج او اړ کس د اړې او احتیاج لرې کول وي نور هیڅ عوض او ګټه پکې نه وي ، په هر هغه قرض کې چې عوض او ګټه وي هغه سودي قرض بلل کیږي.

**د قرض د صحت شرطونه :**

١- د قرض مطلب به تبرع ، احسان او د بل کس د اړې او احتیاج رفع کول وي.

٢- د قرض مال به د شمیر ، اندازې او وزن کولو وړ وي مګر د امام محمد په نزد د خلکو د حاجت لپاره د ډوډۍ قرض کول باک نه لري.

٣- د قرض لپاره قبض او تسلیم شرط دی.

۴- د قرض په عوض کې به هیڅ قسم منفعت او ګټه حاصلول نه وي ځکه هر هغه قرض چې ګټه ولري هغه سود دی. (المعاملات المالية المعاصرة لزحيلي ص ٨٠)

په اقتصادي ډګر کې وي او که په ټولنیز ډګر کې قرض چې په پښتو کې ورته پور وايي خورا مهم ارزښت لري ځکه چې په بشري ټولنه کې ټول وګړې په اقتصادي لحاظ برابر نه وي بلکې ځینې مالداره وي او ځینې نور بې وزله

وي. نو د اسلامي ورورولۍ یو اخلاقي اصل دا دی چې شتمن به د بې وزلو سره کومک کوي هغوی ته به د څه وخت د پاره قرض ورکوي.

قرض ته نه یوازې دا چې یوازې بې وزله کسان اړتیا لري بلکي کله داسې هم پېښيږي چې ښه مالداره وي کار يې بند وي د خپلو پیسو د تر لاسه کولو امکان نه وي یا چېرې په سفر تللی وي.

لنډه دا چې قرض په بشري ټولنه کې د احسان، کومک او خواخوږی یو مهم اصل بلل کیږي.

له بده مرغه چې په اسلامي هیوادو باندې شیطاني بازار یرغل کړی دی په اسلامي هیوادونو کې د سود بانکونه او ادارې په علني توګه فعالیت کوي او دغو سودي معاملو د ضعیف الایمانه مسلمانانو څخه کم کم د کومک ، احسان او خواخوږۍ جزبه له مينځه وړې او پر ځای يې ماده پرستي هدف او مطلب ګرځېدلې ده.

**د قرض حسنه فضیلت :**

قرض حسنه هغه قرض یا پور دی چې یو مسلمان يې بل محتاج مسلمان ته د څه وخت د پاره قرض ورکوي او نیت يې د الله تعالی رضا وي ، قرض حسنه زیات فضیلت لري چې په قرآن او سنتو کې يې څو ځایه یادونه شوي ده او هغه يې نیک قرض یا قرض حسن بللی دی.

لقوله سبحانه وتعالی: [إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَ اللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ] (التعابن ١٧).

ژباړه : که چېرې تاسې قرض ورکړئ الله لره قرض نیک (په محبت او اخلاص) نو دوه چنده به کړي الله ثواب د هغه تاسې ته او (الله) به تاسې ته بخښنه وکړي ، الله ښه قدردان دی ښه تحمل واله دی.

أبی امامه رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي:«دخلَ رجلٌ الجنَّة، فرأَى على بابها مكتوباً: الصّدقةُ بعَشرِ أَمثالها، والقرضُ بثمانية عشر» (أخرجه الطبراني في "المعجم الكبير" (٧٩٧٦/٢٩٧/٨)، والبيهقي في "الشعب" (٣٥٦٤/٢٨٤/٣) و السلسلة الصحيحة ٣٤٠٧ ، مگر ابن جوزي او العراقي ضعيف بللی دی).

يعنې : داخل شوي وو يو سړی جنت ته ، هغه ليدلې وو چې د جنت په يو دروازه داسې ليکل شوي وي : د صدقې د پاره لس نيکۍ او د قرض حسن د پاره ١٨ نيکۍ.

عن عبد الله بن مسعود- رضي الله عنه- أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: «ما من مسلم يقرض مسلما قرضا مرتين إلا كان كصدقتها مرة».(رواه ابن ماجه، ص ٣٤٧، صحيح حسن الهيتمي مكي ١٩٣/١والحديث صحيحه السلسة الصحيحة).

يعنې : عبدالله بن معسود رضی الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روايت نقل کړی چې هغه فرمايي : نشته د هيڅ مسلمان د پاره چې خپل مسلمان ورور ته دوه ځله قرض ورکوي مگر هغه لره (دغه قرض ورکول) داسې دي لکه يو ځل صدقه ورکول (د صدقې اجر لري).

فقهاؤ او محدثينو د قرض حسن د اجر زيادت دا بللی دی چې قرض حسن يوازې محتاج کس ته رسيږي.

د محتاج کس سره امداد او د يو کس څخه د مشکل او تکليف لرې کول لوی اجر لري.

په حديث شريف کې راغلي :«من كان في حاجة أخيه، كان الله في حاجته. ومن فرج عن مسلم كربة، فرج الله عنه بها كربة من كرب يوم القيامة. ومن ستر مسلما، ستره الله يوم القيامة» (المسلم ٢٥٨٠)

ژباړه : تر څو چې يو مسلمان د بل مسلمان حاجت پوره کوي الله تعالی به د ده حاجت پوره کوي ،او څوک چې د مسلمان څه تکليف لری کوي نو الله

تعالی به د قیامت په ورځ د ده نه تکلیف لرې کړي ،او څوک چې په مسلمان پرده اچوي الله تعالی به د قیامت په ورځ د ده په عیبونو پرده واچوي.

**پوروړي ته د اسلامي شریعت هدایات :**

پوروړي ته لازمه ده چې خپل پور په وخت ادا کړي او هغه ونه ځنډوي ځکه چې داسې کول خیانت او ګناه ده ځکه :

**۱- د وعدې مخالفت کول ګناه او منافقت دی.**

په وعده باندې وفا کول د مسلمان ستر صفت دی او په وعده باندې وفا نه کول د منافق نښه ده.

[وَالَّذِينَ هُمْ لأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ] (المومنون ۸).

ژباړه : او هغه کسان (کامیاب شول) چې دوی د امانتونو او وعدو رعایت کوونکي دي.

عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:«آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا اؤتمن خان» ( البخاري).

ژباړه : له ابوهریرة رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : د منافق درې نښې دي : چې کله خبرې کوي دروغ وایي، کله چې وعده وکړي په هغه وفا نه کوي او که امانت ور ته ورسپارل شي په هغه کې خیانت کوي.

۲- دا چې د وس لرلو سره سره د قرض پر وخت نه ادا کول په ټولنه کې د پوروړي اعتماد او اعتبار له مینځه وړي او بیا څوک قرض نه ورکوي او هر څوک یې بد پورې او بد معامله ګڼي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې پوروړي ته ظالم او دغه عمل یې ظلم بللی دی ، د ابی هریرة رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«مطل الغنی ظلم» (رواه المسلم).

يعنې : د غني پوروړي له پلوه د قرض مالک ته پور نه ورکول ظلم دی.

۳- کله چې پوروړی پخپل وخت پور ادا نه کړي نو پور ورکونکی مجبوريږي چې خپل پور وغواړي چې په دې سره د پور ورکونکي اجر هم ختميږي. ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : پوروړی ته الله تعالی تر هغه پورې په عملنامه کې ثواب ليکي چې څو پورې هغه قرض نه وي غوښتی کله چې قرض وغواړي نو د ثواب ليکل هم بند شي.

دا چې قرض ورکونکی د قرض په ورکولو سره د پوروړي سره احسان کړی دی نو پوروړي ته په کار ده چې د پور د مالک سره دا احسان وکړي چې هغه ته پخپل وخت قرض ورکړي او هغه د ثواب نه محروم نه کړي.

**پور ورکونکي ته د اسلامي شريعت هدايات :**

دا چې په ټولنه کې د پور ورکول د اسلامي ورورولۍ د احسان او خواخوږۍ يو اصل دی او د پور ورکول لوی اجر لري نو پور ورکونکي ته پکار ده چې لاندې هدايات په نظر کې ونيسي :

۱- د پور ورکولو څخه به يې مطلب يوازې احسان او د الله تعالی رضا وي ، د هغه ذلت پر هغه باندې محنت بارول او پيغور ورکول به يې هدف نه وي.

۲- د پور ورکولو د مهال څخه تر پور اخيستلو پورې د پوروړي سوغات قبلول او د هغه په کور کې ډوډۍ خوړل روا نه دي.

۳- غوره خو دا ده چې قرض ورکونکی به د قرض تر ټاکل شوي وخته پورې خپل قرض نه غواړي تر څو په ثواب کې کمښت را نشي او کله چې وخت پوره شي نو د قرض په غوښتلو کې به ښه سلوک کوي.

۴- که پوروړی بې وسه او تنګ لاسي وي نو هغه ته به مهلت ورکوي او که بالکل يې ور معاف کړي نو دا ډير اجر لري.

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَ إِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ وَأَن تَصَدَّقُواْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقره ١٨٠).

ژباړه :او که ستاسې پوروړی تنگ لاسی وو نو باید چې تر شتمن کېدو ورته انتظار وکړئ او که خیرات پرې وکړئ که پوهیږئ دا درته ډېره غوره ده.

همدارنگه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«من سره أن ينجيه الله من كرب يوم القيامة فلينفس عن معسر، أو يضع عنه» (راوي :عبدالله بن ابي قتاده – مسلم ١٥٦٣).

ژباړه : کوم سړی چه غواړی د قیامت په ورځ الله (جل جلا له) دی له سختیو نه وساتي نو هغه ته پکار ده چه ،هغه تنگ لاسه قرضدار ته مهلت ورکړي یا یې قرض بالکل ور معاف کړي.

**آیا د قرض د پاره وخت ټاکل جایز دي ؟**

ځواب : د قرض د پاره د وخت ټاکل جایز دي.

لقوله سبحانه وتعالى :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ] (البقره ٢٨٢).

ژباړه :ای مؤمنانو ! کله چې تر ټاکلې نیټې پورې د قرض او پور معامله کوئ نو تاسې هغه ولیکئ.

مگر په هغه صورت کې چې د قرض د ادا د پاره وخت ټاکل شوی وي د قرض غوښتلو په اړه د فقهاؤ څو قولونه دي چې دوه مشهور قولونه په لاندې ډول دي :

اول قول دا دی چې : قرض حسنه ورکونکی به د قرض تر ټاکل شوې مودې پورې انتظار کوي (درالمختار ابن عابدين).

دوهم قول : د جمهورو فقهاؤ په نزد قرض ورکونکی هر وخت خپل قرض غوښتی شي.

أحكام رد القرض الحسن في فقه الاسلامية ليكي :

القول الأول: إن القرض يتأجل بالتأجيل، ويلزم المقرض الانتظار حتى يحين الوقت الذي اتفق على تسليم القرض (ابن عابدين، محمد أمين: حاشية رد المحتار على الدر المختار).

القول الثاني : ذهب جمهور العلماء إلى أن القرض مال وأن أُجل لم يتأجل، فللمقرض متى شاء أن يطالب المقترض برده

(كتاب أحكام رد القرض في الفقه الإسلامي -على المذاهب الاربعة).

د قرض په فوري ډول غوښتل (چې د پوروړي په لاس کې څه نه وي) د اسلامي شريعت د اصولو خلاف دی ځکه د اسلامي شريعت قاعده ده چې (لا ضرر و لا ضرار فی الاسلام) ، فوري غوښتلو سره شدت ، تکليف او ضرر وي.

مګر بغير د څه عذر څخه د قرض نه ادا کول ګناه او خطرناک دي.

**که د پخوا وخت چلېدونکي پيسې تغير شي قرض به څنګه ادا کيږي؟**

کچيرې د وخت په تيريدو سره چليدونکي پيسې تغير وکړي، خپل ارزښت له لاسه ورکړي يا يې ارزښت لوړ شي نو مخکنی قرض به څنګه ادا کيږي ؟ په دې اړه د علماء کرامو نظرونو په لاندې ډول دي :

**اول** : امام ابوحنيفه رحمه الله او د شافعيه علماء او حنابله او د مالکيه مشهوره رايه دا ده چې په سړی باندې هماغه مقدار پسې کوم چې مخکې تعين شوی دی ادا کول واجب دي.بغير له زيادت او کمبود څخه.

**دوهم** : امام ابو يوسف رحمه الله وايی : په سړې لازم دی چې د هماغه ورځې د نغدو پيسو د قيمت نسبت جارې نرخ ته حساب کړي او هغه مقدار طلبګار ته ورکړي.

**دریم**: د مالیکه علماء څخه امام رهونی وایي : که د قیمت تغیر زیات وي نو د قرض ورکونکی باید د عقد د وخت نرخ د جارې نرخ سره مقایسه او حساب کړي او هغه اندازه پور غوښتونکي ته ورکړي.

نو د دوهم او دریم قول له مخې په سړی واجبه ده چې پوروړی ته د عقد د وخت نرخ د نن زمان د نرخ سره حساب کړی.

او د اول قول له رویه چې مشهور دی په سړی څه شی نه لازمیږي مګر هماغه مقدار پسې په کومو چې پخوا عقد شوی وي.

د هیئت اقتصاد عالمي اسلامي توصیه دا ده چې د جمهورو علماؤ (اول قول) په رأی عمل وشي تر څو احتیاطاً د سود د خطرې نه ځان بځ کړ شي. او سود دې ته وایي چې یو کس چا ته پیسې پور ورکړي او د قرض اخیستلو په وخت کې د هغه څخه زیاتي پیسی طلب کړي.

که څه هم د ځینو علماؤ په نزد د بې ارزښته پیسې د جاري نرخ له رویه حسابول جایز دي خو بیا هم د جمهور قول دا دی چې هماغه مقدار پیسې به ادا کیږي.

د شبهاتو څخه د لرې والی په وجه په اول قول عمل په کار دی.

ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«مَنِ اتَّقَى الشُّبُهَاتِ، فقَد اسْتَبْرَأَ لِدِينِهِ وَعِرْضِهِ» بخاري (٥٠) مسلم (٢٩٩٦).

یعنې: هر چا چې له شبهاتو څخه پرهیز وکړ په رښتیا چې هغه خپل دین او آبرو وساتل .

( موقع عالمی الاقتصاد الاسلامیة) .

**د قرض د نه ادا کولو سزا :**

د قرض نه ادا کول او د هغه په ادا کولو کې غفلت کول ددې سبب ګرځي تر څو له دنیا څخه سړی په داسې حال کې رحلت وکړي چې د خلکو پوروړی

وي ، په داسې حال کې چې په آخرت کې نه درهم شته او نه دينار بلکي هلته به د پيسو په مقابل کې د نيکو اعمالو بدله او ثواب ورکول کيږي ، د پور د نه ادا کولو په اړه په احاديثو کې د وعيد او سخت خبرداری ډک ارشادات :

د ابی موسی ضی الله عنه نه روايت دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائي:

«اَعْظَمُ الذَّنُوبِ عِندَاللهِ اَنْ يَّلْقَاه عَبْدُ ُ بعدَ الْكَبَائِرِالَّتِي نَهي اللهُ عَنْهَا اَنْ يَّمُوْتَ رَجُلُ وَ عَلَيْهِ دَيْنُ ُ لاَ يَدَعُ لَهُ قَضَاءُ ُ» (رواه احمد).

د هغو کبيره ګناهونو نه پس د کومو نه چه الله تعالی منع فرمايلې ده لکه (شرک،زنا،وغيره) د ټولو نه لويه ګناه دا ده چه سړی په داسې حال کې مړ شي چې په هغه باندې د چا قرض وي او د هغه د ادا کولو لپاره يې څه نه وی پريښي.

د ابی هريرة رضی الله عنه نه روايت دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائی:

«نَفْسُ الْمؤْمِنِ مُعَلَّقَةُ ُ بِدَيْنِهِ حَتَّي يُقْضي عَنْه» (ابن ماجه ،ترمذی ،داؤد و مسند احمد).

ژباړه:د مؤمن بنده روح د هغه د قرض په وجه زوړند او بند کړ شوی وي تر هغې پورې چه څو پورې د هغه قرض نه وي ادا شوی.

د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائی:

«يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ اِلاَّ الدَّيْنَ» (رواه مسلم).

يعنې: شهيد لره به د ټولو ګناهونو مغفرت وشي بغير له قرض څخه.

«..... وَالَّذِي نَفْسَ مُحَمَّدُ ُ بَيَدِهِ لَوْ اَنَّ رَجُلاً قَتَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ ثُمَّ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ ثُمَّ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ وَعَليهِ دِيْنُ مَا دَخَلَ الْجَنَّةَ حَتَّي يُقْضي دَينُه» (رواه احمد ، المستدرك على الصحيحين).

ژباړه : قسم دی په هغه پاک ذات باندې د چا په قبضه کې چه د محمد صلی الله علیه وسلم روح دی ،که چېرې یو سړی د الله تعالی په لارکې (جهاد) کې شهید شي او بیا ژوندی شي او بیا شهید شي او بیا ژوندی شي او بیا د خدای (جل جلاله) په لار کې شهید شي او د ده په ذمه باندې قرض وي نو هغه جنت ته تر هغې پورې نشي تلی ، څو پورې چه د ده قرض نه وي ادا شوی.

همداسې بل حدیث شریف کې راغلي:«مَنْ أَخَذَ أَمْوَالَ النَّاسِ يُرِيدُ أَدَاءَهَا أَدَّى اللَّهُ عَنْهُ وَمَنْ أَخَذَ يُرِيدُ إِتْلَافَهَا أَتْلَفَهُ اللَّهُ» (رواه البخاري).

ژباړه : کوم سړی چه د خلکو نه په قرض مال واخلي ،او د ده نیت او اراده د ادا کولو وي ، نو الله تعالی به یې اداکړي (په ادا کولو کی به د ده مدد وکړي، او که په ژوند کې هغه ادا نشيٍ کړای نو په آخرت کې به یې د هغه د طرف نه ادا کړي) او چه څوک د چا نه قرض واخلي او د هغه اراده د خوړلو وي، نو الله تعالی به یې برباد کړي (په دنیا کی به هم ده غه بد نیت د سړي امداد ونه کړي او په آخرت کې به هم د هغه د پاره وبال جوړشي).

د مړي قرض په چټکی سره خلاصول په کار دي ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا عادت ؤ چه کله به کومه جنازه ده ته پیش شوه نو هغوی صلی الله علیه وسلم به د مړي له ورثې څخه پوښتنه کوله چه آیا په دغه کس باندې د چا قرض شته او که نه؟ که به د چا پوروړی وو نو د مړی ورثې ته به یې د هغه د قرض په ادا کولو حکم کولو. و ما توفقی الا بالله علیه توکلت والیه انیب

**حواله**

حواله په لغت کې خپله ذمه واري پر بل چا اچولو ته وایې او په شریعت کې د خپل قرض ذمه واري د بل چا طرف ته نقلولو ته حواله وایي.

**مشروعیت :**

حواله په دلیل د دغه حدیث شریف جایز ده :

«مطل الغني ظلم، و إذا أتبع أحدكم على ملئ فليتبع» (متفق عليه)

ژباړه : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : غنې لره د قرض په ادا کولو کې ځنډ کول ظلم دی او کچېرې پوروړی (خپل پور) یو د تاسې نه چا ته حواله کړي چې هغه د قرض په ادا کولو قادر وي نو هغه یې دې قبول کړي.

د جمهورو فقهاؤ قول دا دی چې د حوالې قبلول واجبي حکم نه دی بلکې قبلول یې مستحب یوه اخلاقي ذمه واري ده.

**د حوالې د صحت شرطونه :**

۱- د پوروړي او پورغوښتونکي او هغه چې د پور پرې کول هغه ته حواله شوي وي رضایت شرط دی.

۲- د پور غوښتونکي او حواله قبلونکي حق به په جنس، مقدار، نغد ، قرض، ښه او بد کې بالکل یو شان وي.

۳- قرض او پور به ثابت وي داسې نه چې کوم کس خپل اجرت ثابت او تر لاسه کړی نه وي په هغه باندې حواله ورکول صحي نه دي یعنې حواله ورکونکی باید لومړی خپل ملکیت او حق ثابت کړي.

**بل هیواد ته د پیسو حواله او په هغه کې تأخیر څه حکم لري ؟**

شرعي صرافي او حواله څه ډول تر سره کیږي ؟

پوښتنه: نن صبا په ټولو هیوادونو کې د اسعارو تبادله او حواله یو معمول دی زمونږ په ملك کې ډیر قسمونه د اسعارو په مختلفو طریقو تبادله کیږي غواړم چی پوه شو چې صحیح طریقه یې کومه ده.

۱- یو نفر ډالر په افغانۍ تبادله کوي یولك ډالر صراف ته ورکوي چې په مقابل کی صراف د (٥٦)لکه پرچه ورکوي او تاریخ یو یا دوه ورځې وروسته

ورته ليكي چې دلته ديو شخص له خو ډالر قبض شول او بل طرف نه تأخير شو ايا دغه معامله سود ده او كه نه؟.

٢ - صرافان نن صبا حواله كوي چی په كابل كي يو نفر ورته يولك ډالر وركړی په دوبی كې ورته يو يا دوه ورځې وروسته (٩٩٠٠٠)ډالر وركوی أو د (١٠٠٠) ډالر ددوی په اصطلاح كميشن ورنه اخلی او يا د ډالرو په مقابل كی هلته درهم وركوي چی دلته د يو خو نه نغد اخيستل كيږي او بل ورته يو ساعت يا يوه ورځ ورسته اسعار وركوي ايا دغه خو سود يا ربا نه ده؟.

كچيری سود وی نو صحيح او اسانه لاره يي كومه ده ؟.

مننه ستاسو د تفصيلی جواب په هيله   محمد نبی د كابل نه

ځواب:

**اول :** د قرض مبلغ به ثابت وي يا ډالر او يا افغانۍ ، داسې نشي كيدای چې د مودې مخكې د اسعارو د تبادلې نرخ وټاكل شي ، چې ما ته به هغه وخت د لسو زرو ډالرو شپږ لكه افغانۍ راكوي ، داسې كول حرام دي.

بلكي د پور د ادا په وخت كې به يا ١٠٠٠٠ ډالر او يا د هغه ورځې د اسعارو د نرخ موافق افغانۍ اخلي.

مجتمع الفقه اسلامي ليكي :

العبرة في وفاء الديون الثابتة بعملة ما : هي بالمثل وليس بالقيمة ؛ لأن الديون تُقضى بأمثالها ، فلا يجوز ربط الديون الثابتة في الذمة ، أيا كان مصدرها ، **بمستوى الأسعار.** مجلة " المجمع " (عدد ٥ ، ج٣ ص ١٦٠٩).

او د پور په ادا کولو کې دا باک نه لري چې سړی د ډالر پر ځای افغانۍ یا د افغانۍ پر ځای کلداري واخلي په شرط ددي چې د همغه ورځې د اسعارو په نرخ تبادله شي.

په دلیل د دغه حدیث شریف : قال ابن عمر رضي الله عنهما : كنا نبيع الإبل بالدراهم فنأخذ عنها الدنانير ، ونبيع الدنانير فنأخذ عنها الدراهم ، فقال النبي صلى الله عليه وسلم : (لا بأس أن تأخذها بسعر يومها).

یعنې : ابن عمر رضی الله عنه وایي چې اوښ مو په درهمو پلورلی ؤ او د هغه نه مو دینارونه واخیستل ، او سودا مو په دینار باندې کړی ؤ بیا به مو د هغه څخه درهم واخیستل ، دا مسئله مو د جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره شریکه کړه ، هغه وفرمایل : چې باک نه لري په شرط ددې د ورځې په نرخ تبادله شي.

**دوهم :** د نغدو پیسو بدلول لکه ډالر په افغانۍ او افغانۍ په کلدارو په مختلف نرخ جایز دي په دې شرط چې لاس په لاس وي ځکه چې جنس یې سره مخالف دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«فَإِذَا اِخْتَلَفَتْ هَذِهِ الْأَصْنَافُ فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ» (مسلم).

ژباړه:کله چې دا اجناس مختلف وي څنګه چې غواړی لاس په لاس یې معامله کړئ.

د اسعارو په تبادله کې دا شرط دی چې لاس په لاس به وي یعنې طرفین به په یوه مجلس کې عقد کوي او پیسی به تحویل اخلي او که داسې نه وي نو ربا نسیه بلل کیږي.

د پورته حدیث شریف په دلیل ځینې معاصر فقهاء د حوالی دا شکل چې بل هیواد ته حواله کوي او د پیسو په اخیستلو کې ځنډ راځي صحي نه بولي.

صحيح (شرعي) حواله باید لاندې دوه حالتونه ولري :

یا به پیسې مربوطه هیواد ته حواله کوي او ورسته به هلته د همغه هیواد په پیسو په ورځنۍ او حاضر نرخ تبادله کیږي.

او یا به مخکې پخپل ښار یا هیواد کې دغه پیسې چې حواله کوي یې د همغه هیواد په پیسو بدلوي او وروسته به یې مربوطه هیواد ته حواله کوي او هلته به یې قبض کوي.

مگر ځینې معاصر فقهاء بیا وایي : چې د حوالې دا طریقه صحي کیږي ځکه بانک یا صرافي مشتري ته د حوالي سند یا چک ورکوي او دا رسید یا چک د قبض ځای نیسي.

د علمي ټولنې او افتاء دایمي ټولنه لیکي : د یو هیواد څخه بل هیواد ته حواله کول د هغو هیوادونو په رواجي پیسو باندې جایز دي که څه هم برابر نه وي ځکه جنس یې یو شان نه دی مگر دا حواله کول به په دې شرط وي چې په یو مجلس او عقد کې صورت و نیسي البته د چک یا سند اخیستل د قبض په حکم کې داخل دي. " فتاوى اللجنة الدائمة " (١٣ / ٤٤٨).

او همدارنگه په فتوی "مجمع الفقه الإسلامي (١١٣-١١٤) کې همدا نظر ذکر شوی دی.

او د ضرورت پر بنا همدا سند یا پارچه ورکول د قبض حکم لري او داسې حواله صحي ده .

و الله سبحانه وتعالی اعلم

## الرهن (گاڼه یا گروي)

گاڼه یا گروي چې په عربي کې ورته رهن وایي په هغه صورت کې چه سړی په سفر کې وي روپو ته یې ضرورت پیښ شي یا په خپل وطن کې وي خو

څوک و نه پیژني او یا د قرض د آدا کولو اعتبار موجود نه وي یعنې د قرض د حفاظت د پاره یوه وسیله ده.

په دغه صورتونو کې د اسلام اقتصادي نظام  ددې ډول ستونزو حل د رهن یا ګروی د حکیمانه لاری په مشروعیت سره کړی دی.

رهن یا ګروي په اسلامې شریعت کې یو جایز بیع ده چې په قرآن او سنتو ثابته ده.

لقوله سبحانه و تعالی: وَإِن كُنتُمْ عَلَى سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُواْ كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُم بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ أَمَانَتَهُ وَلْيَتَّقِ اللّهَ رَبَّهُ (البقره ٢٨٣).

یعنې : که تاسې په سفر کې واست او لیکونکی مو ونه موندو نو پکار ده چې یو څیز په ګرو واخلئ ، نو که ځینو ستاسو ځینې نور امین وګڼل نو په چا چې باور شوی دی باید د هغه بل امانت ورکړي او د خپل رب څخه دې وډار شي .

حضرت انس رضی الله عنه  وایي : جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مدینه کې د څه غلې په بدل کې یهودي ته خپله زغره په ګرو ایښې وه وَلَقَدْ رَهَنَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم دِرْعًا لَهُ بِالْمَدِينَةِ عِنْدَ يَهُودِيٍّ، وَأَخَذَ مِنْهُ شَعِيرًا لأَهْلِهِ  (بخاری: ٢٠٦٩).

**د رهن تعریف :**

رهن عربی لفظ دی چه معنی یې څه څیز لره د څه سبب په بنا باندې منع کول یا پابندول دي.

په شرعی اصطلاح کې رهن د مال بندول او توقیف دی ،د حق په مقابل کې،دومره مال چې د حق نه ادا کولو په صورت کې له ګرو شوي شي څخه حق پوره کیدای شي.

**درهن (ګاڼه یا ګروی)ارکان او شرطونه :**

۱- ګروی به د دواړو په رضامندۍ وي.

۲- د ګروی دوهم رکن قبضه ده کوم شی چه په ګروی ورکول کیږي باید هغه شی مرتهن (ګرو نیونکي) ته په قبضه کې ورکړ شي ،مثلاً ځمکه په ګروی کې ورکوي خو په هغه باندې د بل چا قبضه وي نو دا ګروی نه صحی کیږي.

۳- ګرو ایښودونکی او ګرو اخیستونکی به دواړه قاعلان وي ،یعنی په معامله باندې به پوهیږي.

۴- د ګرو شی به ددې قابل وي چه خرڅ شي قیمت پرې وصول شي،موجود وي او دګروی په وخت کې په هغه قبضه کیدای شي.

مثلاً ځوک د دریاب ماهیان ،دباغ میوه د موسم نه مخکې یا په بل ملک کې مال وي چه دهغه په راتلو وخت او خرچ لګي ،نو دا ټول ځیزونه په ګرو ایښودلو کی نه صحی کیږی.

**د راهن (ګاڼه یا کرو ایښودونکی) مسئولیتونه او حقوق :**

۱- راهن یاګرو ایښودونکی باید دګرویمال ګرو اخیستونکی ته تسلیم کړي.

۲- تر ځو چه ګرو اخیستونکي ته دګروی شی نه وي حواله شوي نوګرو اخیستونکی هغه معاهده فسخ کولای شي.

۳- دګاڼه یا ګرو شوي شي له تسلیمۍ او دګاڼه ګرو اخیستونکی د رضامندۍ نه ورسته ګاڼه ایښودونکی معاهده نشي فسخه کولای.

۴- ګانه ایښودونکی د ګاڼه کړي شي د بدلولو د اختیار جواز لري په هغه صورت کی چه ګاڼه اخیستونکی  پرې راضی وي.

۵- د ګاڼه یاګروی په موده کې دګاڼه شوي شي چه څومره زیاتوالی اوګټه کړې وي هغه به هم له ګاڼه یا ګروی سره یوځای د راهن یا ګاڼه ایښودونکی وي، او دی به یې د کټې په توګه نه اخلي.

مثلاً د باغ میوه ،د ځمکې حاصیلات ،د څاروی بچی او د مکان کرایه دا ټول څیزونه دراهن یا ګاڼه یاګروی ایښودونکي دي.

نو څرنګه چه دګاڼه کړي شي ګټه د ګاڼه ایښودونکي وي نو په هغه چه څومره مصرف شوی وي هغه مصرف به ګاڼه اخیستونکی ته ورکوي.

مثلاً دځمکی د بزګرۍ مصارف ،د څاروي مصارف او نور به ګاڼه اخیستونکي ته ورکوي.

٦- که راهن مړ شي نو د ګاڼه یا ګروی معاهده فسخ ده ،نو د ده وارثان به له ترکی نه قرض ادا کوي او ګاڼه شوی شی به بیرته اخلي.

**دګرو اخیستونکی مسئولیتونه اوحقوق :**

۱- ګرو اخیستونکي به د ګروی مال یو امانت ګڼی او د هغه به پوره ساتنه کوي.

۲- د ګرو شي په ساتنه او حفاظت چه کوم خرڅ کیږي هغه دګرو اخیستونکی په غاړه دی ،خو که دا خرڅ دګرو شوي شي د بقا او ګټې لپاره وي نو بیا په ګرو ایښودونکی دی.

۳- ګرو اخیستونکی له ګرو شي څخه ګټه نشي اخیستی ،د ځمکې حاصلات نشي خوړلی ،په سرو او سپینو زرو او نغدو پیسو تجارت نشی کولی ،د باغ میوه نشي خوړلی.

۴- که ګرو ایښودونکی دګرو شي د بقا او ګټې خرڅ نه ورکوي ، نوګرو اخیستونکی چه په هغه کوم خرڅ کړی وي نو هغه به د ګروی شي له کټې څخه کټ کړي.

۵- په ګرو شي کې که څه خرابی راشي نو هغه دګرو اخیستونکي مسئولیت دی یعنی د قرض د ادا کولو په وخت کې به راهن یا ګرو ایښودونکی ته اختیار وي چه د تاوان په اندازه روپۍ ترینه کټ کړي.

۷- که راهن یا ګرو ایښودونکی موجود نه وي ګرو اخیستونکی بغیر د حکومت له اجازی ګاڼه کړی شی نشي خرڅولای.

۸- که مرتهن یعنی ګرو اخیستونکی مړ شي نو د هغه وارثان به دګرو شي ګرو اخیستونکي وي.

**د ګرو شی څخه فائده اخیستل :**

په ننۍ زمانه کې دګرو ایښودونکي او ګرو اخیستونکي دواړو په ذهن کې دا وي چه ګرو ایښودونکی به ګټه اخلي ولی په ګروۍ باندی ګټه اخیستل سراسر سود دی ،ځکه چه دلته دقرض په بدل کی ګټه په لاس ورځي او هغه خوري داسې نه کوي چه ګټه په قرض کی حساب کړي.

د اسلامی شریعت عمومي قاعده ده «کل قرض جر نفعا فهو ربا»

یعنې: هر قرض چې نفع ولري سود دی.

حتی د پوروړی سوغات اخیستل هم ناجایر دي ،رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«اذا اقرض الرجل الرجل فلا یأخذ هدیة» (بخاري).

ژباړه : کله چې یو سړی بل ته پور ورکړي نو د پوروړی سوغات دی نه قبلوي.

بل دا چې ګاڼه یا ګروي هم د قرض یو شکل دی ګرو شی د امانت شکل لري چې د قرض خلاصولو د اطمنان د پاره یوه وسیله وي او بل دا چې که قرض ادا نه شي نو ګرو شوي شی به وپلوري او دخپل قرض په اندازه به له هغه څخه خپل قرض په لاس راوړي نو په همدې بنا له ګروۍ څخه هم په هر صورت چې وي ګټه پورته کول ناجایز دي.

دا مسئله په لاندې مراجعو کې بيان شوې ده :

فى الشامى عن المنح لا يحل له ان ينتفع بشئ منه بوجه من الوجوه و ان اذن له الراهن لانه اذن له فى الربا الخ ثم قال ثم رئيت فى جواهر الفتاوى اذا كان مشروطاً صار قرضاً فيه منفعة وهو ربا .

لا الا انتفاع به مطلقاً الا باذن كل للآخر و قيل لا يحل للمرتهن لانه ربا و قيل ان شرطه كان ربا و الا لا (الدر المختار كتاب الرهن ٦/٤٨٢ سعيد)

وقد سئل علماء اللجنة الدائمة للإفتاء : تنتشر في بعض قرى مصر عادة رهن الأراضي الزراعية، إذ يقوم الرجل الذي يحتاج إلى مال بأخذ المال من الرجل الذي يملك المال، وفي مقابل أخذ المال يأخذ صاحب المال الأرض الزراعية التي هي ملك للمدين كرهن، ويأخذ صاحب المال الأرض وينتفع بثمارها وما تدره الأرض، ولا يأخذ صاحب الأرض من الأرض شيئا، وتظل الأرض الزراعية تحت تصرف الدائن حتى يدفع المدين المال لصاحبه. فما حكم ذلك

فأجابوا :

"من أقرض قرضا فإنه لا يجوز له أن يشترط على المقترض نفعا في مقابل القرض؛ لما روي عن النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أنه قال: (كل قرض جر نفعا فهو ربا) ، وقد أجمع العلماء على ذلك، ومن ذلك ما ذكر في السؤال من رهن المقترض للمقرض الأرض، وانتفاعه بها إلى تسديد القرض الذي له على صاحب الأرض، وهكذا لو كان له عليه دين، لم يجز لصاحب الدين أن يأخذ غلة الأرض أو الانتفاع بها في مقابل إنظار المدين، ولأن المقصود من الرهن الاستيثاق لحصول القرض أو الدين، لا استغلال الرهن في مقابل القرض أو الإهمال في تسديد الدين. وبالله التوفيق، وصلى الله على نبينا محمد وآله وصحبه وسلم " انتهى.

"فتاوى اللجنة الدائمة" (١٧٧/١٤)

لنډ دا چې ګروي هم د قرض يو شكل دى په هغه فائده حاصلول سود دى.

**په ګرو کور کې اوسیدل او د هغه کرایه ورکول:**

په ګرو کور کې اسېدل او د هغه کرایه هم ورکول یو سودي لین او دین دی د شریعت عمومي قاعده ده (کل قرض جر نفعافهو ربا) په هر قرض کې چې ګټه وي هغه سود دی.

(فتاوي ديوبند ج ٢ ص ٦۴٣ ، اسلامې فقه ، مراة المجلة ج١ ص ٣٨٩ او بهشتی زیور)

قال الدكتور وهبة الزحيلى فى الفقة الاسلامى وادلته (١٣۴/٦) :

و عليه نرى ان ما اعتاده الناس فى زماننا من رهن الدور على ان يسكنها المرتهن ، ريثما يرد اليه الراهن دينه ، و هو قرض غير جايز باتفاق المذاهب.

او بل دا چې په یوه معامله کې د قرض او اجارې دوي معاملې نشي جمع کیدای. که د رهن یا ګروی په معامله کې اجاره تر سره شي نو رهن باطل دی.

كما فى الدرالمختار بخلاف لا اجارت والمبيع والهبه والرهن من المرتهن او من اجنبى اذا باشر احدهما باذن الاخر حيث يخرج من الرهن وفي الشامى و اما الاجارة فالمستاجر ان كان هو الراهن فهى باطلة الخ و ان كان هو المرتهن وجدد القبض للاجارة بطل الرهن الخ. (نقل فى الفتاوى دارالعلوم ديوبند ج ٢ ص ٦۴٢).

**په ګرو کور کې بغیر له کرایې ورکولو اوسېدل :**

د احنافو په نزد په ګرو کور کې اوسیدل جایز نه دي مګر دا چې د مالک یې اجازه وي او ځینې وایي که اجازه یې هم وي جواز نلري ، ځکه دا د قرض څخه یو قسم استفاده کول دي .

جاء في حايشه ابن عابدين :

( لا انْتِفَاعَ بِهِ مُطْلَقًا ) لا بِاسْتِخْدَامٍ , وَلا سُكْنَى وَلا لُبْسٍ وَلا إجَارَةٍ وَلا إعَارَةٍ , سَوَاءٌ كَانَ مِنْ مُرْتَهِنٍ أَوْ رَاهِنٍ ( إلا بِإِذْنٍ ) كُلٍّ لِلآخَرِ , وَقِيلَ لا يَحِلُّ لِلْمُرْتَهِنِ لأَنَّهُ رِبًا , وَقِيلَ إنْ شَرَطَهُ كَانَ رِبًا وَإِلا لا (حايشه ابن عابدين ٣١٠/٥ ) .

قال وهبة الزحيلي في الفقه الاسلامي وادلته :

قال الحنفية: ليس للراهن أن ينتفع بالمرهون استخداماً أو ركوباً أو لبساً أو سكنى وغيرها، إلا بإذن المرتهن، كما أنه ليس للمرتهن الانتفاع بالرهن إلا بإذن الراهن(البدائع: ٦/١٤٦، الدر المختار: ٥/٣٤٢).

د گروی د بحث پای

**امانت او وديعت :**

امانت د خيانت ضد دی امانت او وديعت دې ته وايي چې خپل مال د ساتنې او حفاظت لپاره بل چا ته و سپارې.

په دنيا کې کله نا کله انسان ته دا صورت پيښيږي چې د خپل شي يا روپو د حفاظت لپاره له نورو څخه مدد وغواړي.

په داسې موقع کې د اسلامي وروروليۍ دا يو اخلاقي اصل دی چې د خپل مسلمان ورور له مدد څخه منع ونه کړي ځکه چې انسانان سره تړلي دي خامخا به يو بل ته د مرستې د پاره اړ کيږي.

**په اسلامي شريعت کې په امانت باندې تأکيد :**

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا] (النساء ٥٨).

يعنې : الله تعالى تاسی ته حکم درکوي چه امانتونه او حقوق د هغی مالکانو ته ورسوئ.

[إِنَّ اللَّهَ لاَ يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ] (الحج ٣٨).

يعنې : الله تعالى هر خيانت گر او ناشکره نه خوښوي

د مؤمن يو ستر صفت د امانت ساتل دي :

[وَالَّذِينَ هُمْ لأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ] (المومنين ٨).

(هغه کسان کامياب شول) کوم خلق چې د خپلو امانتونو او وعدو خيال ساتی.

همدارنګه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایې :«لاایمان لمن لا امانة له» (رواه احمد).

یعنې : چه په چا کې امانتداری نه وي د هغه زړه له ایمان نه خالی وي (کامل مؤمن نه دی).

عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:«آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا اؤتمن خان» (البخاري).

ژباړه : له ابوهريرة نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايی: د منافق دری نښې دی : چې کله خبرې کوي دروغ وايي ، کله چې وعده وکړي په هغه وفا نه کوي او که امانت ور ته ورسپارل شي په هغه کې خيانت کوي.

**د امانت حکم :**

موسوعة الفقهیه لیکي : څوک چې د امانت د ساتنې توان ولري هغه لره د امانت او ودعیت ساتل مسحب دي یعنې:امانت یو اخلاقي مسئولیت او د ښه سلوک نوم دی ددې وجې نه قانوناً د امانت په ایښودلو کې کوم جبر نشته او نه هم څوک ورباندې مجبور کیدای شي.

مګر که د مال د هلاکت ویره وي بیا د امانت ساتل واجب ګرځي ځکه د مسلمان د مال حرمت داسې دی لکه د هغه نفس حرمت د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«حرمة مال المؤمن کحرمة دمه» (صحيح الجامع ۳۱۴۰).

یعنې : د مؤمن د مال حرمت داسې دی لکه د هغه د وینو حرمت.

د امانت ساتل واجب دي هغه که هر قسم امانت وي او همدارنګه د امانت سپارل خپل مالک ته واجب دي لقوله سبحانه وتعالی :

[إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا] (النساء ۵۸).

يعنې : الله تعالى تاسى ته حکم درکوي چه امانتونه او حقوق د هغى مالکانو ته ورسوئ.

همدارنگه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنْ ائْتَمَنَكَ ، وَلا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ» (رواه الترمذي -١٢٦۴) .

يعنې : چا چې تا ته امانت سپارلى وي د هغه خيال ساته ، او چا چې ستا سره خيانت وکړ ته د هغه سره خيانت مه کوه (موسوعة الفقهية –أمانة).

که په اتفاقى ډول د يوى حادثې له مخې امانت ضايع شي نو په امين څه تاوان نشته ولى که قصداً يې د خرابۍ کوښښ وشي يا يې په ساتنه کې غفلت وشي نو بيا به د هغه تاوان ورکوي.

**د امانت او وديعت تر مينځ فرق :**

که څه هم امانت او وديعت ځنې فقهاء يو شان الفاظ بولي مگر ځينې فقهاء په اصطلاحي معنى کې لږ شان فرق ورکوي داسې چې :

په وديعت کې قصد او اراده لرل ضرور دي او په امانت کې په قصد سره او بغير له قصد سره هم کيداى شي.

مثلاً : يو کس په لاره کې څه ځيز مومي دا ځيز به د هغه په لاس کې امانت وي وديعت نشي کيداى مگر که څوک د چا سره څه مال د حفاظت د پاره کيږدي نو دې ته امانت هم ويلاى شو او وديعت هم مطلب دا چې هر وديعت ته امانت ويلاى شو خو هر امانت ته وديعت نشو ويلاى.

**د وديعت شرطونه :**

١- د هغه شيانو امانت او وديعت صحي دى چې امين ته د هغه قبض کول ممکن وي.

٢- امانت ايښودونکى او امين به دواړه عاقلان او په معامله پوه وي.

۳- د ودیعت په موده کې که د امانت څیز څخه څه فائده په لاس راغله نو هغه د امانت ایښودونکي ده مثلاً یو کس چا ته غوا په امانت و سپارله وروسته د هغې بچی وشو بچی به هم د امانت مالک ته سپارل کیږي.

**د امین (امانت ساتونکي) مسئولیتونه :**

۱- امین به د امانت داسې ساتنه کوي لکه د خپل شي چې کوي.

۲- امین د امانت ساتنه خپله هم کولای شي او په خپل اهل عیال او خپلوانو یې هم کولای شي مګر په شرط ددې چې په هغوی کې خیانت نه وي. کچېرې د هغوی څخه امانت ضایع شو امین به د هغه تاوان ورکوي.

۳- کچېري امین امانت بل کس ته سپاري د امانت د مالک څخه به اجازه اخلي. او یا به امین دغه امانت داسې چا ته سپارې چې د هغه سره د ده امانتونه هم وي نو په دې کې څه باک نشته.

۴- امین ته د امانت څیز استعمالول جایز نه دي مګر که د امانت مالک اجازه ورته وکړي جایز دی.

۵- کوم ځای چې امین ته امانت سپارل شوی وي په همغه ځای به امانت ورسپاري.

٦- د امانت په ساتلو کې د ډیرو کسانو برخه اخیستل هم صحي دي که ټولو اقرار وکړ نو ټول یې په ساتنه مسئول دي.

**د امانت تاوان څه وخت واجبیږي ؟**

۱- که امانت د امین د ناراستی او غفلت بغیر ضایع شو نو په امین باندې د هغه تاوان نشته.

که د امانت په ساتلو کې امین ناراستي او غفلت و کړ هغه یې د مالک د اجازې بغیر استعمال کړ او خراب شو د هغه تاوان په امین باندې دی.

۲- که امین د امانت په حفاظت کې داسې غفلت وکړ چې کوم شی په بکس ، المبارۍ یا اتاق کې د ساتنې وي او هغه يې بهر کیښود او امانت ضایع شو نو ددې تاوان په امین باندې دی.

۳- د امین څخه د دروازه یا بکس خلاص پاتې شول مال غلو یوړل یا حیوانانو او حشراتو وخوړلو نو د هغه تاوان په امین دی.

۴- که د آفاتو په وجه مال ضایع شي مثلاً کور اور واخیست یا هغه مکان سیلاب خراب کړ نو په دې صورت کې په امین تاوان نشته.

۵- که خریدار د تجار په اجازه څه جنس د کتلو لپاره را واخلي هغه ګوري د کتلو پر مهال مات شي مثلاً د ښیښې ګلاس نو د هغه تاوان په خریدار نشته مګر که له تجار څخه يې اجازت نه وي اخستی نو بیا به د هغه تاوان ورکوي.

**په امانت باندې اجرت اخیستل کیدای شي ؟**

امین ته کچېرې د امانت په ساتنه کې تکلیف وي یا کافی ځای ته ضرورت وي یا د هغه په ساتنه خرڅ راځی په داسې صورتونو کې اجرت اخیستلای شي.

**د امانت په پیسو تجارت کیدای شي ؟**

د صحابه کرامو په دور کې داسې مثالونه لیدل کیږي چې هغوی به د امانت په پیسو باندې تجارت کولو.

د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه نه نقل دی چې هغه به د یتیمانو ولیانو ته د هغوی په مالونو باندې د تجارت کولو ترغیب کولو ځکه چې د زکات په ورکولو ورکولو کې د هغوی مال ختم نشي.

صاحب د هدایه لیکلي دي : يقرض القاضي اموال اليتمى – یعنې قاضي لره په کار ده چې د یتیمانو مالونه په قرض کې ولګوي ددې د پاره چې هغه د ضایع کیدو نه بچ شي.

د امام صاحب سیاسي ژوند کتاب لیکې: چې امام ابوحنیفه رحمه الله به د امانت په پیسو تجارت کولو.

په دې بنا د امانت په پیسو کې د اجازت په شرط سره تجارت کول جایز دي (فقه اسلامي ص ۷۱۳).

**د خیانت په مقابل کې خیانت جایز نه دی**

پوښتنه :

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته

الله تعالی دې وکړي چې روغ جوړ صحتمنده یاست

زما پوښتنه داده چې زه د خپل کفیل سره کار کوم په سعودي کې ماته ۱۵۰۰ریاله معاش راکوي او زما غوندې کاریګرو معاشونه 2500ریاله دي ماترېنه د معاش د زیادت خواهش وکړو خو کفیل وایي چې ویزه دې ختمه وم که خوښه د وي ښه که نه ویزه دی ختموم درته زه ورنه تنزل غواړم د اقامی بل ته تحویل نه راکوي تنزل نه راکوي ماته وایي یابه د ویزه ختموم او یابه کار کوي.

نو آیا زه کولی شم چی د خپل معاش مطابق د هغه د روپونه خپل معاش واخلم هغه پدې نه پوهیږي که زه د خپل معاش مطابق روپی واخلم که ځواب یی راته راکړئ الله تعالی مو وبښه .

ځواب:

بسم الله الرحمن الرحيم

که د تاسې د کار او لیاقت وړتیا د نورو سره یو شان وي نو تاسې د اجرت مثل د وړاندیز حق لرئ اجرت مثل هغه اجرت ته وایي څه چې عام رواج وي، او که بیا هم تاسې ته اجرت مثل نه درکوي او تاسې ته بل ځای کار نه پیدا کیږي نو په همدې معاش صبر وکړئ الله تعالی به په همدې کمه اجره کې برکت در ته واچوي.

دا چې تاسې ته کفیل اجرت مثل نه درکوي د اسلامي شریعت له مخې ظلم دی او د کم اجرت په مقابل کې د مزدور څخه د زیات کار اخیستل دي چې ظلم او خیانت دی.

مګر تاسې ته جایزه نه ده چې پخپل در سپارل شوې مسئولیت کې خیانت وکړئ بلکې د امانت خیال به ساتئ.

الله جل جلا له د مؤمنانو په صفاتو کې فرمايي :[ وَالَّذِينَ هُمْ لأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ] (المؤمنون ٨).ژباړه : او هغه کسان چې د خپلو امانتونو او وعدو رعایت کوي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنْ ائْتَمَنَكَ ، وَلا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ» (رواه الترمذي -١٢٦٤) .

يعنې : چا چې تا ته امانت سپارلی وي د هغه خيال ساته ، او چا چې ستا سره خيانت وکړ ته د هغه سره خيانت مه کوه

اللجنة الدائمة يې په اړه ليکي :

وسئلت اللجنة الدائمة : عن رجل يعمل في بقالة وصاحب العمل لا يعطيه راتبه إلا كل أربعة أشهر أو ستة ، فهل يجوز له أن يأخذ راتبه الشهري من أموال البقالة التي يعمل بها بدون علم صاحبها ؟

د اللجنة الدائمة څخه د یوه سړي په باب پوښتنه شوي ده چې هغه د بقالی کار کولو د هغه مالک څلورو یا شپږ میاشتې د هغه اجرت ځنډوي نو

هغه ته دا روا ده چې خپل د بقالی کار میاشتنې اجرت د مالک څخه په پټه واخلي.

فأجابت : لا يجوز لك أخذ راتبك من البقالة التي تشتغل فيها بدون علم صاحبها وإذنه لك بذلك ، وعليك بمطالبة صاحب العمل بمرتبك ، فإن أبى فإنك تقوم برفع شكايتك إلى الجهة المختصة لتلزمه بذلك اهـ. "فتاوى اللجنة الدائمة" (١٤٥/١٥)

ځواب : نه هغه ته دا رواه نه ده چې د خپل کار حقوق د مالک څخه په پټه یا د هغه د اجازې پرته واخلي ، هغه باید د خپل مالک څخه د حق غوښتنه وکړي ، او خپل شکایت دې مربوط مقام ته پیش کړي.

و الله سبحانه و تعالی اعلم

**لقطه (میندل شوی شی) :**

اللقطة په لغت کې هر هغه شي ته وايي چې د ځمکې څخه واخيستل شي او د شرعې په اصطلاح کې اللقطة هغه مال ته وايي چې د خپل څښتن څخه ضايع او ورک شي او بل کس يې واخلي (الموسوعة الفقهية).

د ورک شوي شي پورته کول مستحب دي لکن پخپل ځای پرېښودل يې غوره دي او د خپل ځان لپاره اخيستل يې حرام او غصب دی ،مگر که د مال د ضايع کېدو وېره وي اخيستل يې فرض دي ځکه د مسلمان د مال حرمت داسې دی لکه د هغه د نفس حرمت چې ضايع کول يې گناه ده.

(حاشيةابن عابدين٤ / ٢٧٧،وشرحالكنزللزيلعي٣ / ٣٠٢،والمبسوط للسرخسي١١/ ٢،وبدائع الصنائع٦/ ٢٠٠).

که چا کوم شی پیدا کړ له ځانه سره به يې ساتي تر يوه کاله پورې به اعلانونه کوي چې ما داسې شی په فلاني ځای کې پیدا کړی دي که يې مالک پیدا شو نو ژر به يې ورته سپاري او که تر يو کاله پیدا نشو نو خپله يې استفاده کولای شي.

په دليل د دغه حديث شريف : عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ رضی الله عنه:«أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم سَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ اللُّقَطَةِ، فَقَالَ: «اعْرِفْ وِكَاءَهَا» أَوْ قَالَ: «وِعَاءَهَا وَعِفَاصَهَا، ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً، ثُمَّ اسْتَمْتِعْ بِهَا، فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ» (بخاری:۹۱).

**ژباړه :**زيد بن خالد روايت کوي چې : يو سړي د ورک شوي شي د پيدا کېدو په باره کې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه، يې فرمايل :ځنې مشخصات يې(لکه:لوښی يا داسې شی چې چاپيره تړل شوی وي)تر يو کال پورې خلکو ته اعلان کوه، کچېرې يې څښتن پيدا نشو نو د هغه څخه کار واخله مګر که څښتن يې پيدا شو هغه ته يې ورکړه.

**لقيط (ورک شوي نا بالغ ماشوم) :**

لقيط په لغت کې هغه ورک شوي ماشوم ته وايي چې خپل والدين نه پيژني.

**او د شريعت په اصطلاح کې لقيط** ژوندي طفل او ماشوم ته وايي چې اهل يې د فقر او يا د زنا د تهمت څخه د فرار په وجه پرېښی وي (الدرالمختارعلى ردالمحتار۳ / ۳۱۴).

که چېرې نا بالغ ماشوم ومېندل شي چې کور او والدين نه پيږني مسلمانان به د هغه د واريثانو د پيدا کولو او هغوی ته د سپارلو کوښښ کوي.

د لقيط اخيستل مستحب دي مګر که د هلاکت ويره وي فرض کفايي دي او کچېرې هغه بل چا نه وي ليدلی نو بيا يې اخيستل فرض عين دي (بدائع الصنائع٦ / ۱۹۸).

پالنه او روزنه يې د محل پر مسلمانانو فرض کفايي ده ، کچېرې يو کس د هغه پالنه پر غاړه واخلي د نورو غاړه خلاصيږي او که نه ټول محل به ددې فرضو په ترک کې شريک وي.

غوره دا ده چې د هغه پالنه يو صالح کس ته وسپارل شي.

د لقيط نفقه به د بيت الله څخه وي که بيت المال نه وي پر مسلمانانو واجبه ده او که لقيط مړ شي او څه ميراث ورڅخه پاتې شي هغه به بيت المال ته سپارل کيږي. (الموسوعة الفقة الاسلامي – أحكام لقيط)

**عاريت :**

چا ته يو شی بغير له کوم عوض څخه د ګټې او استفادي لپاره ورکولو ته عاريت وايي.

عاريت په اسلام کې يو نيک کار دی ، الله سبحانه وتعالی فرمايي:[وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى].

ژباړه: يو له بله په نيکی او تقوی کې مرسته وکړئ .

او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ» ( البخاري).

يعنې : هر نيک کار صدقه ده .

د اسلامي معاشرې دا يو اخلاقي مسئوليت دی که پخپل مينځ کې يو بل ته احتياج شي نو يو د بل احتياج به پوره کوي ، په خاصه توګه هغه معمولي ځيزونه چې روزمره ضرورت وي لکه : د پخلي اسباب ، بيل ، کراچۍ ، ستن ، چکوش ، چاړه ، بستره او نور به بغير له عوض څخه يو بل ته ورکوي.

قرآنکريم د هغو خلکو مذمت بيان کړی دی چې د روزمره ضرورت سامان يو بل ته نه ورکوي :

الله تعالی فرمايي: [فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ * الَّذِينَ هُمْ عَن صَلاَتِهِمْ سَاهُونَ * الَّذِينَ هُمْ يُرَاؤُونَ * وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ] (الماعون).

ژباړه : خرابي ده هغو خلکو لپاره چې د خپلو لمونځونو څخه غفلت کوي دوی د ځان ښودنې د پاره لمونځ کوي او د روزمره استعمال په ځيزونو وروکول کې منع کوي.

**د عاريت الفاظ :**

په عاريت کې د عاريت ورکونکی صريح الفاظ دي چې ووايي : دغه شی مې عاريت درکړل ، يا دغه کور مې تا د استوګنې د پاره بغير له کرايې څخه درکړ.

په عاريت کې هم د نورو معاملاتو په څير بايد دواړه لورې عاقلان او په معامله پوه وي او جنس مباح او د قبض کولو وړ وي.

**د عاريت حکم :**

عاريت چې چا ته سپارل کيږي د هغه سره د امانت حکم لري (د امانت احکامو مخکې ولوستل).

**هبه او هديه :**

هبه او هدية په لغت کې بخشش او سوغات ته وايي او په شريعت کې بغير د څه عوض څخه خپل مال د بل په مکليت کې ورکولو ته هبه وايي.

د هبې او صدقې تر مينځ دا فرق دی چې هبه د محبت ، علاقې او خپلولې ټنګولو په مطلب خپلو خپلوانو ، ګاونډانو او ملګرو ته ورکول کيږي او صدقه خاص فقيرانو ، مسکينانو او د زکات او صدقانو نورو مستحقينو ته د ثواب په نيت ورکول کيږي.

**د هبې حکم :**

هبه ورکول مسحب او د ثواب کار دی ځکه جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم يې ډير ترغيب بيان کړی دی.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«تهادوا تحابوا».

يعنې : پخپلو مينځو کې هديې او تحفې ليږئ په دې سره محبت زياتيږي او د زړه خيري لرې کوي (ترمذي)

وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قالتْ: قُلتُ:«يَا رَسُولَ الله، إِنَّ لِي جَارَيْنِ، فَإِلَى أَيِّهِمَا أَهْدِي؟ قال: إِلَى أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ باباً» (أخرجه البخاري).

او د عايشې رضی الله عنها نه روايت دی چې ومې ويل : يا رسول الله : زما دوه ګاونډيان دي نو کوم يو ته هبه ورکړم ؟ ويې فرمايل د کوم چې دروازه تا ته لنډه وي.

له ابې هريرة رضی الله عنه نه روايت دی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«يا نساء المسلمات لاتحقرن جارة لجارتها ولو فرسن شاة» (متفق عليه).

يعنې :ای مسلمانو ښځو هيځ ګاونډی به د بل ګاونډی هبه نه تحقيروي (کمه او بې ارزښته به يې نه ګڼي) ولو که د پسه لږې غوښې واله هدوکی هم وي.

همدارنګه فرمايي : هديه اګر که ډيره معمولې هم وي د هغې قبلول پکار دي همدارنګه د معمولي هبې په ليږلو هم شرم مه محسوسوئ (مسند احمد او ترمذي).

څوک چې چاته هديه ورکوړي مستحب دا ده چې د هغه په ځواب کې بهتره هديه ورکړي مګر کوم څوک چې بې وسه او فقير وي هغه بايد د هديې په ردولو باندې مجبور نشي بلکي خپل اجر او بدله له الله تعالی څخه وغواړي (د علمي څيړنو او افتاء دايمي ټولنه -١٧٢/١٦)

**په هبه کې پېښمانه کېدل:**

ابن عباس رضی الله عنه وايي : رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: «الذي يعود في هبته كالكلب يرجع في قيئه» (متفق عليه).

ژباړه : څوک چې پخپله هبه باندې پېښمانه کيږي داسې دی لکه سپی چې خپل قي يا استفراغ خوري.

د هبې ردول ګناه ده (وليس له حق الرجوع بعد التسليم) ( عالمګيري ج٥ ص ٢٣٥).

يعنې : هغه لره د تسليم وروسته د غوښتلو حق نشته.

**د هبې ارکان :**

١- د هبې د پاره ايجاب او قبول او د هغه قبض کېدل شرط دي.

٢- هبه کوونکی به عاقل او بالغ وي

٣- په هبه کې د هبه ورکونکي رضامندي شرط ده.

**د ماشومانو هبه :**

که چا په ښکاره کوچني ته څه ورکړل او د هغه د پاره يې مشخص کړل نو که کوچنی پوه وي د هغه قبضه کول کافي دي او که پوه نه وي د هغه د سرپرست قبضه کول کافي دي په دغو دواړو صورتونو کې سرپرست ته دا حق نشته چې هغه استعمال کړي مطلب دا چې کوم شی چې د ماشوم ملک شو په هغه کې بيا بل څوک حق نه لري د همغه ماشوم د پاره به يې لګوي نه د بل کوم زوی د پاره (اسلامي فقه ص ٧٢٧ مولانا مجيب الله ندوي)

**اولادونو ته په هبه ورکولو کې عدالت :**

والدين به د خپلو اولادونو تر مينځ په سلوک کولو، پاللو او ورکړه کې د عدالت ساتلو خيال کوي ځکه چې اسلامي شريعت په دې باره کې ډېر تأقيد کړی دی.

داسې نه چې يو ښه پالل کيږي او بل محروم وي يو دا چې دا د عدل تقاضا ده کوم چې الله (جل جلاله) ورباندې راضي کيږي او بل داچې په دې کې حکمت او مصلحت دا دی چې که يو پالل کيږي او بل محروم وي نو د هغوی ترمنځ به کينه او بغض منځ ته راشي چې کينه او بعض نيکي له منځه وړي

په حديث شريف کې راغلي دي:

عَنْ النُّعْمَان بْنَ بَشِيرٍ رَضِي اللَّه عَنْهمَا قال: أَعْطَانِي أَبِي عَطِيَّةً، فَقَالَتْ عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ: لا أَرْضَى حَتَّى تُشْهِدَ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ: إِنِّي أَعْطَيْتُ ابْنِي مِنْ عَمْرَةَ بِنْتِ رَوَاحَةَ عَطِيَّةً، فَأَمَرَتْنِي أَنْ أُشْهِدَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ» :أَعْطَيْتَ سَائِرَ وَلَدِكَ مِثْلَ هَذَا»؟ قَالَ: لا قَالَ: «فَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْدِلُوا بَيْنَ أَوْلادِكُمْ» قَالَ: فَرَجَعَ فَرَدَّ عَطِيَّتَهُ. (صحيح البخارى).

ژباړه : نعمان بن بشير رضي الله عنهما وايي پلار مې ماته يو شي هديه کړل ، عمرة بنت رواحه (مور مې) وويل ترهغه به راضی نه شم ترڅو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ورباندې شاهد شوی نه وي ، پس پلار مې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورغی ورته ويې ويل زوی مې چې له رواحه نه دی يو شی مې ورته هديه (سوغات) کړل مګر مور يې دا تأقيد کړی چې رسول الله به شاهد نيسی.

رسو ل الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ايا تا ټولو زامنو ته همدا ډول هديه ورکړې ده هغی وويل نه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: له خدای (جل جلاله) څخه وويرېږه او د زامنو تر منځ عدالت سره رفتار وکړه ورسته مې پلار وګرځيد او هديه يې واپس واخيسته.

نو ثابته شوه چې د اولاد تر مينځ په سوغات ورکولو ، پاللو او سلوک کې بايد فرق ونشي.

او هر چې د زړه مينه او محبت دی هغه د انسان په اختيار کې نه وي په هغه باندې والدين نه نيول کيږي چې کوم زوی ورباندې ډير ګران وي او کوم لږ.

# پنځم فصل
## شرکت

شرکت په لغت کې اختلاط او یو ځای والي ته وایي او د فقهاؤ په اصطلاح کې په جایداد ، پانګه او ګټه کې د دوو یا څو شریکانو تر مینځ تړون ته شرکت وایي.

ځینې تجارتي کارونه په لږ پانګه نه تر سره کیږي د هغه د پاره دا ضرور وي چې څو کسان خپلې لږې لږې پانګې سره یو ځای کړي تر څو د هغه څخه څه لویه پانګه جوړه شي او بیا دغه کسان په کډه کار وکړي او یا داسې کار وي چې په یوازې سر باندې نه کیږي نو په هغه کې څو کسان کډون کوي او کار په شریکه سره پر مخ بیایې.

اسلامي شریعت د ټولنې ددې ضروریاتو په نظر کې نیولو سره د څو کسان کډون په پانګه او کار کې جایز ګرځولی دی.

**د مشروعیت دلائل :**

الله سبحانه وتعالی فرمایي :

[وَ إِنَّ كَثِيراً مِنَ الخُلَطَاءِ لَيَبغِي بَعضُهُم عَلَي بَعضٍ إلاَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَ عَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَ قَلِيلٌ مَّاهُم] (ص : ۲۴).

ژباړه : یقیناً ډیر شریکان یو پر بل تېری کوي خو یوازې هغه کسان تېری نه کوي چې ایمان یې راوړی او نیک عمله وي خو دا ډول کسان ډیر لږ دي.

په حدیث شریف کې راغلي دي :«أنا ثالث الشريكين ما لم يخن أحدهما صاحبه.فإن خان أحدهما صاحبه خرجت من بينهما»

ژباړه : که چېرې دوه نفره سره شریک او یو د بل سره خیانت ونه کړي نو زه هم د هغوی دریم شریک یم او کله چې د یو بل سره خیانت وکړي زه د هغوی څخه وځم او نور به د هغوی سره شریک نه وم. یعنې الله تعالی د

شريکانو په مال کې برکت اچوي تر هغه پورې چې دوی په مينځ کې خيانت ونه کړي او کله چې خيانت وکړي نو برکت ور څخه ځي (ابوداود).

زيد وايي : زه او براء بن عازب سره شريک وو (البخاري).

**د شرکت ډولونه :**

شرکت په دوه ډوله دی : د املاکو شرکت او د عقود شرکت.

**د املاکو شرکت :**

يعنې د جايداد او ملکيت شرکت ، دا داسې شرکت وي چې دوه يا څو کسان په ميراث ، هبه شوي ملکيت او يا اخيستل شوي جايداد او مليکت کې سره شريک وي.

د شرکت املاک حکم : د شرکت املاک حکم دا دی چې په دې شرکت کې يو شريک ته هم بغير د نورو شريکانو له اجازت څخه د تصرف کولو هيڅ حق نشته. او هر يو يې د شرکت په حصه کې د پردي شخص په څير دی.

**د عقود شرکت :**

يعنې د عقد او تړون شرکت داسې چې دوه يا څو کسان خپلې پانګې سره جمع کړي او پخپل مينځ کې تړون وکړي چې مونږ به په دغو پيسو په شريکه کار کوو او د کار نفع به پخپل مينځ کې تقسيموو.

د عقود شرکت په څلور ډوله دی چې هر يو يې ځانته احکام لري:

اول- د مفاوضي شرکت

دوهم- د عنان شرکت

دريم- د صنائع شرکت

څلورم- د وجوه شرکت

**اول- د مفاوضې شرکت :**

د مفاوضه معنی ده برابري او مساوات.دا داسې شرکت دی چې دوه نفره په مال ، تصرف او پور کې له یو بل سره په مساوي او برابر ډول شریک کیږي او په وکالت او کفالت سره منعقد او تړل کیږي.

**ددې شرکت د صحت شرطونه دا دي :**

۱- د تړون د پیل څخه تر پایه به د دواړو شریکانو پانگه برابره او مساوي وي.

۲- هر یو شریک ته به د مال خرڅولو ، اخیستلو ، قرض او تصرف اختیار وي یعنې یو شریک به د بل شریک کفیل او ضامن هم وي او همدارنگه په گټه کې به هم سره برابر وي.

۳- دا شرکت د مسلمان ، عاقل او بالغ تر مینځ جایز دی.

**دوهم- شرکت عنان :**

عنان د ور سپارلو په معنی دی ، شرکت عنان هغه تجارتي گډون دی چې دوه یا څو کسان په کډ او شریک تجارت کولو سره تړون کوي په دې شرکت کې د گډون کوونکو د پانگې ، گټې او تصرفاتو برابري شرط نه ده پس که د یو مال ډیر وي د بل کم او یا یوازې یو کس د نورو په موافقه د شرکت مسئول وي داسې تړون جایز دی گټه به د پانگې په نسبت تقسیمیږي.

**د شرکت عنان د صحت شرطونه :**

۱- په شرکت عنان کې گډون کوونکي یو د بل وکالت کولای شي مگر یو د بل کفالت نشي کولای. یعنې یو د بل په وکالت او نیابت سره تجارتي معامله کولی شي مگر یو د بل د قرض خلاصولو او نور ذمه وار نه وي بلکي قرض به پخپله پور اخیستونکی ادا کوي.

۲- په تړون کې دا معلومول په کار دي چې ټول شریکان به کار کوي که یو یا څو کسان.

۳- ګټه او تاوان به د رأس المال (اصلي پانګې) په نسبت ويشل کيږي.
۴- که له ګډون کوونکو څخه يو شريک مال واخلي او د هغه بل مال هلاک شي نو دواړه شريکان به په باقي مال کې شريک وي.
۵- که د ګډون څخه مخکې ټول مال هلاک شي يا د يو ګډون کوونکي مال هلاک شي او د بل وي په دواړو صورتونو کې ګډون باطل دی.
٦- په شرکت عنان کې مسلم او غير مسلم شرط نه دی.
يادونه : د ګټې حصې به د فيصدی له مخې ټاکې نه په ثابت ډول داسې چې فلانې به شل روپۍ او د فلانې څلوښت څه چې پاتې شول هغه به د فلانې او فلانې وي داسې کول صحي نه دي (هدايه).

**دريم- شرکت صنائع يا شرکت اعمال :**

صنائع د صنعت جمع ده او صنعت کار کسب ته وايی. دا داسې شرکت دی چې د کمپنۍ په ډول د يو صنعتي کار دوه يا څو مسلکي کسان د کډ کار کولو تړون کوي لکه دوه او څو خياطان ، ترکاڼان چې تړون وکړي چې په شريکه به کار کوو.

**د شرکت صنايع احکام :**

۱- په شرکت صنايع کې د هر شريک ګټه د هغه د ذمه وارۍ او مسئوليت په تناسب وي نه د کار په تناسب.
۲- که چېرې د شرکت په تړون ليک کې د مفاوضې کلمه ذکر شوی وي نو د ټولو حقوق او مسئولتونه به سره مساوي وي او که د شرکت عنان کلمه پکې ذکر شوي وي نو د کار په تناسب به د هغوی حقوق وي او يو د بل کفالت نشي کولای.

۳- که په شرکت کې تاوان وشي نو پر هر يو کډونوال باندې د تړون موافق ويشل کيږي او که د ګډون کوونکو څخه کوم يو جرم وکړي ضمانت يې پر ګردو لازم دی مثلاً له يوه خياط څخه کالي خراب شي او پرې تاوان شي.

**څلورم - شرکت وجوه :**

وجوه د وجهه جمع ده چې په عربی کې مخ ته وايي او دلته مراد ورڅخه باور ، په ټولنه کې اعتبار او اعتماد ته ويل کيږي.

شرکت وجوه د داسې کډون لپاره تړون دی چې څو مخور او د اعتماد کسان سره يو ځای شي په اعتبار او اعتماد سره له کومې کمپنۍ څخه په قرض سره مال واخلي او بيا يې په نغدو پلوري او څومره ګټه چې وشو هغه په خپل مينځ کې سره ويشي.

**د شرکت وجوه احکام :**

۱- هر کډون کوونکی به د نيمايي نيمايي مال ذمه وار وي ، پيرودلی مال به هم نيمائي نمايي او ګټه به هم د دوی تر مينځ نمائي نيمائي وي.

۲- که يې تړون په مفاوضه لفظ سره کړی وي نو د کډون کوونکو تر مينځ به هر اړخيز مساوات وي او که تړون يې په عنان سره کړی وي نو د عنان شرکت اصول پکې اجراء کيږي.

## مضاربت

په دنيا کې ټول خلک يو شان نه وي ځنې مالدار وي روپۍ لري ولی د کار او محنت صلاحيت بيا نه لري يا وخت نه لري ،خو ځنې بيا داسې وي چه روپۍ نه لري ولی د منډو او محنت توان لري.

اسلامې تجارتي نظام خو سراسر د خزانی او زخيزه کولو مخالف دی ځکه په خزانه کولو کې هيڅ ګټه نشته ،بايد مال او دارايي په دوران کې وي تر څو د هغه ګټه د پيسو مالک ، تجار او ټولنې ته ورسيږي.

د همدې مقصد لپاره اسلام مضاربت ته ترغیب ورکړی دی ترڅو هم د روپو مالک ته فائده وشي او هم یوه غریب ته د نفقې د ګټلو لپاره د منډو او محنت لاره هواره شي.

مضاربت د فقهاؤ په اتفاق جایز دی.

موسوعة الفقهية لیکي :

اتّفق الفقهاء على مشروعيّة المضاربة وجوازها, وذلك على وجه الرخصة أو الاستحسان, فالقياس أنّها لا تجوز, لأنّها استئجار بأجر مجهولٍ, بل بأجر معدومٍ ولعمل مجهولٍ, ولكنّ الفقهاء تركوا القياس وأجازوا المضاربة ترخصاً أو استحساناً لأدلّة قامت عندهم على مشروعيّة المضاربة, منها ما ذكره الكاساني حيث قال: تركنا القياس بالكتاب العزيز والسنّة والإجماع.

(فقهاء د مضاربت په مشروعیت باندې متفق دي له جهت د رخصت او احسان او قیاس يې جایز نه دی ځکه دا داسې اجاره ده چې اجرت يې مجهول، بلکي اجرت معلوم او کار مجهول وي مګر فقهاؤ قیاس ترک کړی او مضاربت ته يې د احسان او رخصت له مخې اجازت ورکړی دی. کاساني وايي: قیاس مو په کتاب الله او سنتو او اجماع سره ترک کړی.

په قرانکریم کې الله سبحانه وتعالی فرمايي : {وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ}.

ژباړه : او (ځنې) نور د تاسې به سفر کوي (لپاره د تجارت) په ځمکه کې او لټوي به دوی (رزق) له فضله د الله.

او په سنتو کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی چې هغه فرمايي:«كان العبّاس بن عبد المطّلب رضي اللّه عنه إذا دفع مالاً مضاربةً اشترط على صاحبه أن لا يسلك به بحراً، ولا ينزل به وادياً، ولا يشتري به ذات

كبدٍ رطبةٍ، فإن فعل فهو ضامن، فرفع شرطه إلى رسول اللّه صلّى اللّه عليه وسلّم فأجازه»

ژباړه : عباس بن عبدالمطلب به چې چا ته په مضاربت مال ورکولو نو شرط به يې پرې لګاوه چې زما په مال به حيوان نه رانيسې ، او د درياب لياري به يې نه راوړې او زما له مال سره به د شېلې په مينځ کې نه اړوې او که دې له دغو کارونو څخه کوم کار وکړ نو د تاوان ضامن به ته وې ، نومړي دغه شرايط رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض کړل هغه مبارک اجازه ورکړه.

(بدائع الصنائع- كتاب المضاربة)

**د مضاربت تعريف:**

مضابت کلمه له (ضرب) څخه اخيستل شوی ده چې د ځمکې پر سر د حرکت او سفر په معنی ده او د شرع په اصطلاح کې د شراکت په ګټه کې عقد ترلو ته مضابت وايي چې مال د يو شريک او کار د بل شريک وي.

**د مضاربت د صحي کيدو شرطونه :**

١- روپۍ ورکونکی او تجار به دواړه عاقلان وي په معامله او د هغه په نفع او نقصان به پوه وي.

٢- د مضاربت روپۍ به تجار ته په قبضه کی ورکول کيږي.

٣- د مضاربت لپاره چه محنت کوونکي ته کومې روپۍ ورکول کيږي رقم به يې معلوم وي مثلاً يولک دوه لکه ، اوکه رقم يې معلوم نه وي نو دا مضاربت نه صحي کيږي.

۴- په لومړي سر کې به د فائدې د برخې فيصله کوي ،چه څومره حصه به د پانګې د چښتن وي او څومره به د تجار وي.

مثلاً د فائده نيمه حصه به زما وي او نيمه به ستا وي ، که د ګټی حصه معلومه نشي نو مضاربت نه صحي کيږي ځکه چه پدې کې بيا د اختلاف ويره پيدا کيږي.

۵- که دروپو واله يا محنت کوونکي هر يو چه وي دا شرط ولګوي چه د ګټې دومره رقم مثلاً ۲۰۰۰۰ افغانی به زما وي باقي چه څه پاتې شول هغه به ستا وي ،نو دا مضاربت فاسد دی ګټه په ثابت شکل په اول کې نشي تعين کيدای بلکي د ګټی حصه به تعينيږي که چيرې په مضابت کې ګټه ثابته وټاکل شي دا عقد باطل دی.

**د رب المال (د پيسو څښتن) حقوق او صلاحيتونه :**

۱- سرمايې لګولو واله ته دا حق شته چه تجار يا محنت کوونکي ته ووايي چه دا پيسې د فلاني کار او بار لپاره ولګوه ،که تجار د هغه خلاف کاري وکړي او په هغه کی تاوان وکړي نو هغه به د تجار پر غاړه وي.

او همدارنګه دا شرط هم لګولی شي چه په دې پيسو په فلانۍ سيمه کې کار کوه کابل ،کندهار يا پښور کې، او دا شرط هم لګولی شي چه تر فلاني وخته شپږ مياشتې يا يو کال ورباندې کار کوه.

۲- که تجار په تجارتي دوران کې په خوړلو،څښلو او د کاربار د انتظام لپاره روپۍ ولګولې او ګټه وشوه لومړی دې د تجارتي دوران مصارف د ګټې له روپو څخه پوره کړي باقي نفع دې په خپل منځ کی تقسيم کړي.

۳- که رب المال (د روپو مالک) دا شرط ولګوي چه په تاوان کی به دواړه شريک وو نو دا مضاربت فاسد دی هغه ته دا حق نشته.

**د مضارب (تاجر) حقوق او صلاحيتونه :**

۱- مضارب چه کومه سرمايه اخيستې د هغه دی امين او وکيل دی.

۲- که تجار په خپل ولس کې کار او بار کوي د ځان خرڅ خوراک يې پر خپله غاړه دی مګر په تجارتي دوران يا سفر کې يې خرڅ بيا د کار بار له پيسو څخه دی.

۳- مضارب ته د څه مال د ګاڼه ايښودلو،امانت ايښودو ،يا حواله کولو کې څه تاوان وشي نو دهغی تاوان په مضارب نشته.

که په تجارت کې تاوان وشي نو تاوان به له ګټې نه پوره کړي که پوره نشي هغه به سرمايې واله ورکوي.

مثلاً په تجارتی دوران کی ۲۰۰ ګټه وشوه خو ورسته ۵۰۰ تاوان وشو ۲۰۰ ګټه به په تاوان کی لاړه شي او پاتې۳۰۰ به روپو واله ورکړي.

خو که تجار ښکاره بی احتياطي او ناغړي وکړي نو بيا د دې تاوان په تجار دی.

مثلاً که نرخونه يوځل راښکته شي اوتاوان وشي ،نو دا تاوان پر مالک د پيسو دی نه په تجار ،خو که د تجار له ناپوهۍ او بې غورۍ چه د ۸ روپو شی يې په ۱۲ روپو اخيستي وي او يا کومه بله نا راستي وکړي نو دا تاوان بيا په تجار دی.

**د مضاربت اقسام :**

مضاربت په دوه دوله دی يو مقيد او بل مطلق.

**مقيد :**

هغه مضاربت ته وايي چې پيسې ورکوونکی پر تجار دا شرط ولګوي چې صرف په فلانې ښار کې به کاروبار کوي يا به صرف فلانی کاروبار کوې ، په دې صورت کې پر تجار لازمه ده چې د پيسو ورکوونکي په وينا عمل وکړي ، که يې د تړون خلاف کار وکړ او په معامله کې يې تاوان وکړ نو تاوان د تجار په غاړه دی. په دليل د دغه حديث شريف :

قال النبی صلی الله علیه وسلم« المسلمون عند شروطهم» (البخاری).

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي : مسلمانان هغه دي چې پر خپلو کړو شرطونو (او وعدو) وفا کوي.

همدا راز هدايه ليکي :

و ان خص له رب المال التصرف فی بلد بعينه او فی سلعة بعينها لم يجز له ان يتجاوزها (هدايه ج ۳ ص ۲۵۸).

يعنې : که چېرې رب المال (پيسې ورکوونکی) د کاروبار لپاره يو ټاکلی ښار خاص کړ او يا د هغه لپاره د خرڅولو سامان خاص کړ نو د مضارب لپاره جايز نه دي چې د هغه څخه سرغړونه وکړي.

په سنن بيهقي او دارقطني کې يو روايت داسې نقل شوی دی :

چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم يو صحابي حکيم بن حزام به چې کله يو چاته په مضاربت مال ورکولو ، نو شرط به يې پرې لګاوه چې زما په مال کې به حيوان نه رانيسې او د درياب له لارې به يې نه راوړې او زما له مال سره به د شپلې په مينځ قيام نه کوي او که دې له دغو کارونو څخه کوم کار وکړ نو د تاوان ضامن به ته وې ، نوموړي صحابي دغه شرطونه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په مخکې وړاندې کړل او ده مبارک اجازت ورکړ.

له دې څخه معلومه شوه چې د پيسو ورکوونکي لخوا داسې شرطونه لګول جايز دي نو چې داسې ده بايد د تجار لخوا يې ساتنه وشي ځکه چې : مسلمانان هغه دي چې پر شرطونو وفا کوي (البخاري).

**مطلق مضاربت**

مطلق مضاربت هغه دی چې پيسې ورکوونکی تجار ته پيسې ورکوي خو څه شرط نه ورباندې لګوي نو تجار پخپله خوښه کولای شي تجارت وکړي په

کوم ښار کې يې چې زړه وي او چې د هر جنس او مال تجارت کوي اختيار لري.

قدوري ليکي : فاذا صحت المضاربة مطلقة جاز للمضارب ان يشترى و يبيع و يسافر و يبضع و يوکل.

يعنې : کله چې د مطلق مضاربت تړون وشو ، نو مضارب لپاره جايز دي چې خرڅول او اخيستل وکړي ، سفر وکړي يا په بضاعت مال ورکړي او يا وکيل ونيسي.

**آيا د غير المسلم سره د مضابت عقد صحي کيږي ؟**

ځواب :د امام ابوحينفه او امام احمد په نزد د غير المسلم سره د مضابت عقد جايز دی امام کاساني وايي چې د مضاربت د تړون لپاره اسلام شرط نه دی مضاربت د ذمي او مستأمن کافر سره جايز دي.

جاء في الموسوعة الفقهية :

اختلف الفقهاء في مضاربة غير المسلم: فذهب الحنفية والحنابلة إلى جواز مضاربة غير المسلم في الجملة. قال الكاساني: ولا يشترط إسلام رب المال أو المضارب, فتصح المضاربة بين أهل الذمة وبين المسلم والذمي والحربي المستأمن, حتى لو دخل حربي دار الإسلام بأمان.

**مضاربت د ګټې په تعين فاسد ګرځي :**

اسلام عليکم ورحمة الله وبرکاة ، زه دا پوښتنه لرم که يو سړی يو تجار ته پسې په مضاربت ورکړي او ورته ووايي چې د مياشتې دومره ګټه راکوه مثلاً پنځه لکه افغانی ورکوي او ورته وايي چې په دې که د مياشتې پنځه زره افغانۍ راکوې داسې کول څنګه دي ؟

ځواب :

د مضاربت په عقد کې د ګټې ثابت تعین سود دی او داسې مضاربت باطل دی.

قال الكاساني الحنفي – رحمه الله – في بيان شروط عقد المضاربة -

ومنها : أن يكون المشروط لكل واحد منهما من المضارب ورب المال من الربح جزءاً شائعاً ، نصفاً ، أو ثلثاً ، أو ربعاً , فإن شرطا عدداً مقدراً بأن شرطا أن يكون لأحدهما مائة درهم من الربح ، أو أقل ، أو أكثر ، والباقي للآخر : لا يجوز, والمضاربة فاسدة ؛.

يعنې : په مضاربت کې د دواړو طروفو د پاره شرط وي چې ګټه به نيمايي، دريمه برخه ، څلورمه برخه ټاکي مګر د ګټې د مقدار ثابت ټاکل لکه : تا لره به سل درهمه وي يا تر هغه لږ او يا ډيرې او نورې به زما وي داسې شرط لګول حرام او مضاربت فاسد دی. " بدائع الصنائع " (٦ / ٨٥ ، ٨٦).

و جاء فی فقه التجار المسلم ، و فقه المعاملات المعاصره :

إذا اتفق شخص مع أحد التجار ليدخله شريكاً في تجارته لمدة ثلاث سنوات على أن يدفع للتاجر مبلغ عشرة آلاف دينار وشرط عليه أن يعطيه مائة دينار شهرياً وأن يرد له العشرة آلاف دينار عند انتهاء المدة المتفق عليها فهذه المعاملة باطلة شرعا.

يعنې : كه يو شخص د چا سره په تجارت کې شريک شي د دريو کلونو د مودې لپاره داسې چې تجار ته به لس زره ديناره ورکوي په دې شرط چې تجار به پيسو واله ته د مياشتې سل ديناره ورکوي او په آخر کې به خپلې پيسې (لس زره ديناره) بيرته ورکوي نو داسې معامله شرعاً باطله ده.

**تاوان به له ګټې او بيا له پانګې څخه ګرځول کيږي :**

که يو تجار په مضاربت کې لومړی کال مثلاً يو لک افغانۍ ګټه وکړي او دوهم کال يونيم لک افغانۍ تاوان وکړي نو تاوان به له کوم لوري اخيستل کيږي ؟

ځواب : تاوان به لومړی له ګټې څخه ګرځول کيږي که په ګټه پوره نه شو پاتې به له اصلي پانګې ګرځول کيږي ځکه تجار په مثال د امين او مزدور دی که تاوان وشي د ده به د وخت او کار ضايع کيدو تاوان وي او د پيسې ورکوونکي به د مال تاوان وي.

هدايه ليکي : وما هلک من مال المضاربة فهو من الربح دون راس المال.... فان زاد الهلاک علی الربح فلا ضمان علی المضارب لانه امين (هدايه ج ٣ ص ٢٦٤).

يعنې : که د مضاربت مال هلاک شو نو دا به له اصلي سرمايي څخه نه بلکي له ګټې څخه ګرځوي ، کچېرې تاوان تر ګټې زيات ؤ نو پر تجار يې تاوان نشته ځکه چې هغه امين دی.

دا په هغه صورت کې چې د تجار د کوتاهۍ ، ناپوهۍ او غفلت له کبله نه وي که د ده د غفلت له امله وي نو دی يې ذمه وار دی مثلاً د يو شي نرخ پنځه روپۍ وي خو دی بغير له پوښتنې په اوه روپۍ اخلي يا د مال صحي ساتنه ونه کړه او يا يې د پيسو ورکوونکي د هدايت خلاف کار وکړ او په دغو صورتونو کې تاوان وشو نو تاوان به د سوداګر په غاړه وي.

**تجار کولای شي د مضابت پيسې بل چا ته په مضاربت ورکړي ؟**

ځواب : د تجار لپاره جايزه نه ده چې د مضاربت پيسې د هغه د مالک د اجازې بغير بل کس ته په مضاربت ورکړي ځکه پيسې ورکوونکي پر ده باندې اعتماد کړی دی نه پر بل چا باندې مګر په هغه صورت کې جايز دی چې د پيسو ورکوونکی اجازت ورکړي او يا ورته ووايي چې ته مطلق اختيار لرې.

هدایه لیکي : و لیس له ان یدفع المال مضاربة الا ان یاذن له رب المال فی ذلک او یقول له اعمل علی رأیک (هدایه ج ۳ ص ۲۵۷).

یعنې : د مضارب (تجار) لپاره جایز نه دی چې بل چاته په مضاربت مال ورکړي ، لکن په هغه صورت کې جایز دی چې د پیسو څښتن اجازت ورکړي او یا ورته ووایي چې ته مطلق آزاد یې د خپلې رایې مطابق عمل کوه.

**په مضاربت کې به مصارف د چا پر غاړه وي ؟**

تجار به خپل خوراک او څښاک او د تجارت نور مصارف پخپله کوي او که د مضابت د مال څخه ؟

ځواب : که چېرې تجار په ښار کې کار کوي نو د ده نفقه به د مضاربت له مال څخه نه وي بلکي پر خپله غاړه به یې وي او که یې د تجارت لپاره سفر وکړ نو خوراک ، څښاک د سپرلی او سامان کرایه کول به د مضابت له مال څخه کیږي.

جاء في الهدایه :

اذا عمل المضارب فی المصر فلیست نفقه فی المال و ان سافر فطعامه و شرابه و کسوته و رکوبه و معناه شراء او کراء في المال (هدایه ج ۳ ص ۲٦۷).

## کفالت

**تعریف** : د څه مال د ادا کولو او یا د کوم کس په وخت حاضرولو ذمه واری یا ضمانت ته کفالت وایي.

مثلاً یو کس پروړی دی یا د قرض د ادا کولو توان نه لري او یا بې اعتباري مینځته راغلي وي نو دغه پوروړی بل کس د ضمانت لپاره وړاندې کولای شي.

**مشروعیت (د روا والي دلائل) :**

کفالت مسحب دی کار د خیر دی په نیک کار او تقوی کې مدد کول دي او یو جایز تړون دی.

الله تبارک وتعالی فرمایي [قَالُوا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ وَلِمَنْ جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ](یوسف ۷۲).

ژباړه : وویل هغوی مونږ لټوو پېمانه د پاچا او هر چا چې راوړه پېمانه (پیدا یې کړه) نو یو اوښ بار به په انعام کې ورکړ شي او زه یې ضامن یم .

وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم «أتِيَ بِجَنَازَةٍ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهَا، فَقالَ» :هَل عَلَيْهِ مِنْ دَيْنٍ؟ .«قالوا: لا، فَصَلَّى عَلَيْهِ، ثُمَّ أتِيَ بِجَنَازَةٍ أخْرَى، فَقال» :هَل عَلَيْهِ مِنْ دَيْنٍ؟ .«قالوا: نَعَمْ، قال» :صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ .«قال أبُو قَتَادَةَ: عَلَيَّ دَيْنُهُ يَا رَسُولَ الله، فَصَلَّى عَلَيْهِ» (أخرجه البخاري).

ژباړه : سلمه بن الاکوع رضی الله عنه روایت کوي چې مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ؤ چې یوه جنازه راوړل شوه ، خلکو وویل : په دغه (مړي) د جنازې لمونځ ادا کړئ ، رسول الله وفرمایل : آیا په هغه باندې قرض شته ؟ هغوی وویل نه. نو د هغه جنازه مو ادا کړه ، بیا بله جنازه راوړل شوه ، بیا رسول الله پوښتنه وکړه : آیا په هغه باندې قرض شته ؟ هغوی وویل هو. رسول الله وفرمایل : د خپل ملګري جنازه مو ادا کړئ ، ابوقتاده وویل : یا رسول الله زه د هغه قرض په ذمه اخلم بیا مو د هغه جنازه ادا کړه.

**د کفالت د صحت شرطونه :**

۱- ضمانت کونکی او پوروړی به دواړه عاقل او بالغ وي.

۲- د کوم سړي چې کفالت شوی د هغه نوم او پته به معلوم وي او که څه مال وي د هغه مقدار به معلوم وي.

۳- هغه مال د کوم چې ضمانت شوی دی داسې مال به وي چې ضمانت يې کيدای شي که د ګاڼه يا عاريت په شان وي نو د هغه کفالت صحي نه دی.

**د کفيل يا ضامن مسئوليت :**

۱- که کفيل د چا ضمانت وکړي نو هغه ته په کار ده چې په مقرر وخت کې هغه حاضر کړي که يې حاضر نه کړ تر هغه پورې به ضامن په قيد کې ساتل کيږي څو چې حاضر شوی نه وي دا د امام ابوحنيفه او امام شافعی رايه ده او امام مالک وايي چې هغه ته سزا ورکول صحي نه دي بلکي د هغه څخه دې څه مال د تاوان په توګه واخيستل شي.

۲- د کفيل په مرګ د کفالت ذمه واري ختميږي مګر که مدعي مړ شو نو د ده ضمانت نه ختميږي.

۳- په سزا ، جرم او حدودو کې د چا نيابت او ضمانت نه صحي کيږي ځکه چې د يو کس د ګناه سزا بل کس نشي ورکولای.

۴- که پوروړی پور ادا نه کړي نو ضامن به يې ادا کوي.

## وکالت

د وکالت معنی ، نظارت ، حفاظت او کار سازې ده او د فقه په اصطلاح کې د يو سړی بل سړی ته خپل کار سپارل او دهغه پخپل ځای باندې ودرولو ته وکالت وايي.

وکالت د اسلامي شريعت د اخلاقي محاسنو څخه دی ځينې وخت انسان د عجز ، مرض ، مشغوليت او نورو امورو په بنا خپل مسئوليت او د حقوقو تر لاسه کولو توان له لاسه ورکوي نو په دې وجه سره اسلامي شريعت د آساني او مشکل د حل لپاره وکالت جايز ګرځولی دی.

**حکم او مشروعیت :**

د وکالت تړون بې اجرې او په اجره تر لاسه کولو دواړو سره جایز دی لکن بې اجرې مستجب او کار د ثواب دی ځکه چې وکالت د خیر په کار کې مددکول دي.

الله سبحانه وتعالی فرمایي :[قَالُوا رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ فَابْعَثُوا أَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هَذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنْظُرْ أَيُّهَا أَزْكَى طَعَامًا فَلْيَأْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا](الکهف:۱۹).

ژباړه : رب مو ښه پوه دی چې څومره درنګ مو کړی دی اوس يو تن له دغو ورقو سره ښار ته ولېږئ هغه دې ښه وګوري چې کوم ښاري خوراک ډېر پاک دی نو له هغه نه دې خوراک راوړي او باید ډېره هوښیارتیا وکړي او هیڅ څوک خبر نه کړي.

یعنې : اصحاف الکهف د خپل طرف نه يو وکیل ښار ته ولیږه.

عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: أَمَرَنِي رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم أَنْ أَتَصَدَّقَ بِجِلالِ البُدْنِ الَّتِي نَحَرْتُ وَبِجُلُودِهَا (متفق علیه).

ژباړه : حضرت علی رضی الله عنه وایي : ما ته رسول الله صلی الله علیه وسلم د قربانۍ کوم مې چې ذبحه کړې وه د کتنې او څرمنې په صدقه کولو حکم وکړ.

یعنې : د هغه د پاره یې وکیل وګرځولم.

**د وکالت د صحت شرطونه :**

۱- په وکالت کې هم د نورو معاملاتو په څیر قبول او ایجاب شرط دیکه په اقرار سره وي او که یا تحریري توګه.

۲- دوهم شرط دا دی چې وکیل ته سپارل شوی کار به د مؤکل په خوښه او رضا وي که هغه په خپل سر څه کار وکړي نو د هغه ضمه واري په وکیل ده.

۳- مؤکل او وکیل به دواړه عاقل او په معامله پوه وي.

۴- د وکیل حیثیت دیو امین او نماینده وي نو وکیل ته په کار ده چې د کوم کار د پاره دی وکیل جوړ شوی دی د هغه کار نسبت ځانته ونه کړي بلکي د مؤکل طرف ته به یې کوي. البته په خرید او فروخت کې د کوم شي کرایه نیولو او مزدور نیولو کې دا شرط ضرور نه دی.

۵- که د وکیل څخه څه خرابي او تاوان وشي که د بې پروایۍ او غفلت له وجې وي د هغه د تاوان ضامن دی او که بغیر له بې احتیاطۍ وي نو د هغه ضامن نه دی.

٦- و کیل ته د مؤکل د اجازې بغیر بل وکیل جوړولو صلاحیت نشته.

۷- که دوه یا څو وکیلان وي نو د هغوی ټولو موجودیت لازم دی.

## شپږم فصل
## اجاره

**د اجارې تعريف :**

اجارة له أجرة څخه اخيستل شوې په لغت کې د کار او عمل بدل او اجرت ته وايي او په اصطلاح کې اجاره د ګټې عقد (تړون) د عوض په مقابل کې.

**اجاره په دوه ډوله ده :**

١- إجارة على منفعة : د کرايې په بدل کې د کور ، حيوان او موټر اجاره او د هغه څخه ګټه اخيستل.

٢- إجارة على عمل : د کار په بدل کې د اجرت اخيستل.

**د اجاري مشروعيت :**

اجاره په قرآن ، سنتو او اجماع جايزه ده :

قال الله تعالى: [فإن أرضعن لكم فآتوهن أجورهن] (الطلاق: ٦).

ژباړه :نو که تی ورکاؤ دوی اولاد د تاسې ته نو ورکړئ تاسې هغوی لره مزدوري د هغوی په مصلحت او مشوره.

عايشي رضی الله عنه روايت کوي چې نبی صلی الله عليه وسلم او ابوبکر صديق د هجرت پر مهال يو لار ښودونکی کس اجاره کړی وو.

همدارنګه امام بخاري دا روايت نقل کړی دی :

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ: «مَا بَعَثَ اللَّهُ نَبِيًّا إِلاَّ رَعَى الْغَنَمَ» فَقَالَ أَصْحَابُهُ: وَأَنْتَ؟ فَقَالَ: «نَعَمْ كُنْتُ أَرْعَاهَا عَلَى قَرَارِيطَ لأَهْلِ مَكَّةَ» (بخاری:٢٢٦٢).

ژباړه : ابی هريرة رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايل: الله تعالی هيڅ پيغمبر نه دی مبعوث کړی مګر دا چې چوپاني يې نه وي کړې. صحابه کرامو عرض وکړ : يا رسول الله تاسې هم چوپاني کړې

ده ؟ ویې فرمایل : هو ما هم د څو قیراطو مزدورۍ په بدل کې د مکې د خلکو شپنې کړې ده.

**د اجاري د صحت شرطونه :**

د اجارې د صحت شرطونه ایجاب او قبول ، د دواړو طرفونو رضایت او بل دا چې مزد او ګټه به معلوم وي.

د مزدور د پاره ساعت ، ورځې او د میاشتې اجرت معلومول او یا د کار د مقدار له مخې د هغه اجرت معلومول.

د کور په کرایه نیول د یوې میاشتې یا یو کال کرایه معلومول او د زراعتي ځمکې اجاره کول د یو کال ، دوو کالو لپاره او حیوان او موټر د کرایه کولو لپاره د مودې ، وزن ، واټن او نورو معلومول په کار دي او همدارنګه د اجارې شی به شرعاً مباح وي هغه څه چې شرعاً حرام وي لکه : د خنزیز غوښه ، شراب ، د موسیقي اجرت او داسې نور اجاره یې رواه نه ده (معاملات ماليه المعاصرة زحيلي).

په زور او اکراه سره اجاره نه صحي کیږي همدارنګه نامعلومه اجاره چې کرایه ، اجرت ، موده او نور پکې مجهول وي نه صحي کیږي.

همدارنګه د ایصال ثواب او عباداتو اجاره لکه : روژه ، لمونځ او نور نه صحي کیږي داسې چې څوک کوم کس په اجرت ونیسي چې زما لپاره روژه نیسه او یا لمونځ کوه.

د متأخرینو علماء په نزد د قرآنکریم په تعلیم ، آذان ، امامت او د جومات په خدمت باندې اجرت ورکول د ضرورت پر بنا جایز دي.

د احنافو په نزد د کور اجاره کول په کور ، د خدمت اجاره په خدمت ، د سورلۍ اجاره په سورلۍ سره او د زراعت اجاره په زراعت سره نه صحي کیږي ځکه په دې معاملاتو کې سود راځي. (معاملات ماليه المعاصرة وهبة زحيلي ص ۷۲).

همدارنګه سودي بانک ، سینما ، رقص خانې ، د شراب او نورو مخدره شیانو جوړولو او څښلو او خرڅولو ، د موسیقۍ کارولو او زده کولو ، فلم ، سریالونو او تصویرونو،فاحشه خانه ، د ښځو آرایشګاه ، د بې حجابی او تبرج لباس او سامان خرڅولو ، د ږیرې خریلو ، د مسلمانانو د غلولو او قمار بازۍ او نورو حرامو کارونو لپاره د کور ، دوکان او ځای په اجاره یا کرایه ورکول جواز نه لري.

جاء في الموسوعة الفقة الاسلامي :

لا يجوز تأجير البيوت والمحلات على من يبيع المحرمات كآلات اللهو المحرمة ..والأفلام والصور.. وأشرطة الفيديو والغناء.. والخمور والمخدرات.. والدخان والجراك.

وكذا من يتعاطى المعاملات المحرمة كالبنوك الربوية.. ومن يتخذ المحل معملاً للخمر.. أو مأوى لأهل الملاهي والزنا.. أو مكاناً لعرض أزياء التبرج وبيعها.. أو محلاً لبيع أواني الذهب والفضة.. أو محلاً لحلق اللحى ونحو ذلك؛ لما في ذلك من الإعانة على المحرم، وغش المسلمين، والتعرض لعقوبة الله، وحصول الفتنة.

یعنې : د حرامو معاملاتو لکه : د حرام لهوو سامان آلات، فلمونه ، حرام تصویرونه ، ویدیو موسیقي ، شراب او مخدراتو لپاره د کورونو په اجاره ورکول جواز نلري .

همدارنګه څوک چې د سود حرام معاملات تر سره کوي ، د شرابخورۍ ، موسقۍ او زنا ځای ، آرایشګاه ، د سپینو او سرو زرو د ظروفو خرڅول ، او د ږیرې خریلو ځای لپاره مکانونه په اجاره ورکول حرام دی ځکه دا په حرام کار کې مدد کول دي .

الله تعالى فرمايي :[وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ] (المائده ٢).

(الموسوعة الفقة الاسلامي –حكم تأجير أهل المحرمات)

**د كرايې احكام :**

١- كه څوک كور په كرايه وركړي او په اول كې دا شرط تعين كړي چې څلور مياشتې يا شپږ مياشتې اجاره صحي ده مالک نشي كولای په دې مدت كې كرايه نشين وباسي (شرح البدايه ج ٣ ص ٢٨٦).

٢- كه څوک چا ته كور پدې شرط په كرايه وركړي چې كه كومې خرابۍ پكې راځي ته به دهغه نقصان جبران كوې يا په دی شرط دهغه مرمت به كوې همدا يې كرايه ده دا اجاره فاسده ده (شرح التنوير ج ٢ ص ١٧٧).

٣- كوم وخت چې كور په كرايه وركړ شي او قرارداد وشي بيا كه سكونت پكې نه كوي هم د مياشتې په آخر كې به كرايه ادا كوي (شرح التنوير ج ٢).

٤- كه څوک كتاب دلوستلو لپاره په كرايه ونيسي د امام ابوحنيفه په نزد صحي نه دی (فتاوی هنديه ج ۴ ص ۴۴۹).

٥- دپسه ،ګاميښ او غوايې په كرايه نيول د ښځينه حيوان سره د يوځای والي لپاره چې حمل واخلي حرام دي (شرح البدايه ج ٣ ص ٢٨٧).

٦- دكور د آرايش لپاره ظروف اجاره كول نا جائز دي ، مگر د استعمال لپاره په كرايه نيول روا دي (فتاوی هنديه ج ۴ ص ۴۵۴).

٧- كه څوک وسيله نقليه په كرايه ونيسي دهغې لپاره جايز نه دي چې د معمول له طريقې يې زيات بار كړي (فتاوی هنديه ج ۴ ص ۴۴۰).

٨- كه بل څوک د سندرو ويلو ،رقص ،طبله وهلو لپاره په اجره ونيسي دا هم باطله معامله ده (فتاوی هنديه ج ٣ ص ١١٣٥).

۹- دکرایې وخت چې پوره شي نو خپله به مکان خالي کوي او خپل سامان به ورنه وباسي او مالک به خپل ملکیت په قبضه کې راولي.(اسلامې فقه)

۱۰- دکرایې لپاره چې کوم لوښي یا ظروف کرایه کیږي د هغه د راوړلو کرایه په کرایه نیونکي ده او د بیرته وړلو یې په مالک ده. (اسلامې فقه)

۱۱- دکرایې مکان سمول ،مرمت ،دلارې جوړول کوم شیان چې دکرایه دار دپاره تکلیف وي ددې ټولو برابرول په مالک دي خرڅ به یې مالک برداشت کوي. (اسلامې فقه)

۱۲- که کرایه دار د خپل طرف نه د خپلې آسانی لپاره څه شی پکې جوړ کړل نو د هغه دوه صورتونه دي که مالک اجازه ورکړی وي نو بیا یې خرڅ په مالک دی او که پخپل سر یې جوړ کړی وي بیا خرڅ په کرایه دار دی ، همدارنګه د مکان صفاکول ،جارو کول ، د خس او کثافاتو غورځول په کرایه دار دي. (اسلامې فقه)

۱۳- که کرایه نیونکي مکان خراب کړی وي یایې ډیر زیات ګنده کړی وي نومالک ته دهغه د ویستلو اختیار شته. (اسلامې فقه)

۱۴- که لوښي یا نور سامان دکرایې لپاره کور ته راوړل شي او استعمال نه شي نوکرایه به اداکوي ،لکن که کور ته راوړل شوي نه وي نوکرایه یې نشته خو ژر به خبر ورکوي. (اسلامې فقه)

۱۵- که کرایه نیونکی یا مالک یو تن مړ شو نو د تیرې کرایې معامله ختمه شوه اوس به نو له وارثانو سره له سره معامله کوي. (اسلامې فقه)

۱٦- دکرایې لپاره په دې شرط پیشکي یا ادوانس ورکول چې که مې دا مکان یا سورلئ یا بل شی په کرایه ونه نیول شي دا رقم به دې مالک وي ، داسې کول حرام دي دا دمالک زیاتی دی. (اسلامې فقه).

۱۷- مشترک مکان ،مشترک څیز په کرایه باندې اخیستل جائز نه دي. (اسلامې فقه)

۱۸ – که څوک چاته کور په کرایه ورکړي وخت یې نه وي معلوم چې د څو ورځو لپاره یا کرایه یې نه وي معلومه چې د میاشتې څومره نو دا اجاره فاسده ده. (اسلامې فقه)

۱۹- که څوک کور په دې شرط په کرایه ورکړي چې په هغه کې استوګنه کوه په وخت د ضرورت کې دهغه مرمت کوه عاریت (بې له عوضه کومک) شمیرل کیږي جائز دی. (اسلامې فقه)

**اجیر خاص او اجیر مشترک :**

مخکې کې بیان شول چې اجرت په دوو ډولو تر لاسه کیږي یو د کرایې په وسیله او بل د کار او مزدورۍ په وسیله اجیر او مزدور په دوه ډوله دی اجیر خاص او اجیر مشترک.

**اول اجیر خاص :**

اجیر خاص هغه دی چې په خاصه او ټاکلې موده کې د ځان په حاضرولو سره د اجرت او مزدورۍ مستحق ګرځي که یې څه هم کار نه وي کړی دی د اجرت مستحق وي، مثلاً یو کس په میاشتني معاش باندې مزدور نیسي او میاشتنی معاش ورکوي.

یعنې اجیر خاص د خاص کار دپاره ټاکل شوی وي د بل کس کار نشي کولای ځکه په ټاکلې موده کې د ده د لاس حاصل صرف د همدغه یوه کس چې ده په مزدورۍ نیولی دی حق جوړیږي (هدایه ج ۳ ص ۳۰۸ – عمدة الاحکام ص ۲۴۵).

اوس پوښتنه دا ده چې که د دغه مزدور څخه د کار پر مهال څه تاوان وشي نو ذمه وار یې څوک دی ؟ مثلاً څه سامان ورڅخه مات یا نقصاني شي او

يا څه کار ورڅخه خراب شي په هغه صورت کې چې قصداً يې داسې نه وي کړي دی له تاوان څخه خلاص دی.

هدايه ليکي : و لا ضمان على الاجير الخاص فيها تلف في يده و لا ما تلف من عمله (هدايه ج ٣ ص ٣٠٨).

همدارنگه علامه زحيلي ليکي چې په دې شرط په هغه باندې تاوان نشته چې قصداً يې تاوان نه وي رسولی او نه د ده د تقصير او کوتاهۍ له کبله تاوان رامينځه شوی وي.

اتفق ائمة المذاهب وهم (الحنفية و المالكية و الشافعية و الحنابلة) على انه لايكون ضامناً العين التى تسلم اليه للعمل فيها ، لان يده امانه كالو كيل و المضارب ، كما اذا استأجر انسان خياطاً او حداداً مدة او شهر ليعمل له وحدة ، فلايضمن العين التى تهلک في يده ، مالم يحصل منه تعد او تقصر فى حفظه سواء تلف الشى ء فى يده او اثناء عمل (الفقه الاسلامي و ادله ج ٥ ص ٣٨٤٧).

يعنې : په دې باندې د څلورو مذاهبو (حنفيه ، مالکيه ، شافعيه او حنابله) اتفاق دی چې هغه کس چې ځان يې د کار لپاره سپارلی دی له تاوانه خلاص دی ، ځکه د ده لاس د وکيل او مضارب په شان امانت بلل کيږي ، نو که يو کس خياط يا آهنگر د يوې ورځې يا مياشتې لپاره په مزدورۍ ونيسي چې صرف زما کار به کوې ، نو که د ده له لاسه مات ، هلاک او نقصان شو دی يې ضامن نه دی دا په هغه صورت کې چې ده دغه کار قصداً او د خپل حد څخه تجاوز نه وي کړی او د مال په ساتنه او حفاظت کې يې کوتاهي او تقصير نه وي کړی دا فرق نه لري که د ده په لاس کې مال ضايع شي او يا د ده د کار له امله.

**دوهم اجير مشرک :**

اجير مشترک هغه دی چې د عامو خلکو لپاره کار کوي او يا دا چې د اجرت مستحق هغه وخت ګرځي چې کار وکړي صرف د ځان په سپارلو او حاضرۍ باندې اجير مشترک نه ګرځي لکه : دوبي ، خياط ، نانوای د سامان جوړولو فاريکه او نور....

ځکه دوی د يو کس لپاره کار نه کوي بلکې د عامو خلکو لپاره کار کوي (هدايه ج ۳ ص ۳۰٦).

اوس پوښتنه دا ده چې که د دغه اجير مشترک څخه د کار پر مهال څه تاوان وشي نو ذمه وار يې څوک دي ؟ په دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی.

علامه زحيلی رحمه الله ليکي :

فقد اختلوا فيه : فقال ابوحنيفه و زفر والحسن بن زياد و الحنابلة فی الصحيح من مذهبهم و الشافعی فی الصحيح من قوليه الا انه لم يکن يفتی به لفساد الناس : ان يده يد امانة کالاجير الخاص فلا يضمن ما تلف عنده لا بالتعدی او التقصير ، لان الاصل الا يجب الضمان الا بالاعتداء لقوله سبحانه وتعالی : فلا عدوان الا علی الظالمين (البقره ۱۹۳) ، ولم يوجد التعدی من هذا الاجير لانه ماذون فی القبض و الهلاک ليس هو سبباً فيه (الفقه الاسلامی و ادله ج ٥ ص ۳۸۴۸).

يعنې : د اجير مشترک د ضمانت په هلکه اختلاف دی امام ابو حنيفه ، زفر ، حسن بن زياد د امام احمد د مذهب صحي قول د شافعي يو له صحيح اقوالو څخه که څه هم د خلکو د فساد له کبله يې (مفتی به) قول نه دی ، دوی وايي چې اجير مشترک هم د اجير خاص په توګه دی چې د اجير مشترک لاس د امانت لاس دی ، نو که د ده له لاس څخه څه شی ضايع او خراب شي ضامن نه دی دا په هغه صورت کې چې خرابي د ده لخوا قصداً نه وي او يا د ده تقصير او کوتاهۍ له کبله نه وي رامينځته شوې ځکه اصل دا

دی چې ضمان صرف په اعتدا سره واجبیږي په دلیل د قول د الله تعالی: ژباړه: (نشته هیڅ تېری لکن پر ظالمانو باندې) نو ددغه اجیر له طرفه خو ظلم او تجاوز ونه موندل شو ، ځکه ده د مالک په اجازه پر مال قبضه کړی او هلاکت په دې کې سبب نه دی.

مگر امام یوسف امام محمد ، یو قول د امام مالک او یو قول د امام شافعی همدارنگه یو قول د امام احمد دا دی چې اجیر مشترک ضامن دی که د ده په لاس کې یا د ده عمل څخه څه شی ضایع شي نو تاوان یې پر هغه دی که د ده د کوتاهۍ او تقصیر څخه را مینځته شوی وي او که نه.

مثلاً که دوبي کالي ورک کړل یا زرگر زر ورک کړل یا د کار کولو پر مهال کار خراب شي نو تاوان به پر دوی وي.

مگر که یو ناڅاپی آفت راشي مثلاً کور اور واخلي یا سیلاب راشي کور او دوکان خراب کړي نو ددې تاوان په اجیر مشترک نه دی.

فقه الاسلامی و ادله لیکي :

و قال صاحبان و احمد فی روایة اخری : ید الاجیر المشترک ید ضمان ، فهو ضامن لمایهلک فی یده و لو بغیر تعد او تقصیر منه ، الا اذا حصل الهلاک بحریق غالب عام ، او غرق غالب ونحوهما ، واستدلوا بفعل عمر وعلی.(فقه الاسلامی و ادله ج ۵ ص ۳۸۴۸).

یعنې : د صاحبانو امام یوسف او امام محمد او یو روایت کې امام احمد وایي : چې اجیر مشترک د مال د تاوان ذمه واره دی د هغه مال تاوان به له ده څخه اخیستل کیږي کوم چې د ده په لاس کې هلاک او ضایع شوی دی که څه هم له ده څخه کوم تقیر او تجاوز نه وي شوې ، مگر که هلاکت عام وي لکه اور یا عمومي غرقېدل یا دې ته ورته عمومي آفت راغی نو دی یې ذمه وار نه دی او دغو حضراتو د حضرت عمر فاروق او حضرت علی رضی الله عنهما په فعل استدلال کړی دی.

د اوس وخت حالاتو ته په کتلو سره سړی ویلای شي چې د خلکو د مالونو د حفاظت پخاطر دغه قول چې اجیر مشترک ضامن وګرځول شي غوره او د احتیاط څخه ډک قول دی.

ځکه نو زیاترو متأخرینو د صاحبینو په قول فتوی ورکړې ده.

شرح الکنزالدقائق لیکي : و بقولهما یفتی الیوم لتغیر احوال الناس و به یحصل صیانة اموالهم (شرح الکنزالدقایق ج ۵ ص ۱۳۵).

یعنې : نن ورځ د خلکو د حالاتو د تغیر له کبله د صاحبینو پر قول فتوا ورکول کیږي او صرف په دې ډول د خلکو د مالونو ساتنه را تلای شي.

د صاحبینو قول د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې قول سره سمون خوري چې : علی الید ما اخذت حتی تودیه (مسند احمد ، او سنن اربعه).

یعنې : پر لاس د هغه شي ادا کول لازم دي چې ده اخیستي وي.

**د مزدورانو حقوق او فرائض:**

د مزدورانو لپاره چه اسلامي شریعت کوم اخلاق ،هدایات او قانوني اصول تعین کړي که عملي شي نو د مزدوران به آرام مطمین شي د دوی حق به نه ضایع کیږي او په دوی به ظلم نه کیږي.

**اسلامی هدایات :**

نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایي :«أَعْطِ الأَجِيرَ أَجْرَهُ، قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ» (ابن ماجه).

یعنې : د مزدور مزدوري دهغه دخولی وچیدونه مخکې ورکړئ.

که چا مزدوري ورنه کړه یایې کمه ورکړه یا یی ټال پکې وکړ نو دهغه په باره کښی فرمایي چه د قیامت په ورځ چه زه به د کومو دریوکسانو پرخلاف مدعی یم په هغه کې به یو :

«وَ رَجُلٌ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَاسْتَوْفَى مِنْهُ وَلَمْ يُعْطِ أَجْرَهُ» (البخاری ۲۲۲۷).

يعنې: كوم سړی چه مزدور ونيسي دهغه نه پوره كار واخلي مگر مزدوري پوره نه وركوي .

همدارنگه فرمايي :

«إِخْوَانُكُمْ خَوَلُكُمْ، جَعَلَهُمُ اللَّهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ، فَمَنْ كَانَ أَخُوهُ تَحْتَ يَدِهِ، فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ، وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ، وَلا تُكَلِّفُوهُمْ مَا يَغْلِبُهُمْ، فَإِنْ كَلَّفْتُمُوهُمْ فَأَعِينُوهُمْ» (البخاری ۳۰).

ژباړه : دوی ستاسو وروڼه دی چه الله (جل جلاله) ستاسو ماتحت كړی دي نو چه دچا ورور دهغه ماتحت شي نو هغه لره پكارده چه څه خوړئ هغه لره يې هم وركړي چې څه اغوندې هغه لره يې هم واغندي او دهغه نه داسې كار مه اخلئ چه هغه باكل مغلوب اوبې وسه شي كه د هغه نه سخت يا زيات كار اخيستل وي نو په هغه كې ورسره مدد كوئ.

او فرمايي :«وَاَكرِمُوهُم كَكَرَامَةِ اَولاَدِكُم وَاَطعِمُوهُم مِمَّا تَاْكُلُون» (مشكوة)

ژباړه : د دوی حفاظت داسې كوئ لكه د خپلو اولادونو او څه چه تاسئ خورئ هغوی ته يې هم وركوئ.

هغوی (صلی الله عليه وسلم) ددې مظلومې طبقې دومره خيال كولو چه د وفات په مرض كې كوم آخري نصيحتونه يې چه وفرمايل په هغی كې يو دا وه :

«الصَّلاَةَ الصَّلاَةَ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ» (اوبوداود و سلسلة صحيحة).

يعنې : د لمانځه ، لمانځه او خپلو ماتحتو ډير خيال ساتئ.

يوصحابي پوښتنه وكړه چه كه يو ملازم يا مزدور غلطي وكړي نو څو ځله دهغه معافی كول پكار دي هغوی (صلی الله عليه وسلم) ددې څه ځواب ورنه كړو دوهم ځل يې بيا همدا پوښتنه وكړه هغوی (صلی الله عليه وسلم) بيا هم

چوپ پاتې شو په دريم ځل يې پوښتنه وکړه نو رسول الله (صلى الله عليه وسلم) وفرمايل:«اعفوا عنه في كل يوم سبعين مرة» (أبو داود۵۱٦۴).

يعنې : كه د ورځې اويا ځله غلطي وكړي نو معاف كوه يې.

**دكار فرما يا دكار د مالک حقوق او مسئوليتونه :**

١- د شوې معاهدې پربنا به له كارگرو په ماهوار يا ورځني اجرت كار اخستيل كيږي .

٢- د اجير دمجبورۍ نه په گټه پورته كولو سره زيات كار اخستل په كم مزد ندي پكار كه څوک داسې وکړی نو اخلاقاً او دیانتاً به مجرم وي .

٣- كه صاحب كار دا محسوس كړه چه مزدور وران كاري كوي يا كار ته زړه نه لگوي نو هغه ته دا حق شته چه له كاره يې لرې كړي ، خو مخكې بايد دوو خبرو ته پام وكړي لومړی دا چې: څه جسمی عذر (كومه ناروغي)ونه لري، دوهم دا چې: دده د دلچسپۍ نه لرلو علت كم مزدي نه وي كه چيرې د اجرت او مزد دا كمی له رواجي يا اجرت مثل نه كم وي نو بايد ور زيات شي او كه دا دوه علتونه موجود نه وي نو بيا زيات كار هم ورڅخه اخيستی شي او تاوان هم ورڅخه اخيستی شي .

٤- اجرت به په ټاكلی موده وركوي خو كه اتفاقاً كومه ورځ يا مياشت ټال پكې راشي نو باک نلري مگر كه عادتاً دغسې كوي نو په قانوني او اخلاقي دواړو مجرم دی.

٥- د مزدور څخه د هغه د توان څخه پورته كار نه اخستل كيږي ولو كه د مزدور رضا هم وي .

٦- مالک دكار مزدورانو ته تنبيه وركولی شي مگر ښكنځل ،بد رد يا وهل ټكول نشي كولی كه يې وكړي نو مسئول حكمرانان سزا وركولی شي.

**دمزدور مسئولیتونه یا ذمه واري :**

۱- د شوې معاهدې یا قرارداد مطابق به په قانوني او اخلاقي ډول کار سر ته رسوي .

۲- مزدور په شان د یوه امین وي باید د خپل ورسپارل شوي کار او د کار لپاره سامان دواړو حفاظت به په پوره ایمانداری کوي که کوم څیز اتفاقاً خراب شي نو دهغه تاوان په مزدور نه شته خو که قصداً یې خراب کړي د هغه تاوان به ورکوي.

۳- که کارگر یا مزدور د مالک د هدایت خلاف کار وکړي او کار خراب شي پداسې حالت کې به تاوان ورکوي .

۴- د څومره ورځو یا څومره کار لپاره چه کوم معاهده یا قرارداد شوی وي اجیر ته دا حق نشته چه مخکې دهغه له ختمیدو بغیر له کوم عذر کار پریږدي.

**د مزدور د ځورولو او حق خوړلو سزا :**

په اوسني عصر کې په اکثره اسلامي ټولنو کې د مزدور حق خوړل کیږي او یا هغه پخپل حق ځورول کیږي چې لاندې څو صورتونه لري :

**اول صورت :** په کامله توگه د مزور د حق خوړل چې هغې ته ډول ډول بهانې جوړوي او بلاخره یې په پوره توگه حق خوري ، مزدور چې مظلوم وي له خپل حق څخه د دفاع وس نه لري او عادل حکومت نه وي چې د مظلوم له حق څخه دفاع وکړي نو دا فیصله د قیامت ورځې ته پاتې شي د قیامت په ورځ به مظلوم ته د ظالم کس حسنات ورکړ شي که پوره نه شي بیا به د هغه مظلوم بدی پر ظالم واچول شي او بلاخره به دوزخ ته کش کړ شي ، لقوله سبحانه وتعالی :[ویل للمطففین] (هلاکت دی هغو کسانو د پاره چې د خلکو حقوق پوره نه ورکوي)

**دوهم صورت :** د مزدور څخه د لږ مزد په عوض کې زيات کار اخيستل او يا داسې چې د هغه سره په ټاکلي وخت تعهد شوی وي مگر بيا هم د ټاکل شوي وخت څخه زيات کار وربانديې کول ، چې مزور د مظلوميت او مجبورت له وجې د خپل حق عږ نشي پورته کولای.

**دريم صورت :** د مزدور سره چل او فريب کول ، د مزدور سره شوی تعهد يا قرارداد يو څه وي مگر په عمل کې بل څه وربانديي کوي ، لقوله رسول الله صلی الله عليه وسلم :«من غشانا فليس مني» (فريب ورکوونکی له مونږ څخه نه دی).

**څلورم صورت :** مزود ته خپل حق پر خپل وخت نه ورکول ، مزود ته به په خپل وخت د عرف سره سم مزد ورکول کيږي که له هغه سره د ورځې خبره شوې وي د ورځې په پای کې به مزد ورکوي او که د مياشتې خبره ورسره شوې وي د مياشتې په پای کې به د هغه مزد ورکوي.

مگر ځينې کسان او ځينې کمپنۍ مزدور ته خپل حق پر خپل وخت نه ورکوي بلکي هغه تر ډيره وخته پخپل حق پسې لا لهانه منډې وهي او د سوالگر په شان د خپل حق غوښنته کوي چې کله خبره تر دعوي او محاکمو پورې ورسيږي ، دا چې د اوس زماني محاکم هر چا ته ښه څرگند دي، مزدور د دعوي د دوام پر ځای د خپل حق پيمال ته ترجيح ورکوي.

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم حکم کړی دی چې مزدور ته به په بيړه خپل حق ورکوئ :

«أَعْط الأَجِيرَ أَجْرَهُ، قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ» (صحيح ابن ماجه).

يعنې: د مزدور مزدوری د هغه د خولی وچيدو نه مخکې ورکړئ

**د مزدور د حق خوړلو خطرناکې پایلې :**

عن أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم قَالَ : قال اللهُ :«ثلاثةٌ أنا خصمهم يومَ القيامةِ : رجلٌ أعطى بي ثم غدرَ ، ورجلٌ باع حرًّا فأكل ثمنَه ، ورجلٌ استأجرَ أجيرًا فاستوفى منهُ ولم يُعْطِه أجرَه» (البخاری ۲۲۲۷).

ژباړه : د ابی هریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل : الله سبحانه وتعالی فرمایي : دری کسان دي چې د قیامت په ورځ به د هغوی دوښمن وم ، اول : هغه کس چې زما په نوم تعهد وکړي او بیا خیانت وکړي ، دوهم : هغه څوک چې آزاد کس و پلوري او د هغه قیمت وخوري ، دریم : هغه څوک چې یو کس څخه کار واخلي خو مزدوري یې ور نه کړي.

«المؤمن من أمنه الناس على أموالهم وأنفسهم والمهاجر من هجر الخطايا والذنوب» (: صحيح ابن ماجه :۳۱۹۳).

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : مؤمن هغه دی چې د هغه څخه د خلکو نفسونه او مالونه په امن وي او مهاجر هغه دی چې د ګناهونو څخه هجرت وکړي (د ګناهونو ځایونه پریږدي).

و ما توفیقي الا بالله علیه توکلت و الیه انیب

## اووم فصل
## زراعت (کرهڼه)

مخکې بیان شول چې د انسانانو د ژوند د ضروریاتو له وسیلو څخه دوې لویې ذریعې تجارت او زراعت دي ، د تجارت ضروري بیان مخکې تیر شو ، په دې بحث کې د زراعت مقاصد ، فضیلت او احکام تر څیړنې لاندې نیول کیږي.

څرنګه چې الله (جل جلا له) ټول مخلوق د انسان د ګټې او فائدې د پاره مسخر کړی دی دغه شان یې ځمکه هم د انسان د فائدې د پاره پیدا کړی ده:

قوله سبحانه وتعالی :[وَالأَرْضَ وَضَعَهَا لِلأَنَامِ * فِيهَا فَاكِهَةٌ وَالنَّخْلُ ذَاتُ الأَكْمَامِ * وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ] (الرحمن).

ژباړه : او الله ځمکه مخلوق ته و غوړوله ، په هغې کې (بېلابېلې) مېوې او د کجوري غوټې لرونکي ونې دي ، او زار زار غلی دي چې په هغو کې واښه هم دي او دانې هم دي.

دې ته ورته په قرآنکریم کې بې شماره آیتونو دی چې په هغه کې انسان ته خطاب شوی دی چې ځمکه الله تعالی ستاسو د روزی او معاش ذریعه ګرځولی ده لکه چې فرمایي :[هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الأَرْضَ ذَلُولاً فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِن رِّزْقِهِ] (الملک ١٥).

ژباړه : (الله) هغه ذات دی چې ځمکه یې تاسې ته (پسته او) هواره ګرځولې ده نو تاسې یې په اطرافو ګرځئ او د هغه له رزق څخه (چې پکې ځای پر ځای شوی دی) وخورئ.

که له یوې خوا یې انسان ته د رزق برابرولو ترغیب ورکړی دی بله خوا یې دا هم په ذهن کې ور کړی ده چې که ظاهراً هغه تاسې د ظاهري اسبابو په وسیله پخپلو لاسونو برابروئ دا ټول د الله (جل جلا له) قدرت دی که له تاسې

سره د الله (جل جلا له) پټ او ښکاره مدد نه وي نو تاسې يوه دانه هم نشی زرغونولای.

لقوله سبحانه و تعالی :[أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ، أَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ] (الواقعه ٦۴).

ژباړه : آيا تاسې هغه تخم چې کرئ ليدلی دی ؟ ايا تاسې هغه رزغونه وئ يا مونږ د هغه زرغونوونکي يو.

د زراعت انجنيران او محصلين په دې باندې پوهيږي چې په يوه هکټار ځمکه کې په زرگونو جينجې د بزکر يا دهکان سره د مدد د پاره اخته دي او دغه پټ لشکر (چينجي) ځمکه نرموي او د ځمکو لاندو طبقو ته نايتروجن ، نور معدني مواد ، هوا او اوبه رسوي.

که دغه پټ لښکر خپل کار پرېږدي نو زمونږ ټوله خارې به عبث وي.

همدارنګه که باران و نه وريږي هر څه به وچ شي ، دا هغه څه دې چې انسان ته ښکاري يا هغه څېرلي دي دا چې د انسان د سترګو پټ به د الله (جل جلا له) د کامل قدرت په قبضه څه وي هغه به د مخلوق ستر څښتن ته معلوم وي.

که تاسې د الله په قدرت کې په غور فکر او څېړنې وکړئ نو حيران به شئ او له سترګو به مو اوښکې وبهيږي بيا به د خپل رب (جل جلا له) په مينه کې ډير وژاړئ.

عرض دا چې هر څه د الله (جل جلا له) په قبضه او قدرت کې دي نو انسان به د خپل رب (جل جلا له) د حدودو پابندي کوي ځکه چې دا هر څه د امتحان د پاره دي :

لقوله سبحانه وتعالی :[إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الأَرْضِ زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلاً] (سوره الكهف ٧).

ژباړه : څه چې په ځمکه کې دي بې شکه مونږ د هغه لپاره ښایست ګرځولی دی ، څو دوی و ازمایو چې کوم یو د دوی په عمل کې ډیر غوره دی.

کوم حدود چې اسلامې شریعت د ځمکې د فائدې اخیستلو په باره کې ټاکلي دي د هغه عملي کول پکار دي لکه : د فصل ټولولو په وخت د کرهنې زکات ورکول او د الله (جل جلا له) د دغه حکم پر ځای کول :

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الأَرْضِ]
(البقره ٢٦٧).

ای مؤمنانو! لګوی ! له حلالو ،پاکو د هغو مالونو چه (په کسب سره) تاسې ګټلي ،او له هغې چه ما تاسې لپاره د ځکمی نه راویستلی دي .

ظلم غصب نه ځان ساتل ځکه چې غصب داسې ستر ظلم دی چې که په دنیا کې د قانوني ګرفت نه خلاص شي نو په قیامت کې به له سختې سزا سره مخ شي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :

«مَن أَخَذَ شِبراً مِّنَ الارَضِ ظُلماً فَاءِ نَّه يُطَوِّقُه يَومَ القِيامَةِ مِن سَبِع أَرِضِينَ»
(البخاري و مسلم).

ژباړه: څوک چې یوه لویشت پردی ځمکه په ظلم واخلي د قیامت په ورځ به دغه ځمکه تر اومې طبقې پورې د ده تر غاړه راتاو کړ شي.

همدارنګه د ځمکې د حاصیلاتو په حصه کې د نورو د حق له خوړلو څخه ځان ساتل.

**د الله تعالی د کوم کوم نعمت نه به څوک انکار وکړي ؟**

الله تعالی ځمکه او په هغه کې ټول موجودات د انسان د فائدې د پاره مسخر کړی دي ،او دغه د سترو انعاماتو ډک نظام او هستي یې ټول د هغه په خدمت کې ګرځولي دي ،نتیجه دا چې دا لویه هستي او انعامات د انسان د خدمت د پاره او انسان خپله د یوه لوي هدف د پاره چې د الله تعالی عبادت او فرمانبرداري ده پیدا شوی دی ، که انسان دغه موجوده کائناتو ته

نظر وکړي ، د هغه په پيدايښ کې غور او فکر وکړي نو د الله تعالی په په سترو او بې حسابه نعمتونو به اعتراف وکړي.

لقوله سبحانه وتعالى:[فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ * فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ] (الرحمن :٦٠).

ژباړه:په هغه کې هر ډول خوندورې مېوې او کجورې او انار دي ، نو (ای انسانانو او پيريانو) د خپل رب کوم ، کوم نعمت درواغ ګڼئ.

قوله سبحانه وتعالى :[وَالأَرْضَ وَضَعَهَا لِلأَنَامِ * فِيهَا فَاكِهَةٌ وَالنَّخْلُ ذَاتُ الأَكْمَامِ * وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ] (الرحمن).

ژباړه : او الله ځمکه مخلوق ته و غوړوله ، په هغې کې (بېلابېلې) مېوې او د کجوري غوټي لرونکي ونې دي ، او زار زار غلی دي چې په هغو کې واښه هم دي او دانې هم دي.

## د کرهنې فضيلت :

د کرهنې د فضيلت په باره کې په قرآن او سنتو کې ډير فضائل بيان شوي دي دلته يوازې د دوه حديثونه په بيان باندې اکتفا کوو :

عَنْ أَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ رضى الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا، أَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا فَيَأْكُلُ مِنْهُ طَيْرٌ أَوْ إِنْسَانٌ أَوْ بَهِيمَةٌ إِلاَّ كَانَ لَهُ بِهِ صَدَقَةٌ». (البخاری: ٢٣٢٠)

انس رضی الله عنه وايي جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي : هر مسلمان چې څه کرونده وکړي يا کومه ونه کيږدي ، نو کوم انسان ، حيوان او مرغه چې له هغه څخه څه وخوري ده لره به صدقه شميرل کيږي.

او همدارنګه فرمايي :

«من نصب شجرة فصبر على حفظها والقيام عليها حتى تثمر كان له في كل شيء يصاب من ثمرها صدقة عن الله -عز وجل» (أخرجه أحمد ٦١/٤).

ځوک چې ونه کښينوي او په صبر د هغه ساتنه او پالنه وکړئ تر دې پورې چې حاصل ته ورسيږي ، ده لره به د الله تعالى په نزد د پالنې د تکليف ، زحمت او ميوې په بدل کې صدقه وي.

**د ځمکې د اجارې او مزارعت احکام :**

که چيرې ځوک خپله ځمکه پخپله په څه وجه ونه کري يا وخت نه لري يا د هغه د کولو صلاحيت نه لري نو ده ته دا حق شته چې هغه خپله ځمکه بل کس ته په اجاره يا مزارعت ورکړي.

**اجاره يا لګان :** د ځمکې اجاره داسې معامله ده چې د ځمکې خاوند خپله ځمکه د نغدو پيسو په بدل کې بزګر يا دهکان يا کاشتکار ته ورکوي او بزګر د ځمکې د پيداوارو مالک ګرځي.

**مزارعت :** که ځوک خپله ځمکه په اجاره نه ورکوي يا هغه ځوک په اجاره نه اخلي نو دوهم صورت دا دی چې هغه په مزارعت يا دهکانۍ ورکړي کوم چې د مالک او بزګر تر مينځ به د ځمکې پيداوار تقسيمږي.

د مزارعت معامله ځينو اصحابو رضى الله عنهم او امامانو او نور حضراتو نا خوښه کړې ده.

ليکن اجاره کې د ټولو اتفاق ده.

**د مزارعت حکم :** مزارعت معامله خو پخپله ابتدا کې د اجرت او کرايې معامله وي مګر د نتجې په اعتبار سره د شرکت معامله ده.

د شرکت د وجې نه ددې معاملې خاص حکم دا دی چې په دواړو کې به يو هم دا تعين نه کوي چې ستا دومره بورئ او زما دومره او يا ستا دومره منه او زما دومره منه بلکي دوی به پخپل مينځ کې د حصې تعين کوي مثلاً دريمه حصه د دهکان وي باقي د مالک يا به نمايي او نور.

يعنې يوازې حصه او برخه به معلومومي.

**د مزارعت شرطونه :**

۱- د مزارعت او اجارې لومړی شرط دا دی چې دواړه به عاقل وي یعنې په معامله به پوه وي فرق نه کوي که بالغ نه وي.

۲- کومه ځمکه چې په اجاره ورکول کیږي هغه به د کروندې د پاره اماده وي.

۳- مالک او دهکان به پخپل مینځ کې حصه معلوموي کوم چې مخکې بیان شول.

۴- د بزګرۍ ، تخم او وسائلو (تراکټور ، غوایان او نور) په باره کې به فیصله کیږي چې لاندې صورتونه لري.

الف) : دا چې ځمکه د یو کس وي کرونده ، تخم او وسائل د بل کس وي.

ب) : دا چې ځمکه وسائل او تخم د یو کس وي کرونده یا خواري د بل کس وي.

ج) : دا چې ځمکه او تخم د یو کس وي او کرونده او وسائل د بل کس وي.

پورته درې واړه صورتونه جایز دي مګر که ځمکه او وسائل د یو کس وي تخم او کرونده د بل کس وي په عام طور د احنافو د فقهاوو په نزد جایز نه دی مګر د امام ابویوسف په نزد جایز دی.

**او دوه صورتونه نا جایز دي :**

الف) : دا چې ځمکه او کرونده د یوه کس وي تخم او وسائل د بل کس وي.

ب) : دا چې تخم د یو کس وي او نور ټول د بل کس وي.

۵- شرط : په ځمکه کې چې کوم شی کرل کیږي هغه دې وښودل شي مثلاً غنم ، وریجې ، کچالو او نور ، داسې نه چې مالک د یو شي کرل غواړي او دهکان بل څه کرلي وي او بیا وروسته د اختلاف سبب شي.

٦- د ځمکې ورکولو موده به تعینوي یو فصل ، یو کال دوه کاله او نور ...

۷ – ځمکه به خالي کوي او هغه به بزګر ته تسلموي.

۸- د فصل ټولولو وروسته به هر يو د خپلې حصې موافق پيداوار اخلي داسې نشي کيداى چې يو طرف ووايي ماته د غلې په عوض کې نغدې پيسي يا بل جنس راکړه بلکې همغه پيداوار به تقسميږي.

د اجارې شرطونه : د ځمکې د اجارې شرطونه ټول هغه شرطونه دي چې د کرايې د پاره وي د ځمکې د اجاري د پاره ددې شرطونو نه علاوه د مزارعت د پنځم او آتم شرط نه نور ټول شرطونه د اجارې د پاره هم دي.

**مساقات :**

د ځمکې حصه يا دهکانۍ ورکولو ته مزارعت وايي کوم چې مخکې بيان شو او د ميوه دارو ونو حصو ورکولو يا په دهکانۍ ورکولو ته مساقات وايي.

يعنې که څوک ميوه داري ونې په دې شرط چا ته وسپاري چې ددې باغ اوبول او خدمت کوه چې کوم حاصل وشو نو هغه به تقسيموو چې دې ته په شريعت کې مساقات وايي ، او د سقي معنى اوبه ورکول دي.

**د مساقات شرطونه :**

د مساقات د پاره هغه شرطونه دي کوم چې د کرهنې د پاره وو مگر په ځينو شيان کې له مزارعت سره فرق لري چې د هغې بيانول ضروري دي.

د مساقات د پاره يو شرط دا دى چې د ميوو باغ به تيار وي داسې نشي کيداى چې بزگر ته وويل شي چې ته ونې کښينوه بيا چې هر کله حاصل ته ورسيد دواړه به پکې شريک وو دا معامله نا جايزه ده ځکه په زراعت کې د کروندې موده لنډه وي دهکان ته هم نفعه ژر په لاس ورځي او د مودې د کموالى له امله د اختلاف گنجايش هم نه وي مگر د باغ رسيدل زيات وخت نيسي د هغې حاصل هم ژر په لاس نه راځي او د مودې د زياتوالى له امله په هغه کې د اختلاف ويره هم وي ځکه کيداى شي د يو طرف فيصله بدله شي.

په مساقات او مزارعت کې دوهم فرق دا دی چې د مساقاتو په معامله کې یو طرف هم بغیر له سخت ضرورت خپله معامله نشي فسخ کولای که کوم طرف یې فسخ کړي نو هغه به قانوناً د هغه په کولو مجبوریږي.

**په جایداد باندې ملکیت کله ثابتیږي ؟**

په اسلامي شریعت کې په ځمکه یا جایداد یا مال باندې د سړي ملکیت په دریو طریقو سره ثابتیږي کوم چې ددې طریقو څخه په هر کومه طریقه د یو شي کوم څوک مالک شو نو بیا د ده ملکیت د اجازې نه بغیر نه کوم کس او نه هم حکومت اخستی شي او نه هم بې اجازې په هغه کې څوک تصرف کولای شي.

البته د داسې ملکیت په تصرف کولو کې اسلامي حکومت هغه وخت څه پابندي لګولای شي چې د هغه مالک خپل مال په فضول خرچۍ کې مصرفوي یا د بل کس یا ټولنې په نقصان وي بغیر ددې نه د څه تصرف کولو حق هیچا ته نشته.

دا دری صورتونه کوم چې په هغه سره ملکیت ثابتیږي دا دي :

۱- چې د طرفینو په خوښه د کوم چا څخه څه شي په قیمت سره واخلي یا چا ته څوک څه شی هبه کړي یا یې د انعام په شکل ورکړي نو په دې سره به د نومړي کس ملکیت ثابت شي ، خرچونکی ، هبه ورکونکی او انعام ورنکی په هغه کې د تصرف حق نه لري.

۲- دوهم صورت دا دی چې چا ته څه شی په میراث پاتې شي.

۳- دریم صورت دا دی چې سړی پخپله خوارئ یا سرمایې لګولو سره څه مباح شی پخپله قبضه کې راولي.

**مباح څیزونه کوم دي ؟**

الله (جل جلا له) په دې کائیناتو کې ډېر څیزونه داسې پیدا کړي دي چې انسان پخپل محنت سره په هغه باندې قبضه لري مګر بې شمیره داسې څیزونه هم شته چې هغه د ټولې انساني آبادۍ شریکه سرمایه ده لکه اوبه، هوا، بحر، رڼا ، خزانه ، پخپله زرغون شوي واښه ، ځنګلونه او نور.

**په دې څیزونو باندې کله او څنګه ملکیت قایمیږي ؟**

په دغه څیزونو کې ځینې داسې دي چې په هغې باندې اسلام د چا ملکیت نه ثابتوي مثلاً سمندر ، سیند، هوا او فضا، رڼا چې هر انسان یې تر هغه وخته پورې استعمالولای شي څو پورې نور ته ضرر او نقصان نه وي مثلاً په سمندر کې هر حکومت خپل تجارتي بېړۍ لیږلی شي ، په فضا کې هر حکومت خپلې الوتکي الوزولای شي.

لکن که له فضا یا سمندر څخه کار اخیستل د بل چا په نقصان یا د بل ملک د حملي کولو د پاره وي نو بیا دا ډول حرکت او استفاده په اسلام کې ظلم او غصب بلل کیږي ځکه چې دا یو عام نعمت او رحمت دی هغه به بلا او مصبت نه ګرځوي.

همدا شان که څوک د کومې آلې په وسیله مثلاً له هوا یا د لمر له انرژي څخه کار اخلي نو ده ته د هغې حق دی مګر که دا آله د بل چا په ضرر وي بیا د کارولو حق نه لري.

او همدارنګه که څوک پخپله خواری یا سرمایې لګولو د بحر له ابو یا لمر څخه کار واخلي نو هغه به د هغه قدرې څیز مالک وي کوم چې ده پخپله قبضه کې راوستی وي.

**د ابو ملکیت چا لره دی ؟**

د اوبو ملیکت څلور صورتونه لري :

۱- لوی سمندرونه چې د هیڅا ملکیت نه دی.
۲- لوی سیندونه ددې حکم هم د سمندرونو دی.
۳- هغه ویالې ، حوض او نهرونه چې خلکو یا حکومت پخپل محنت یا پانګه لګولو سره جوړ کړی وي ددې اوبو ملکیت د پانګې لګولو واله دی.
لکن هغوی ته دا حق نشته چې خلک یا حیوانات د اوبو څښلو څخه منع کړي یا د اوبو ورکولو څه کرایه واخلي.
رسول الله صلی الله علیه وسلم د دینه منعه فرمایلې ده او حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د داسې خلکو سره د جنګ اجازت ورکړی دی (بدائع الصنائع ج ٦ ص ۱۸۹).
که د ډیرو حیواناتو د راتلو په وجه د حوض د غاړو د ماتېدو یا خرابیدو ویره وي نو هغه ورباندې پابندي لګولای شي او د خلاف ورزی یا فصل ته د نقصان رسولو په صورت کې هغه ته د منع کولو حق هم شته.
۴- هغه اوبه چې کوم چا پخپل لوښي کې ذخیره کړې وي ، هغه د ده حق دی او هغه خرچولای هم شي او څوک ور څخه منع کولای هم شي.

**د اوبو ښکار :**

د سیند ماهیان د هیڅا حق نه دی ، مګر که څوک شخصي حوض جوړ کړي ماهیان ونیسي او په هغه کې یې واچوي نو ددې دوه صورتونه دي :
الف) : دا چې حوض کوچنی وي ماهیان بغیر له وسائلو نیول کیدای شي نو داسې ماهیان د هغه ملک بلل کیږي.
ب) : که لوی حوض وي چې ماهیان پرته له وسائلو جال وغیره نشي نیول کیدای نو دا حوض د ده ملک دی خلک له ښکار څخه منع کولای شي مګر په اوبو کې د ماهیانو خرچول نه صحي کیږي د ماهیانو بیعه هغه

وخت صحي وي چې کله يې ښکار کړي او بيا يې پر خلکو و پلوري په اوبو کې د ماهيانو خرڅول صحي نه دي. (اسلامي فقه مولانا مجيب الله ندوي)

**د واترپمپ په ذريعه ايستل شويو ابو خرڅول ؟**

د ټربين اوبه خرڅول په دي رقم چه يوساعت په لس روپۍ او دوه ساعت په سل روپۍ دغه معامله جواز نلري ځکه د زمکي لاندي اوبه د چا ملك نه دي دا بيع صحي نه ده

الماء الجاري تحت الارض ليس بملك احد (الماده ١٢٣٥)

المياه الابار قبل اخراجها واحرازها فلاتملك وان كانت نفس الابار مملوكة كماتقدم (مجلة ۴ج۱۷۷ص)

**دټربين د اوبو د خرڅولو درى طريقې دي:**

لومړى طريقه: چې اوبو ته يو حوض جوړ کړي او يا هغه په ټانکر کې واچوي او بيا يې ورکړي .

فاذا اخذالماء و جعله في جرة او ما اشبهها من الاوعية فقد احرزه فصار احق به فيجوز بيعه(هنديه۳ج۱۲۱ص)

دوهمه طريقه: چې ورته ووايي چې اوبه خوشې درکوم خو ماشين درباندي اجاره کوم دغه اجاره کول صحيح ده

تتمة تجوز اجارة القناة و النهر مع الماء وبه يفتى لعموم البلوى (مجلة ۵۲۷ماده)

لايجوز بيع الماء في بيره ونهره هكذا في الحاوي و حيلته ان يواجر الدلو و الرشاء هكذا في محيط السرخسي (هنديه ج۳ ص۱۲۱)

دريمه طريقه:چې ماشين هم خوشى وي او اوبه هم خوشې وي خو دتيلو مصرف ورڅخه واخلي په دې کې هم کراهيت نشته (فتاوى محمديه)

ثم اقول بعد البيان المذكور فقد اجاز بيع الماء البير بلا اتخاذ الحيلة سئل في رجل ينزع من بئرمعينة ماء بالات النزع هل يملكه ويسوغ له بيعه ؟

اجاب: نعم يملكه ويسوغ له بيعه (فتاوى الخيريه١ج ٣٦٢(على تنقيح الحامديه)

**حريم څه وايي ؟**

حريم د ملكيت او جايداد د گټې اخيستنې او استفادې كولو چاپير ساحې ته وايي.

لكه : د كوهي حريم ، د لارې حريم او د چنې او نورو حريم.

**١- د كوهي حريم :** د كوهي حريم ځلورو طرفونو ته ۴٠ گزه دى ، كه هغه د (العطن) كوهي او يا د (الناضح) كوهي وي.

من حفر بئراً فله مما حولها اربعون ذراعاً لما شية (ابن ماجه و ترمذي).

كوهي په دوله ډوله دي يو هغه قسم كوهي ده چې اوبه يې په لاس ايستل كيږي دې ډول كوهي ته العطن وايي او بل قسم هغه كوهي ده چې اوبه يې د حيوان او يا نورو وسائلو په ذريعه ايستل كيږي چې دې ډول كوهي ته الناضح وايي ، د ځنو فقهاؤ په نزد د الناضح كوهي حريم ٦٠ گزه دى.

بل قول دا دى چې د كوهي حريم د ضرورت په بنا دى:

**د ويالي حريم :** د ويالې حريم د امام ابو يوسف په نزد د ويالې د عرض د نيمې حصې برابر دواړو خواوو ته او د امام محمد په نزد د ويالې د عرض برابر دواړو خواوو ته.

**د ونې حريم :** د ونې حريم ځلورو طرفونو ته پنځه گزه دى په دليل د دغه حديث شريف :«جعل نبى صلى الله عليه وسلم حريم الشجرة خمسة اذرع» (ابوداود).

**د جاري چينې حريم :** د جاري چينې يا كاريز حريم ۵۰۰ گزه دی ، يعنې د ۵۰۰ گزه څخه كمه فاصله كې څوک د بل كاريز او چنې د كندلو حق نه لري.

په دليل د دغه حديث : و حريم العين خمس مئة ذراع من كل ناحية.

**د كاريز حريم :** د كاريز حريم په هغه برخه كې چې تر ځمكه لاندې يې جرۍ او لشتی تير شوی وي په قدر د ضرورت حريم لري داسې چې په صحي توگه اوبه پكې تېرې شي او څنډې يې ړنگې نشي.

**د كور حريم : د دفع فاضيلابو** ، د واورې غورځولو ، عمومي دروازه او د تيرېدلو په اندازه چې څومره ځای ضرور وي د كور حريم بلل كيږي.

(كتاب الخراج ابو يوسف - المعاملات المالية المعاصرة ، وهبة زحيلي ص ۱۱۵).

**د ارتفاق حق**

ارتفاق په لغت كې له يوه شي څخه گټه پورته كولو يا تكيه كولو ته وايي او په اصطلاح كې د يوه غير منقول (كور ، كوهي ، ځمكه او باغ) شی د بل غير منقول شي حق ثابتول چې دوهم يې د بل چا ملكيت وي. لكه : د بل په ملكيت كې لاره ، د بل په ځمكه كې د اوبو راوستلو لاره او نور.

يادونه : ملكيت په دوه ډوله دی : يو كامل ملكيت دی لكه د يو شي اصل او منفعت دواړو ملكيت او بل نيمگړی ملكيت لكه د يو شي يوازې د منفعت ملكيت.

يا په بل ډول لكه څنگه چې موسوعة الفقه الاسلامي ليكي :

ملكيتونه په دوه ډوله دي : عام ملكيتونه لكه : مشترک كوهی ، وياله ، لاره او نور چې مشخص د يو كس حق نه دی بلكي په هغه كې د سيمې د ټولو خلكو ارتفاعي حق شته.

دوهم خاص ملکیتونه دي چې هغه یوازې یو کس ته ثابت وي په هغه کې د چا ارتفاعي حق نشته مگر د مالک په اجازه.

**د ارتفاقي حقوقو ډولونه :**

د حنفي علماؤ په نزد ارتفاقي حقوق شپږ ډولونه لري چې په لاندې ډول دي :

١- د اوبو حق

٢- د لارې حق

٣- د اضافه اوبو تېرولو حق

٤- د لوړوالي حق

٥- د گاندیتوب حق

٦- د اوبو تیرولو مجرا یا لښتي حق

**١- د اوبو حق :**

د اوبو د حق څخه مقصد د اوبو نوبت او په هغه کې برخه ده

اوبه د ملکیت په لحاظ په درى ډوله دي :

اول : عامې اوبه لکه: بحرونه، سیندونه او نور دا د هیڅ چا ملک نشي کیدای په دلیل د دغه حدیث شریف : المسلمون شرکاء في ثلاث : في الماء و الکلأ و النار (رواه أبوداود او احمد).

یعنې : مسلمانان په دریو شیان کې شریک دي : په اوبو کې په خپل سر شنه شویو شیانو(واښه) او په اور کې.

دوهم : هغه اوبه چې یو کس په ظرف او ذخیره کې ځای پر ځای کړې وي نو دغه اوبه د ده ملک دی د دغه اوبو خرڅول جایز دي په دلیل د دغه حدیث شریف :«لأَنْ يَأْخُذَ أَحَدُكُمْ حَبْلَهُ فَيَحْتَطِبَ عَلَى ظَهْرِهِ، خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْتِيَ رَجُلاً فَيَسْأَلَهُ، أَعْطَاهُ أَوْ مَنَعَهُ». (بخاری:١۴٧٠)

ژباړه : که څوک د تاسې څخه طناب واخلي هيزوم (لرگي) جمع کړي او هغه خرڅ کړي او ځانته نفقه ورباندې برابر کړي دا کار د هغه د پار تر دې غوره دی چې خلکو ته د سوال لاس وړاندې کړي او هغه هم معلوم نه وي چې څه ورکړي او که نه.

د غره خپل سره شنې شوي بوټې د چا ملک نه دی مگر که څوک هغه جمع کړي او خرڅ يې کړي جايز دی همدارنگه د زخيره شويو اوبو خرڅول هم جايز دي.

دريم : د کوهي اوبه او همدانگه د چا په ځمکه کې د باران جمع شوې اوبه ملک بلل کيږي مگر د ضرورت څخه علاوه د چا د منع کولو حق نه لري.

په دليل د دغه حديث شريف : «لا تَمْنَعُوا فَضْلَ الْمَاءِ ». (البخاری:۲۳۵۴)

يعنې : د اضافي اوبو څخه څوک مه منع کوئ.(مختصر فقه المعاملات صفه ۷).

د اوبو د نوبت خرڅول د جمهورو فقهاؤ په نزد جواز نه لري مگر د د واترپمپ په ذريعه ايستل شويو اوبو خرڅول څه حکم لري ددې مسئلې تفصيل په کرهنه کې تير شو هلته دې وکتل شي.

**۲- د تېرېدو يا لارې حق :**

له دې څخه مقصد دا دی چې يو کس خپلې ځمکې ته د بل چا په ځمکه کې ورتربېږي هغه که عامه لار وي يا د ځانگړي شخص ملکيت وي.

کچېرې عامه لار وي نو هر څوک ورڅخه استفاده کولای شي په شرط ددې چې ضرر نه وي او که خاصه لار وي بيا يوازې هغه کس استفاده ورڅخه کولای شي چې ملک يې وي دغسې لارې ته دروازه او کړکۍ ايستلی شي بل څوک د هغه د مالک په اجازه استفاده ورڅخه کولای شي.

**۳- د اضافي اوبو تېرولو حق :**

اضافه اوبه د ضرورت څخه علاوه یا د سیلاب له اوبو څخه عبارت دي چې دا اوبه د چا ملکیت نه دی کچېرې د ګاونډې ځمکه دغه ډول اوبو ته ضرورت پیدا کړي نو څښتن ته رواه نه ده چې د ضرر څخه پرته خپل ګانډی د دغو اوبو تېرولو څخه منع کړي.

**۴- د لوړوالي حق :**

دا عبارت له هغه حق څخه دی چې د لاندې پوړ یا منزل د یو کس وي او پورته منزل د بل کس وي د پورته منزل څښتن د لاندې په منزل کې حق لري چې دغه حق په نړولو او ورانولو سره له مینځه نه ځي.

**یوه ضروري مسئله :**

که یو تعمیر دومره جګ شي چې له ښیښو څخه د بل سرای مابین معلومیږي؟

سوال : یو تعمیر که د بل تعمیر څخه دومره جګ شي چه له ښیښو څخه یې د بل سرای مابین معلومیږي دا ضرر فاحش ده او که نه؟

جواب : که د چا له کوره د بل همسایه د ښځو د کیناستو ځای معلومیږي نو دغه ضرر فاحش ده او دغه سړی مجبور دی چه دغه ضرر دفعه کړي که په مابین کي لاري وي او که نه وي او که ضرر مخکینی وي او که نه وي.

او ضرر فاحش هغه ته وایي چه د اصل منفعت د بناء څخه مانع وي مثلا د سکونت څخه مانع وي او یا کور ورانیږي یایې بناء سستیږي.

یدفع الضرر الفاحش باي وجه کان(الماده ۱۲۰۰)

و الضرر الفاحش کل ما یمنع المنفعة الاصلیة المقصود من البناء کالسکنی او یضر با لبناء اي یجلب له وهنا و یکون سبب انهدامه (الماده ۱۱۹۹)

رويئة المحل الذي هو مقر النساء كصحن الدار والمطبخ والبير يعد الضرر الفاحش فاذا احدث رجل في داره شباكا اوبناء مجددة اوجعل له شباكا مطلاعلى المحل الذي هومقر نساء جاره الملاصق اوالفا صل بينهما طريق فانه يومر برفع الضرر ويصير ذلك الرجل مجبور الدفع هذا الضرر بصورة منع وقوع النظر اما ببناء الحائط اووضع طبلة لكن لايجبر على سد الشباك بالكلية كما اذا عمل ساترامن اغصان التى يرى من بينهما مقر نساء جاره فانه يومر بسد محلات النظر ولايجبر على هدمه وبناء حائط(الماده ١٢٠٢)

الفتوى على ان الكوة حيث كانت للنظر والموضع موضع النساء تسد بلافرق بين الطريق الفاصل وغيره كما في المضمرات وغيره (تنقيح الحامديه)

و لو فتح الكوة الى جانب الجار والجار عاجز بحيث تنكشف له نساء جاره لايقدر جاره على الستر يمنع اليوم وهذااختيار المتاخرين في هذه الزمان تغليبا للفساد في هذالزمان اكبرشاهي (جامع الفوائد ٣٥٥ص).

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**٥- د گاونډيتوب حق :**

د دغه حق څخه مقصد دا دی چې د چا ځمکې یا کورونو سره نښتې وي هر يو د هغه بل په ملکيت کې د ارتفاق حق لري په دې شرط چې هغه بل ته ضرر نه وي.

**٦- د اوبو تېرولو مجرى (لښتي) حق :**

دا عبارت له هغو سالمو اوبو څخه دی چې د ځمکې څښتن د بل په ځمکه کې له ويالې ، كاريز و غيره څخه خپلې ځمکې ته راولي دغه د اوبو لار يا لښتى د دغه کس ملکيت نشي کيدای مگر د اوبو تېرولو څخه يې په هيڅ صورت نشي منع کولای ځکه حضرت عمرفاروق رضى الله عنه هغه کس ته

چې ګاونډی یې د اوبو تېرولو څخه منع کړی وو وویل : قسم پر الله چې دا اوبه به تیریږي که څه هم چې ستا په خیټه تېریږي.

**د بل چا په ځمکه کې د ونو کښېنول**

څوک حق نه لري چې د بل په ملک کې پخپل سر تصرف وکړي ، یعنې د ځمکې اجاره دار او یا د کور کاریه نشین که د ونو کیښنول غواړي د مالک په اجازې به وي.

او که چیرې اجاره دار یا کرایه نشین ونې کښنوې نو د بل په ځمکه کې د ونو په کښنولو سره د ونو ملکیت او یا په هغه کې د څه حصې ملکیت نه ثابتیږي وني هم د ځمکې د خاوند ملک دی.

او ده ته جایزه نه ده چې د مالک د اجازې پرته د هغه له میوو او حاصل څخه استفاده وکړي.

قال التمرتاشي الحنفي في تنوير الأبصار: دفع أرضا بيضاء مدة معلومة ليغرس وتكون الأرض والشجر بينهما (لا تصح).

وجاء في الموسوعة الفقهية الكويتية: وأما المغارسة على وجه الشركة بينهما في الأرض والأشجار معا فلا تجوز عند الحنفية والحنابلة، وذلك لاشتراط الشركة فيما هو موجود قبل الشركة، لأنه نظير من استأجر صباغا يصبغ ثوبه بصبغ نفسه على أن يكون نصف المصبوغ للصباغ، فكان كقفيز الطحان، كما علله الحنفية، وإذا فسدت المغارسة بهذه الصورة، فالثمر والغرس لرب الأرض تبعا لأرضه، لأنها هي الأصل وللآخر قيمة غرسه يوم الغرس، وأجر مثل عمله، كما صرح به الحنفية، وقال المالكية: تجوز المغارسة بشركة جزء معلوم في الأرض والشجر.

دلیل :

قوله تعالى : وَلاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ..(البقره ۱۸۸)

يعنې : په خپلو منځو کې په ناحق يو د بل مال مه خورئ

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : (كل المسلم على المسلم حرام دمه وماله وعرضه). (أخرجه مسلم).

يعنې :د هر مسلمان وينه ، مال ، آبرو او عزت بل مسلمان ته حرام دي ( يو مسلمان به د بل مسلمان په وينه ، مال او عزت تجاوز نه کوي)

او فرمايي : (لا يحل مال امرئ مسلم إلا عن طيب نفس). (أخرجه أحمد والدارقطني والبيهقي وهو حديث صحيح).

يعنې : د مسلمان مال حرام دی مگر دا چې هغه اجازه وکړي.

**د لوند فصل خرڅول او اخيستل :**

مسئله : خرڅول او اخستل د لندې رشقې يا شفتلې لکه ځرنگه چه اوس مروجه ده په قياس کي نه ده صحي ځکه دا بيع د معدوم ده او بيع د معدوم جواز نه لري خو دا بيع استحسانا صحي ده له جهته د تعامل د خلكو لكن د اصلاح طريقه ئي دا ده :

چه د رشقي اصول هم ورسره واخلي يعني بيخونه ئي واخلي تر څو نور لوونه هم د مشتري په ملك كي پيدا شي او يا دې په بعضو روپو موجوده رشقه واخلي او په باقي مانده روپو تر معلومه وخت چه د رشقي لوونه راځي او څه وخت ختميږي د دغي پټي ځمكه ور سره په اجاره ونيسي تر څو عقد صحي شي.

ما تتلاحق افراده يعني ان مالايبرز دفعة واحدة بل شيئا بعد شي كا الفواكه والازهار والورق والبقول اذا كان برزبعضا يصح بيع ماسيبرزمع مابرزتبعا له بصفقة واحدة سواء كان البارز اقل اواكثر كمايدل عليه اطلاق المتن وقدجوز هذالبيع استحسانا على خلاف القياس لتعامل الناس فيه (مجلة الاحكام ماده ٢٠٧

**میوه جات به د پوختن وروسته پلورل کیږي :**

میوجات باید د بدو صلاح (بخیدو) څخه وروسته سودا کړ شي.

(صَلاحُهُ) نه مطلب دا دی چې کله د باغ میوه ورسیږي یعنې پوره پخه شي او د خوراک د پاره اماده شي ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغو میوجاتو د خرڅولو نه منع فرمایلی ده چې پخې شوی نه وي.

عَنْ عَبْدِاللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِي اللَّه عَنْهمَا: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ: «لا تَبِيعُوا الثَّمَرَ حَتَّى يَبْدُوَ صَلاحُهُ» (البخاري ٢١٨٣)

د عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : تر څو چې میوجات نه وي پاخه شوي هغه مه خرڅوئ.

عَنْ جَابِرٍ رضی الله عنه قَالَ:«نَهَى النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم عَنْ بَيْعِ الثَّمَرِ حَتَّى يَطِيبَ» (بخاری ٢١٨٩).

جابر رضی الله عنه وایي : رسول الله صلی الله علیه وسلم د میوجاتو د خرڅولو نه تر هغه پورې څو پخې شوی نه وي منع فرمایلې ده.

ددې حمکت دا دی چې د پخیدو مخکې د میوې د رژیدلو او نورو آفاتو ویره وي چې بیا وروسته د اختلاف سبب ګرځي.

**مسئله:** که ځمکه چا په اجاره نیولې وي نو د کرهنې زکات (عشر) به په موجر وي او که مستاجر ؟

یو قول خو دا دی چې عشر په دواړو لازم دی هم په ځمکې واله او هم په بزګر هر یو به د خپلو حصو مطابق عشر ورکوي (فتاوی دارالعلوم دیوبند ج ٨ ص ١١٦)

دوهم قول دا دی چې دا مسئله د خلکو په عرف او رواج پورې اړه لري هر کوم چې زیات حاصل واخیستت عشر په هغه باندې لازم دی (امداد الفتاوی – فی التنویر٢ ٣٣۴)

دریم قول دا دی چې : په دې زمانه کې عشر په مستاجر لازم دی ځکه موجر چې کوم اجرت اخلي ډير کم دی.

و في الدر:

«و العشر على الموجركخراج موظف و قالا على المستأجر كمستعير مسلم، و فى الحارى: و بقولهما نأخذ».

و فى الرد:

«(قوله: و بقولهما نأخذ....) قلْتُ: لكن في زماننا عامة الأوقاف من القرى والمزارع لرضا المُسْتأجر بتحمل غراماتها ومؤنها يستأجرها بدون أجر المثل بحيث لا تفي الأجرة، ولا أضعافها بالعشر أو خراج المقاسمة، فلا ينبغي العدول عن الإفتاء بقولهما في ذلك لأنَّهم في زماننا يقدرون أجرة المثل بناء على أنَّ الإجْرةَ سالمة لجهة الوقف ولا شيء عليه من عشر وغيره، أمَّا لو اعتبر دفع العشر من جهة الوَقْف وأن المستأجر ليس عليه سوى الأُجْرة فإنَّ أُجْرةَ المثل تزيد أضعافاً كثيرة كما لا يخفى، فإن أمكن أخذ الأجرة كاملة يفتى بقول الإمام، وإلاَّ فبقولهما لما يلزم عليه من الضَّرر الواضح الذي لا يقول به أحد، والله تعالى أعلم.».(رد المحتار:٢/٦٠)

و فى الفقه الاسلامى للزحيلى، بعد ذكر الاختلاف بين الامام وصاحبيه:

«فان كان ايجاب الزكاة على المستأجر

أنفع للفقراء وجبت عليه و به افتى المتأخرون».(الفقه الاسلامي و ادلته:٢/٨٢٠)

**مسئله :** كه د باغ ميوجات خرڅ كړ شي زكات پر چا باندې لازميږي ؟

كچيرې ميوجات پاخه وي وروسته له رسيدو هغه و پلوري په دې صورت كې عشر په خرڅونكي باندې لازم دى مگر كچيرې محصول رسيدلى نه وي نو بيا عشر په مشتري يا اخيستونكي باندې لازم دى.

و فی الدر المختار:

«ولو باع الزرع، ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتری و لو بعده فعلی البائع».

و فی الشامیة:

«ثم هذا اذا باع الزرع وحده و شمل ما اذا باعه و ترکه المشتری باذن البائع حتی ادری فعندهما عشره علی المشتری».(رد المحتار:٦٠/٢)

د حرمینو د عالم الشيخ ابن عثيمين رحمه الله نظر هم همدا دی :

اذا كان البيع قد حصل قبل وجوب الزكاة – وهو في الحبوب قبل اشتدادها – ، فالزكاة تجب على المشتري ، أما لو باع الحبوب بعد اشتدادها ، فالزكاة تجب على البائع ؛ لأنها تعلقت بذمته قبل البيع. والله سبحانه و اعلم

**د چرسو کرهنه څه حکم لري ؟**

چرس څکول د مذاهبو په اتفاق حرام دي ، د حرمت وجې او دلائل په لاندې ډول دي :

**اول د عقل زوال او نشه :** د اسلامې شريعت عمومي قاعده ده چې هر شی نشه ولري حرام دی په حکم د شرابو او خمرو کې شامل بلل کيږي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«كل مسكر خمر ، وكل مسكر حرام ...» ( رواه مسلم -٢٠٠٣).

ټول نشه کوونکي شراب دي ، او ټول نشه کوونکي حرام دي ،

عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ رضی الله عنه : أَنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ، فَسَأَلَهُ عَنْ أَشْرِبَةٍ تُصْنَعُ بِهَا، فَقَالَ: «وَمَا هِيَ»؟ قَالَ: الْبِتْعُ وَالْمِزْرُ، فَقَالَ: «كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ». (بخاری:۴۳۴۳)

ژباړه:له ابی موسی الأشعري رضی الله عنه نه روايت دی چې : رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه یمن ته ولیږلو ،هغه له رسول الله صلی الله علیه

وسلم نه د شرابو په باره کې چې هلته جوړيدل پوښتنه وکړه ، رسول الله پوښتنه وکړه : هغه له څه شي څخه جوړېږي ؟ ويې ويل : له وربشو او عسل. رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : هر نشه کوونکی شی حرام دی.

مطلب دا چې هر ډول مشروبات وي چې نشه ولري هغه که هر ډول ماده او يا هر ډول کيمياوي تعامل ولري حرام دي.

حافظ ابن حجر رحمه الله وايي : په استدلال د دغه حديث (کل مسکر حرام) هر شی چې نشه ولري ولو که شراب نه وي حرام دي او په دغه حرمت کې چرس او نور شامل دي.

قال الحافظ ابن حجر : « واستُدل بمطلق قوله :«كل مسكر حرام» على تحريم ما يسكر ولو لم يكن شرابا ، فيدخل في ذلك الحشيشة وغيرها» (فتح الباري - ۴۵/۱۰).

السياسة الشرعية ليکلي : همدارنگه چرس چې د بنگو يا چرسو له بوټې جوړېږي حرام دي ، او دا تر شرابو بد دي له جهته ددې چې د عقل او فکر خرابونکي دی ، خمر او شراب له دې جهته خبيث او بد دي چې دوښمنۍ او جگړې ته تحريک کونکی دي او دا ټول د الله جل جلا له د ذکر او لمونځ څخه لرې کوونکي دي.

وقال في (السياسة الشرعية (ص٩٢ ):و الحشيشة المصنوعة من ورق القِنَّب حرام أيضا ، وهي أخبث من الخمر من جهة أنها تفسد العقل والمزاج ، والخمر أخبث من جهة أنها تفضي إلى المخاصمة والمقاتلة ، وكلاهما يصد عن ذكر الله تعالى وعن الصلاة.

**دوهم جسمي او مالي ضرر :** په چرسو کې عظيم اضرار موجود دي او ضرر رسول ځان او بل ته حرام دی:

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : «لا ضرر ولا ضرار»( رواه أحمد وابن ماجه ).

چرس څکول روغتیا ته زیات زیان اړوي ، عقل او فکر خرابوي ، د هاضمي جهاز کمزوري او نور د داسې امراضو سبب ګرځي چې د انسان عزت او کرامت ته زیان رسوي او همدارنګه د مالي زیان سبب ګرځي د چرسو د زیان په اړه دوکتور وهبة الزحیلی مکمل مطلب لیکلی ده د نور تفصیل د پاره (الفقه الإسلامي وأدلته) للدكتور وهبة الزحيلي (۵۵۱۱/۷) وګورئ.

**د چرسو بیع ،تجارت او زراعت ټول حرام دي :**

د مذاهبو په اتفاق د چرسو بیع ، تجارت او د هغه هر ډول معاملات او همدارنګه د هغه کرل او زراعت حرام دی ، د تحریم په اړه یې زیات دلائل ذکر شوی دي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : (إن اللَّه حرم بيع الخمر، والميتة، والخنزير، والأصنام) ، یعنې : الله جل جلا له حرام کړي ده بیع د شرابو ، مردارې ، خنزیر او بتانو). حشيش یا چرس نشه کوونکې ماده ده حکم یې د شرابو دی.

د چرسو حرمت پورته ذکر شو چې د انسان د جسم د پاره مضر او ټولنه کې د فسق او فجورو د خپراوې سبب ګرځي نو په دې بنا د اسلامې شریعت حکم دی چې د ګناه په کار کې به یو له بله مرسته او مدد نه کوئ {وتعاونوا على البر والتقوى، ولا تعاونوا على الإثم والعدوان}.

او بل دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«إن الله إذا حرم شيئا حرم ثمنه»

یعنې: یقیناً الله تعالی چې د کوم شی د حرمت حکم کړی وي د هغې بیع او تجارت هم یې حرام کړی دی.

فقه على المذاهب الاربعه لیکي :

**حكم الاتجار بالمخدرات**

لقد اشتغل بعض المسلمين بتجارة المخدرات من الخمور، والحشيش والأفيون، والكوكايين، لما تدر عليهم تجارة هذه الأشياء من الربح الطائل، من أسهل الطرق ويصلون إلى الغنى الفاحش في أقرب وقت. مع أن الشريعة الإسلامية تحرم هذه الأرباح، وتعتبر أن عيشة أصحابها من الحرام.

**حرمة زراعة الحشيش**

اتفق الأئمة على تحريم زراعة الحشيش، والخشخاش، لإستخراج المادة المخدرة منها لتعاطيها أو الإتجار فيها، وحرمة زراعتهما من وجوه (فقه على المذاهب الاربعة).

**د كوكونارو (ترياكو) كرهنه څه حكم لري ؟**

د ترياكو څكول ، تجارت او زراعت حرام دی:

ترياک چې په عربي کې ورته الأفيون يا المخدرات ويل کيږي چې المخدارت د مخدر جمع ده او مخدر بې حسه کوونکي، سست او ضعيفه کوونکې مادې ته ويل کيږي کوم چې دترياکو يا خاشخاشو له بوټي توليديږي.

د ترياکو څکولو او خوړلو ټول انواع د مذاهبو د معاصرو فقهاؤ په اتفاق حرام دي د حرمت دلائل يې په لاندې ډول دي :

اول :

احمد په خپل مسند کې او أبو داود پخپل مسند په صحيح سند سره له أم سلمة رضی الله عنها نه روايت نقل کړی دی چې وايي :

« نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن كل مسكر ومفتر» (احمد و ابوداؤد).

يعني : رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټو لو نشه کوونکو او بې حسه او ضعيف کوونکو شيانو څخه منع فرمايې ده.

**مكسر** : هر هغه ماده چې نشه کوونکي وي.

**مفتر** : هغه ماده چې بې حسه ، سست او ضعيفه کوونکي وي.

علماء کرامو د مفتر مادي څخه په خاص ډول چرس او تر یاک استنباط کړی دي.

دوهم : تریاک خبیث او بې حده مضر دي چې په اوس عصر کې د هغه ضرر له هیچا څخه هم پټ نه دی. الله جل جلا له فرمايي :[وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ] (الاعراف ١٥٧).

الطیبات (پاک څیزونه) ټول هغه شیان کوم چې په هغه کې د انسان د بدن د پاره ګټه وي ، خوندور وي ، بدن ته مضر نه وي ، عقل ته مضر نه وي ، او هغه شیان چې د انسان بدن ته زیان رسوي ګټور نه وي نا پاک او خبائث بلل کیږي.

او بل دا چې د اسلام عمومي قاعده ده چې (لا ضرر ولا ضرار) په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول حرام دي.

علماء اللجنة الدائمة للبحوث العلمية والإفتاء ليكي :

المخدرات من الخبائث، وقد حرم الله على عباده جميع الخبائث، ولم يحل لهم إلا الطيبات كما في قوله سبحانه في سورة المائدة: سورة المائدة الآية ٤ {يَسْأَلُونَكَ مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ} وقوله في سورة الأعراف في وصف نبينا محمد صلى الله عليه وسلم سورة الأعراف الآية ١٥٧ {وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ} ولما روى أبو داود سنن أبو داود الأشربة (٣٦٨٦)، مسند أحمد بن حنبل (٣٠٩/٦). عن أم سلمة رضي الله عنها، أن النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن كل مسكر ومفتر، ومعلوم أن المخدرات من المفترات، ولما في المخدرات من الأضرار العظيمة وقد قال- عليه الصلاة والسلام-: سنن ابن ماجه الأحكام (٢٣٤٠)، مسند أحمد بن

حنبل (٣٢٧/٥). لا ضرر ولا ضرار. وبالله التوفيق، وصلى الله على نبينا محمد وآله وصحبه وسلم. (اللجنة الدائمة للبحوث العلمية والإفتاء)

فقه على المذاهب الاربعه ليكي :

وقد اجتمعت كلمة العلماء على تحريم هذه المشروبات وغيرها من المخدرات المحدثة مثل الحشيش والأفيون وغيرهما.

هذه المواد حرام، لأنها تؤدي إلى مضار جسيمة ومفاسد كثيرة، فهي تفسد العقل، وتفتك بالبدن، إلى غير ذلك من المضار والمفاسد الخطيرة. فلا يمكن أن تأذن الشريعة بتعاطيها مع تحريمها لما هو أقل منها مفسدة، وأخف ضرراً، ولذلك قَالَ بعض علماء الحنفية: (إن من قَالَ بحل الحشيش زنديق مبتدع). وهذا منه دلالة على ظهور حرمتها.

وما قاله شيخ الإسلام ابن تيمية، وتلميذه ابن القيم، وغيرهما من العلماء هو الحق الذي يسوق إليه الدليل وتطمئن به النفس، وإذ قد تبين أن النصوص من الكتاب والسنة تتناول الحشيش، فهي تتناول أيضاً الأفيون الذي بين العلماء أنه أكثر ضرراً، ويترتب عليه من المفاسد، ما يزيد على مفاسد الحشيش (فقه على المذاهب الاربعه)

**د ترياکو تجارت او رزاعت حرام دی :**

د ترياکو حرمت پورته ذکر شو چې د انسان د جسم د پاره مضر او په ټولنه کې د فسق او فجورو د خپراوې سبب ګرځي او همدارنګه د انسان اندامونه بې حسه ، سست او ضعیف ګرځوي چې له عبادت ، کار او فعالیت څخه یې غورځوي نو په دې بنا د اسلامې شریعت حکم دی چې د ګناه په کار کې به یو له بله مرسته او مدد نه کوئ ، لقوله سبحانه وتعالى :{وتعاونوا على البر والتقوى، ولا تعاونوا على الإثم والعدوان}.

او بل دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: (إن الله إذا حرم شيئا حرم ثمنه)

یقیناً الله جل جلا له چې د کوم شي د حرمت حکم کړی وي د هغې بیع او تجارت هم حرام دی.

فقه على المذاهب الاربعه د چرسو او تریاکو د تجارت او زراعت د حرمت حکم په پوره تفصیل سره بیان کړي دی

**حرمة زراعة الحشيش**

اتفق الأئمة على تحريم زراعة الحشيش، والخشخاش، لإستخراج المادة المخدرة منها لتعاطيها أو الإتجار فيها، وحرمة زراعتهما من وجوه:

أولاً: ماروي عن ابن عباس رضي اللَّه عنهما أن رَسُول اللَّهِ صَلى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ قَالَ: (إن من حس العنب أيام القطاف حتى يبيعه ممن يتخذه خمراً فقد تقحم النار) فهذا دليل على حرمة زراعتهما بطريق دلالة النص.

ثانياً: إن زراعتها لهذا الغرض رضاً من الزارع تعاطي الناس لها، وإتجارهم فيها والرضا بالمعصية معصية، وذلك لأن إنكار امنكر بالقلب، الذي هو عبارة عن كراهية القلب وبغضه المنكر، فرض على كل مسلم في كل حال.

بل ورد في صحيح مسلم عن رَسُول اللَّهِ صَلى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ: (أن من لم ينكر المنكر بقلبه – بالمعنى الذي بينا – ليس عنده من الإيمان حبة خردل) وفيه مخالفة لولي الأمر الذي نهى عنها بالقوانبن التي وضعت لذلك، وفيه مخالفة لولي الامر الذي نها عنها بالقوانين التي وضعت لذلك، لوجوب طاعة ولي الامر فيما ليس لمعصية لله ولرسوله بإجماع المسلمين.

**د اسلام دښمنان څه غواړي :**

إن أعداء الإسلام يروجون الحشيش وغيره من المخدرات بقصد إضعاف شباب الأمة الإسلامية وضياع مالها، ورجولتها، وقتل شهامتها، وإفساد عقول رجالها، حتى تستمر في التأخر عن مصاف الأمم المتقدمة، ويتغلب عليها الأجانب، ويقهرها الأعداء، ويستعمرون بلادهم. كما تفعل إسرائيل من ترويج الحشيش والأفيون بين البلاد العربية بقصد هلاكها (فقه المذاهب الاربعه).

يعنې: د چرسو،ترياكو او نورو مخدراتو د ترويج څخه د اسلام د دوښمنانو مقصد دا دی تر څو د اسلامي امت ځوانان ضعيف کړي مالونه يې ضايع کړي ، شهامت او غيرت يې ختم کړي ،عقلونه يې خراب او فاسد کړي ، د يرغل او استعمار د پاره اماده شي او خپلو دوښمنانو ته ماتې ور نشي کړای او ښارونه يې تر خپل استعمار لاندې راولي ، لکه څنګه چې اسرائيلو په عربي هيوادونو کې چرس او ترياک رواج کړل تر څو هغوی ور باندې هلاک کړي.

دوهم مقصد يې دا دی تر څو دغه ناوړه عمل د اسلام او مسلمانانو پر وړاندې د يوې تبليغاتي وسيلې په توګه وکاروي ، چې وګورئ ددي کار رواجونکي ، توليدونکی مسلمانان دي او دا په اسلامې هيوادونو کې کرل کيږي.

که له ترياکو لاس واخلو نو له لوږې به مړه شو ؟

شيطان هر وخت سړی په لوږه او فقر ويروي ،لقوله تعالى : الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ (٢٦٨ البقره).

شيطان ځکه دا ويره دهغه په زړه کې وراچوي چه په کوم حرام کار او شغل اخته وي هغې ته دوام ورکړي.

مگر چا چې د الله جل جلا له  د ويرې څخه کوم حرام کسب او کار پرېښود الله تعالی به د هغه اړتياوې او مشکلات حل او ده ته به تر هغه ښه او غوره رزق ورکړي.

لقوله سبحانه وتعالی :[وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ، وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لاَ يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ] (الطلاق ٢-٣).

ژباړه: او څوک چې د الله څخه وويرېږي (الله) ور ته (د ستونزو څخه) د وتلو لار جوړوي ، او هغه ته د داسې لارې نه رزق ورکوي چې (په خپله) گمان نه کوي، او څوک چې پر الله پاک توکل وکړي ده د پاره همدا (الله) کافي دی.

د هيواد په محدود شمير سيمو کې ترياک کرل کيږي او د هيواد زيات مناطق داسې دي چې هلته يو بوټی هم نه کرل کيږي نو د دغه سيمو خلک له لوږې مړه شول ؟

او که مو د ترياکو څخه مقصد ډيرې پيسې په لاس راوړل او د عيش ژوند دی ، داسې مه کوئ چې خپله د عيش او آرام ژوند خوښوئ او د بل ژوند تبا کوئ.

بس له الله تعالی څخه وويريږئ چې هغه ته زمونږ ټولو ورتگ دی.

زمونږ خو دغه بيان ديني مسئوليت وو ، منل او عمل ستاسو مسئوليت دی

**موات**

موات مړ شوي او يا له کاره لوېدلي ځيز ته وايي او په اصطلاح کې هغو ځمکو ته وايي چې شاړې وي يعنې آبادې شوي نه وي او يا يې مالک معلوم نه وي.

**د موات کيدو شرطونه :**

۱- شاړه ځمکه به د آبادی څخه دری څلور فرلانکه یا ۶۰۳-۸۰۴ متره لرې وي ځکه چې آبادی ته نږدې ځمکه به د نورو ضروریاتو د پاره لکه د اوسیدو ځای جوړولو ، د څناورو د څرېدو لپاره وي.

۲- دوهم شرط دا دی چې د هغه مالک نه وي یا یې مالک وي مگر هغه دری کاله شاړه پرې ایښې وي نو اسلامي حکومت به هغه حجر کړي او بل چا ته به یې ورکړي. رسول الله صلی الله علیه سلم فرمایي : لیس للمحتجر بعد ثلاث سنین حق (د دری کاله شاړه پرېښودلو واله په دې ځمکه کې هیڅ حق نشه).

۳- دریم شرط دا دی چې د شاړې ځمکې په آبادولو کې د اسلامي حکومت اجازت شرط دی ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : لا حمی الا لله و رسوله (د شاړې ځمکې خپلولو حق صرف الله او د هغه رسول (اسلامي حکومت) لره دی).

د شاړې ځمکې په آبادلو کې د امام یا اسلامي حکومت د اجازت په باره کې د فقهاؤ تر مینځ اختلاف نظر دی :

د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد هغه بې کاره ، شاړې ځمکې بیابانونه او غرونه چې له ابادۍ څخه دری څلور فرلانکه چې یو فرلانک ۲۰۱ متره دی دری یا څلور فرلانکه ۶۰۳-۸۰۴ متره لرې وي او ځنو فقهاؤ په نزد د لریوالی اندازه په عرف پورې اړه لري ، د مسلمانانو د امام د اجازت بغیر یې څوک مالک کیدای نشي یعنې د اسلامي حکومت د اجازې بغیر په هغه کې تصرف نشي کولای.

د امام صاحب دلیل دا حدیث دی : لا حمی الا الله و رسوله ، یعنې د څه بیکاره ځمکې خپلول حق صرف الله او رسول الله (اسلامي حکومت) لره دی.

مګر د صاحبينو امام يوسف او امام محمد قول دا دی چې د غيرو آبادو ځمکو د آبادولو په صورت کې د حکومت اجازې ته ضرورت نشته ، دهغوی دليل دا حديث شريف دی : من احيا ارضاً ميتة فهی له (ترمذي) .

يعنې : چا چې د بيابان شاړه ځمکه آباده کړه نو هغه د ده ملکيت شو.

جاء فی المختار للفتاوي الحنفي :

ما لا ينتفع به من الأراضي، وليس ملك مسلم ولا ذمي، وهو بعيد من العمران، إذا وقف إنسان بطرف العمران ونادى بأعلى صوته لا يسمع، من أحياه بإذن الإمام ملكه مسلماً كان أو ذمياً، ولا يجوز إحياء ما قرب من العامر، ومن حجر أرضاً ثلاث سنين فلم يزرعها دفعها الإمام إلى غيره.(مختار للفتاوي).

جاء فی موسوعة الفقهية :

فقهاء المذاهب مختلفون في أرض الموات هل هي مباحة فيملك كلّ من يحقّ له الإحياء أن يحييها بلا إذن من الإمام، أم هي ملك للمسلمين فيحتاج إحياؤها إلى إذن؟ ذهب الشّافعيّة والحنابلة وأبو يوسف ومحمّد إلى أنّ الإحياء لا يشترط فيه إذن الإمام، فمن أحيا أرضاً مواتاً بلا إذن من الإمام ملكها. وذهب الإمام أبو حنيفة إلى أنّه يشترط إذن الإمام، سواء أكانت الأرض الموات قريبةً من العمران أم بعيدةً. واشترط المالكيّة إذن الإمام في القريب قولاً واحداً. ولهم في البعيد طريقان: طريق اللّخميّ وابن رشد أنّه لا يفتقر لإذن الإمام، والطّريق الآخر أنّه يحتاج للإذن. والمفهوم من نصوص المالكيّة أنّ العبرة بما يحتاجه النّاس وما لا يحتاجونه، فما احتاجوه فلا بدّ فيه من الإذن، وما لا فلا. احتجّ الجمهور بعموم قوله صلى الله عليه وسلم: «من أحيا أرضاً فهي له»؛ ولأنّ هذه عين مباحة فلا يفتقر ملكها إلى إذن الإمام كأخذ الحشيش، والحطب. واحتجّ أبو حنيفة بقوله صلى الله عليه وسلم: «ليس للمرء إلاّ ما طابت به نفس إمامه»، وبأنّ هذه الأراضي كانت في أيدي الكفرة ثمّ صارت في

أيدي المسلمين، فصارت فيئاً، ولا يختصّ بالفيء أحد دون رأي الإمام، كالغنائم؛ ولأنّ إذن الإمام يقطع المشاحّة. والخلاف بين الإمام وصاحبيه في حكم استئذان الإمام في تركه من المحيي المسلم جهلاً. أمّا إن تركه متعمّداً تهاوناً بالإمام، كان له أن يستردّ الأرض منه زجراً له. وكلّ هذا في المحيي المسلم في بلاد الإسلام. و الله تعالى اعلم

## آتم فصل
## حَجر

حَجر په لغت کې تنګولو او منع کولو ته وايي او د شريعت په اصطلاح کې يو کس پخپل ملکيت کې د تصرف کولو څخه منع کولو ته حَجر وايي.

د اسلامي شريعت حکم دی چې هغه کسان چې په معامله ، کټه او توان او د مال په صحي مصرفولو نه پوهيږي نو تاسې هغوی پخپل ملکيت له تصرف کولو څخه تر هغه پورې منع کوئ څو په دوی کې د معاملې کولو صلاحيت پيدا شي لکه : نابالغ ماشوم ، ليونی او بې حاله کس او هغه کس چې خپل مال بې ځايه په عياشۍ و غيره کې استعمالوي د خپل مال د تصرف او مصرف څخه منع کړئ چې همدې منع کولو ته په اسلامي شريعت کې حَجر وايي ، داسې چې د هغه ولي او سرپرست کچېرې د هغه ولي او سرپرست نه وي ، اسلامي حکومت که اسلامي حکومت نه وي مسلمانان به د هغوی مال له ځانه سره ساتي او هغوی به د خپل مال د تصرف څخه منع کوي ځکه چې د تصرف صلاحيت نه لري د مال د بربادۍ ويره وي او کله چې ماشوم بالغ شي او ليونی جوړ شي نو هغوی ته به خپل مال سپاري.

لقوله سبحانه وتعالی :[وَلاَ تُؤْتُواْ السُّفَهَاء أَمْوَالَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللّهُ لَكُمْ قِيَاماً وَارْزُقُوهُمْ فِيهَا وَاكْسُوهُمْ وَقُولُواْ لَهُمْ قَوْلاً مَّعْرُوفًا، وَابْتَلُواْ الْيَتَامَى حَتَّىَ إِذَا بَلَغُواْ النِّكَاحَ فَإِنْ آنَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُواْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَلاَ تَأْكُلُوهَا إِسْرَافًا وَبِدَارًا أَن يَكْبَرُواْ] (النسآء ۴-۵).

ژباړه : او ناپوهانو ته د هغوی مالونه مه سپارئ چې الله پاک ستاسو لپاره د سبالښت ذريعه ګرځولې ده ، خوراک او پوښاک ترې ورکوئ او خوږې او نرمې خبرې ورته وکړئ ، او يتيمان د بلوغ تر رسيدلو وازمايئ کله مو چې له هغوی څخه هوښيارتيا وليده نو بيا يې مالونه ور وسپارئ ، د هغوی مالونه په دواړو لاسونو په بيړه له دې ډاره مه خورئ چې يتيمان را لوی نه شي.

**د حَجر سببونه :**

د حجر کولو درې سببونه دي :

۱- داسې کس چې په معامله نه پوهیږي لکه : نا بالغ ماشوم او لیونی...

۲- داسې کس چې عاقل او بالغ وي مګر خپل مال بې ځایه مصرفوي یا د خپل حماقت له مخې هغه همیشه په معاملاتو کې نقصان کوي.

۳- مفلس پوروړی.

**د حَجر حق چا لره دی ؟**

۱- د نا بالغ ماشوم او لیونې د حجر یا پخپل مال کې د تصرف څخه منع کولو لومړی حق د هغه ولې او سرپرست ته دی کچېرې ولي او سریرست نه وي بیا د هغه حق اسلامي حکومت ته دی. ولي یا سرپرست به د هغه مال ساتي چې کله بلوغ ته ورسیږي یا لیونی عاقل شي هغه ته به خپل مال سپاري. ولي او سرپرست د هغه د ملیکت څخه د هغه نفقه او مصارف ادا کولای شي.

۲- سفیه (هغه کس چې خپل مال بې ځایه مصرفوي) د هغه پخپل مال کې د تصرف کولو څخه د منع کولو حق ولي او سرپرست ته نشته بلکي د منع کولو حق یې صرف اسلامي حکومت دی.

۳- د پوروړي د مال او جایداد حجر : که یو پوروړی داسې مفلس شوی وي چې د قرض د ادا کولو صلاحیت نه لري او دی پور غوښتونکی پریشانه کوي نو د پور غوښتونکي په غوښتنه دې د هغه جایداد ، د کور سامان او نور باندې دی حکومت قبضه وکړي او هغه دې د قرض ادا کولو ته مجبور کړي که قرض نه ادا کوي د هغه جایداد او سامان به حکومت خرڅ کړي او د خلکو قرضونه ورباندې آدا کړي.

**شفعه**

د شفعه کلمه له شفع نه اخيستل شوې چې يو ځای کولو ته وايي او د فقهاؤ په اصطلاح کې شفعه عبارت ده د کور او ځمکې د تملک له حق نه د ګاونډيتوب د ضرر د لرې کولو پخاطر ، مثلاً که څوک خپل کور او ځمکه خرڅ کړي د هغه شريک او يا ګاونډي ته دا حق شته چې د هغه په دغه معامله نيوکه وکړي او پلورل شوی مال په هماغه بيع واخلي چې بل چا اخيستی وو د شريک يا ګاونډي دغه حق تثبيتولو ته شفعه وايی.

اسلامي شريعت شفعه ددې لپاره جايز عمل ګرځولی دی څو د ضرر ، خصومت او دوښمنۍ مخنيوی وشي ځکه کيدای شي شريک يا ګانډی خپل ملکيت په داسې بيګانه کس خرڅ کړي چې د هغه شريک او ګانډې ته په ضرر تمام شي نو د دغه ضرر د دفع پخاطر د شفعه حکم جايز شوی دی.

په حديث شريف کې راغلي دي :قضى رسول الله صلى الله عليه وسلم بالشفعة في كل شركة ما لم تقسم ربعة أو حائط لا يحل له أن يبيع حتى يؤذن شريكه فإن شاء أخذ وإن شاء ترك وإذا باع ولم يؤذنه فهو أحق به حتى يؤذنه (المسلم ١٦٠٨).

ژباړه : رسول الله صلى الله عليه وسلم په هر مشرک جايداد (لکه: کور، باغ او ځمکه) کې د شفعه فيصله فرمايلې ده : چې په هر مشرک جايداد کې چې تقسيم شوی نه وي باغ وي که کور د هغه مالک ته دا جايزه نه ده څو پورې چې شريک څخه اجازه نه وي اخيستې، شريک اختيار لري چې هغه خپله واخلي يايې پرېږدي کچېرې يې شريک بغير د شريک اجازې خپل سهم خرڅ کړ نو شريک ته يې په همغه قيمت د اخيستلو حق شته دی يعنې په اخيستلو کې يې اول خپل شريک او ګانډی حق اولويت لري.

**د شفعه اسباب :**

د شفعه درې اسباب دي :

۱- په جايداد کې شرکت.

۲- هغه کس شفعه کولای شي چې په ګټه کې شريک وي مثلاً لاره يې يوه وي ، د يوې چاه څخه اوبه اخلي او داسې نور.

۳- د امام ابوحنيفه په نزد ګاونډی د شفعه حق لري کوم کور يا ځمکه چې د ده له ملکيت سره پيوسته وي مګر د جمهورو فقهاؤ امام مالک ، امام شافعی او امام احمد په نزد ګاونډې ته د شفعه حق نشه (موسوعة الفقهية).

**د شفعه د صحت شرطونه :**

۱- شفعه يوازې په غير منقوله چايداد کې لکه : کور او ځمکه کې جايزه ده.

۲- د شفعه په حق کې مسلم او غير مسلم برابر دي.

۳- څو پورې چې جايداد خرڅ شوی يا هبه شوی نه وي هغه پورې شفعه نشي کيدای.

۴- کله چې جايداد خرڅ شي شفع کوونکی به د شفع کولو او نا خوښۍ اعلان کوي او که ده هغه وخت څه ونه ويل نو بيا ورته د شفع حق نشته.

**وقف**

وقف په لغت کې حبس او بندلو ته وايي په شرع کې د پانګې بندول چې خپله محفوظ وي او ګټه يې عام خلکو ته د ثواب لپاره رسيږي. يا د عامو خلکو د ګټې او ښېګڼې د پاره يو شي خاص کولو ته وقف وايي.

وقف مستحب دی شرعي وقف تر صدقې کولو هم زيات اجر او ثواب لري ځکه د صدقې اجر ثابت وي مګر د وقف اجر جاري وي چې تر هر وخت پورې موجود وي تر هغه وخت پورې وقف کوونکي ته اجر رسيږي او که وقف

کوونکی وفات شي د هغه د پاره صدقه جاريه ګرځي چې د مرګ وروسته به هم هغه ته ثواب رسيږي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:«إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةٍ: إِلَّا مِنْ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ، أَوْ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ، أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُو لَهُ» (مسلم ١٦٣١).

ژباړه : کله چې انسان مړ شي عمل يې قطع کيږي بغير له دريو څيزونو : جاريه صدقه ، يا داسې علم چې له هغه څخه د خير استفاده کيږي او يا صالح اولاد چه د مور او پلار د پاره دعا کوي.

**د وقف د صحت شرطونه :**

١- وقف کوونکی به عاقل او بالغ او په معامله به پوه وي.

٢- وقف به داسې مال وي چې معلوم وي د استفادې کولو وړ او په هغه قبضه کول ممکن وي.

٣- وقف به د خير د پاره وي لکه : اوبه ، لاره جوړول ، جومات ، فقراء او خپلوان.

۴- وقف به د هميش لپاره وي نه مؤقت.

**غصب**

د چا حلال مال په زور ، ناحقه او بې اجازې اخيستل او هغه پخپله قبضه کې راوستلو ته غصب وايي.

**د غصب حکم :**

غصب حرام او لوی ظلم دی :

الله تعالی فرمايي [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ ] (النسآء ٢٩).

ژباړه :ای مؤمنانو ! په ناحقه سره خپلې شتمنۍ په خپلو منځونو کې مه خورئ مګر دا چې تجارت وي چې ستاسې په خوښی سره سر ته ورسیږي.
او الله سبحانه وتعالی فرمايي :[وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ](البقره ۱۸۸).

ژباړه : او په ناحقه سره خپلې شتمنۍ په خپلو منځونو کې مه خورئ او مه رسوئ دا مال تر حاکمانو پورې له پاره ددې چې وخورئ تاسې څه مالونه د خلکو په ظلم او ناحقه حال دا چې تاسې پوهیږئ (چې دا ظلم دی).
وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ ذَكَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قَعَدَ عَلَى بَعِيرِهِ، وَأَمْسَكَ إِنْسَانٌ بِخِطَامِهِ-أَوْ بِزِمَامِهِ- قال» :أَيُّ يَوْمٍ هَذَا .«فَسَكَتْنَا حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ سِوَى اسْمِهِ، قال» :أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ .«قُلْنَا: بَلَى، قال» :فَأَيُّ شَهْرٍ هَذَا .«فَسَكَتْنَا حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ، فَقَالَ» :أَلَيْسَ بِذِي الحِجَّةِ .«قُلنَا: بَلَى، قال» :فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ، وَأَمْوَالَكُمْ، وَأَعْرَاضَكُمْ، بَيْنَكُمْ حَرَامٌ، كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا، فِي شَهْرِكُمْ هَذَا، فِي بَلَدِكُمْ هَذَا .«متفق عليه.

ژباړه :ابوبکر رضی الله عنه نه روایت دی هغه وايي : یو ورځ رسول الله په اوښ باندې سپور وو او یو کس د هغه پړی نیولی وو ، رسول الله صحابه کرامو ته وويل : نن څه ورځ ده ؟ راوي وايي : مونږ ټول سکوت شولو ، مونږ فکر وکړ چې رسول الله ددې نوم څخه ما سوا بل نوم په پام کې لري ، رسول الله وفرمايل : آيا نن د قربانۍ ورځ نه ده ؟ مونږ وويل هو ، بیا هغه وفرمايل : دا کومه میاشت ده ؟ مونږ ټولو سکوت وکړ او فکر مو وکړ چې ممکن رسول الله ددې میاشتې د پاره بل نوم غوره کړی ، بیا يې وفرمايل : آيا دا د ذوالحجې میاشت نه ده ؟ مونږ وويل هو. ويې فرمايل : ستاسو مالونه او ستاسو ځانونه او ستاسو عزت د دغې ورځې دغې میاشتې او دغه ځای په څیر حرام دي (څوک حق نه لري د چا مال ، نفس او آبرو او عزت پایمال کړي).

غصب داسې ستر ظلم دی چې که په دنیا کې د قانوني ګرفت نیولو نه خلاص شي نو په قیامت کې به له سختې سزا سره مخ شي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :

«مَن أَخَذَ شِبراً مِّنَ الارَضِ ظُلماً فَاءِ نَّه يُطَوِّقُه يَومَ القِيامَةِ مِن سَبعِ أَرضِينَ» (بخاري ومسلم).

څوک چې یوه لویشت پردی ځمکه په ظلم واخلي د قیامت په ورځ به دغه ځمکه تر اومی طبقی پوری د ده تر غاړه راتاو کړ شي.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :« أَلَا لَا تَظْلِمُوا ، أَلَا لَا تَظْلِمُوا ، أَلَا لَا تَظْلِمُوا ، إِنَّهُ لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِئٍ إِلَّا بِطِيبِ نَفْسٍ مِنْهُ» (مسند احمد ، دارقطني).

خبردار ! په چا باندې ظلم مه کوئ ، خبردار ! په چا باندې ظلم مه کوئ ، خبردار ! په چا باندې ظلم مه کوئ

خبردار ! د چا مال د هغه د اجازې پرته اخیستل حرام دي.

**غصب دوه صورتونه لري :**

۱- دا چې څوک د چا مال په زور نا حقه فیصله ، رشوت او یا د هغه د اجازې پرته قصداً غصب کړي ، هغه ګنهکار او غاصب دی ، د هغه څخه به دغه مال اخیستل کیږي او یا به یې تاوان ورکوي.

۲- دا چې څوک په غلطۍ سره د چا مال واخلي د هغه مال به بیرته ورکوي یا به یې د هغه تاوان ورکوي مګر ګناه وربان‌دې نشته ځکه چې هغه دغه کار په غلطۍ سره کړی دی.

**د ظلم بدې پايلې :**

په غاصب باندې واجب ده چې الله تعالى ته خالصه توبه وباسي څه يې چې په ظلم او غصب تر لاسه کړي وي هغه به خپل مالک ته سپاري او د هغه څخه به استفاده نه کوي.

رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : «مَنْ كَانَتْ لَهُ مَظْلَمَةٌ لأحد مِنْ عِرْضِهِ أَوْ شَيْءٍ فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهُ اليَوْمَ، قَبْلَ أَنْ لا يَكُونَ دِينَارٌ وَلا دِرْهَمٌ، إِنْ كَانَ لَهُ عَمَلٌ صَالِحٌ أُخِذَ مِنْهُ بِقَدْرِ مَظْلَمَتِهِ، وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ حَسَنَاتٌ أُخِذَ مِنْ سَيِّئَاتِ صَاحِبِهِ فَحُمِلَ عَلَيْهِ» (أخرجه البخاري).

يعنې : چا چې پر خپل ورور باندې ظلم کړی وي که د هغه په عزت او آبرو يې تيری کړی وي او يا يې د هغه حق پايمال کړی وي. نو همدا نن ورځ (په دنيا) کې د هغه څخه بخښنه وغواړي مخکې له دې چې د قيامت ورځ راشي او هلته درهم او دينار نه وي ، ځکه که نيک اعمال ولرې په هغه ورځ د تا څخه د ظلم په اندازه کټ کيږي او که نيک اعمال ونه لري نو د مظلوم ګناوې به ستا په غاړه اچول کيږي.

**د نفس ناموس او مال څخه د دفاع کولو حکم :**

د غله ، زاني او قاتل د پاره په اسلامي شريعت کې حدود ټاکل شوي دي د حدودو قيام په اسلامي شرعي نظام او شرعي محکمې پورې اړه لري څوک يې په فردي ډول نشي تر سره کولای.

کچيرې د چا کور ته غله ولويږي، يا څوک دچا په ناموس، نفس او مال تيری وکړي او تيری کوونکی مسلح وي چې غالب ګمان وي چې که له ځان، مال او ناموس څخه دفاع کوم هغه مې وژنې که چا دغه متجاوز ووژلو په هغه باندې شرعاً ګناه نشته او که د تيري کوونکي سره د قتل وسائل نه وي بيا يې

وژل جایز نه دي ، همدارنګه د تجاوز او تیري په وخت کې نه په عادي حالت کې.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: «من قُتل دون ماله فهو شهید، ومن قُتل دون دمه فهو شهید»

ژباړه :څوک چې مال او ځان په دفاع کې مړ شي شهید دی (رواه أبوداود -٤٧٧٢، والترمذي -١٤٢١).

وقال رجل: یا رسول الله أرأیت إن جاء أحد یرید أخذ مالي؟ قال: «قاتله»، قال: أرأیت إن قتلني؟ قال: «أنت شهید»، قال: أرأیت إن قتلته؟ قال: «هو في النار» (رواه المسلم)

یعنې : یو سړي وویل : ای د الله تعالی رسوله ! ستا څه نظر دی کچېرې څوک راشي او زما خپل مال اخلي ؟ ویې فرمایل : ویې وژنه ، سړي وویل : که هغه ما ووژني ؟ ویې فرمایل ته شهید یې ، ویې ویل : که زه هغه ووژنم ، ویې فرمایل : هغه به په دوزخ کې وي.

جاء في الموسوعة الفقهية الكويتية

لا قصاص على من قتل غيره دفاعا عن نفسه أو عرضه أو ماله ; لأن الدفاع عن ذلك مأذون فيه لكن ذلك مشروط بما إذا كان الدفع لا يتأتى إلا بالقتل .

وفي موضع آخر :

و اتفق الفقهاء على أن القصاص لا يجب في القتل العمد إذا لم يكن فيه عدوان، والعدوان يعني تجاوز الحد والحق، فإذا قتله بحق أو بإذن القتيل لم يقتل به لعدم الاعتداء ، وعلى ذلك يخرج القتل قصاصا، أو حدا، أو دفاعا عن النفس، أو دفاعا عن المال كقتل السارق والغاصب، أو تأديبا، أو تطبيبا في الجملة ، فإن القتل في هذه الأحوال كلها لا يجب فيه القصاص لعدم الاعتداء.

و جاء في موسوعة الفقة الاسلامية :

يجوز للإنسان أن يدافع عن نفسه ممن أراد قتله، ويجوز له أن يدافع عن ماله ممن أراد أن ينتهبه، ويكون الدفع بالأخف، فإن لم ينفع الأخف دفع بالأشد، ولو أدى ذلك إلى المقاتلة.

عَنْ أبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إلَى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم، فَقَالَ: يَا رَسُولَ الله! أَرَأَيْتَ إنْ جَاءَ رَجُلٌ يُرِيدُ أَخْذَ مَالِي؟ قال» :فَلَا تُعْطِهِ مَالَكَ .«قال: أَرَأَيْتَ إنْ قَاتَلَنِي؟ قال» :قَاتِلهُ .«قال: أَرَأَيْتَ إنْ قَتَلَنِي؟ قال : »فَأَنْتَ شَهِيدٌ .«قال: أَرَأَيْتَ إنْ قَتَلتُهُ؟ قال» :هُوَ فِي النَّارِ .«أخرجه مسلم.

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**إتلاف**

لکه څنګه چې په اسلامي شريعت کې د چا مال په زور ، ناحقه او بې اجازې اخيستل حرام دي همداسې د چا مال ته نقصان او ضرر رسول هم حرام دي.

اتلاف په لغت کې تلف ، نقصان او ضايع کيدو ته وايي او په شريعت کې د چا مال ته نقصان رسول چې هغه له استفادې او کار اخيستلو ولويږي اتلاف وايي.

په ايلاف کې قصداً او بې قصده ، ليونتوب او ماشومتوب شرط نه دی بلکې په هره طريقه چې د چا مال ته نقصان ورسيږي د هغه تاوان ورباندې واجب دی.

په قصدي توګه د چا مال ته نقصان رسولو کې دا خبره ده چې هغه په دې عمل سره ګناه کار شو د مال تاوان به ورکوي او توبه به باسې مګر په غلطۍ سره د چا مال ته تاوان رسولو سره ګناه نشته لکن د هغه تاوان به ادا کوي.

د ضرر او نقصان په مقابل کې د توانان اخيستل جايز دي مګر بخشش غوره دی :

[فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ](البقرة:۱۹۴).

ژباړه :نو که چا پر تاسۍ تيری کړی وي تاسې پرې هم په همغه شان تيری وکړۍ.

او فرمايي : [وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِلصَّابِرِينَ](النحل:۱۲٦).

ژباړه : نو که تاسې غچ اخيستلو نو همغومره يې واخلۍ چې څومره پر تاسې تيرى شوى ۇ او که صبر مو وکړ نو پوه شۍ چې دا کار د صبر کوونکو لپاره ډير غوره دى.

## د نقصان په مقابل کې نقصان رسول حرام دي :

که څوک د چا مال ته نقصان ورسوي نو هغه به د نقصان تاوان ورکوي مگر دا جايزه نه ده چې چا ته تاوان رسيدلى وي هغه بامثل تاوان ورسوي مثلاً يو کس د چا مال ، باغ ، زراعت او يا حيوان ته نقصان رسوي او بل کس پورته شي بامثل د هغه باغ ، زراعت او حيوان ته نقصان ورسوي داسې کول ظلم دى هغه ته د رسيدلي نقصان تاوان اخيستل جايز دى او بس.

## د نقصان سبب جوړېدل :

د نقصان سبب جوړيدل هغه وخت مينځ ته راځي چې کله قصد موجود وي.

مثلاً چا د بل د زراعت څخه اوبه بندې کړي او هغه ته يې د اوبو ورکولو څخه منع وکړه او د هغه کس فصل وچ شو نو ددې تاوان به ورکوي، يا کوم کس حيوان تر پړې نيولى دى او بل کس هغهووېرولو حيوان پړى وشکولو او چيرې ولوېدو پښه يې ماته شوه ددې تاوان به ورکوي مگر که حيوان چا ونه وېرولو خو هغه خپله ووېرېدو په چا باندې يې تاوان نشته.

چا په عامه لار کې چاه وکیندله او د هغه سر یې پټ نه کړلو او څوک پکې ولوېدل د هغه تاوان به ورکوي.

که چا قصداً د چا فصل ته څاروي کډ کړل او فصل یې خراب کړ د هغه تاوان به ورکوي مگر که په غیر قصدي توگه د چا څاروي د کوم کس فصل خراب کړي د هغه تاوان نشته.

ځکه په حدیث شریف کې راغلي دي چې:«العجماء جرحها جبار» (الترمذي).

یعنې : د څارویو د نقصان تاوان نشته.

وقال النووي في شرح مسلم :أجمع العلماء على أن جناية البهائم بالنهار لا ضمان فيها إذا لم يكن معها أحد، فإن كان معها راكب أو سائق أو قائد فجمهور العلماء على ضمان ما أتلفته.

یعنې : امام نووي د مسلم په شرحه کې وايي :د علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې که د ورځې څاروی څه نقصان پیښ کړي او څوک ور سره نه وي د نقصان ضمانت او تاوان نشته مگر که سپور کس یا د څارویو ساتونکی یا شپون ورسره وي بیا د جمهورو علماؤ په نزد به د نقضان تاوان ورکوي.

**چا ته د ضرر رسولو بدې پایلې :**

بل چا ته ضرر رسول حرام او داسې کول جرم دی هغه که د ژبې ضرر وي د نفس او مال ضرر وي حرام دی.

د اسلامي شریعت عامه قاعده چې : لا ضرر و لا ضرار في الاسلام (په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول حرام دي).

اسلامې شریعت د هغه څه حرمت هم اعلان کړی دی کوم چې د مسلمان احساس ته صدمه رسوي.رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: کله چې تاسې درې تنه یو ځای وئ نو دوه تنه دې یو نه بغیر پخپل منځ کې پټې

خبرې نه کوي تر څو چې هلته نور خلک نه وي راغلي ځکه په دې سره به دريم کس ته ضرر او صدمه ورسيږي (البخاري).

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : يو سړی په داسې حال په لاره تيرېدلو چې د ونې ښاخ په لاره کې پروت وو.له ځانه سره يې وويل : په الله تعالی قسم چې هغه به د مسلمانانو له لارې لرې کوم تر څو هغوی ته اذيت ونه رسوي. پس [ددې کار په وسيله ] جنت ته داخل شو (رواه مسلم).

و گورئ اجر او ثواب د هغه چا څوک چې د مسلمانانو له لارې څخه د اذيت شی لرې کوي اگر که هغه کار ډير کم او کوچنی هم وي.

خو نن ورځ ډير مسلمانان د مسمانانو لارې تنگوي، د اذيت او آزار شی له لارې نه لرې کوي، دومره نشي کولای چې دخپل کور مخه پاکه کړي، مردارې اوبه يې د کور مخې ته ولاړې وي او د خلکو د اذيت سبب گرځي، بيت خلا (د قضايې حاجت ځای) يې په يو بد حالت کې وي چې د لويې بد بويۍ سبب شوی وي، فاضله مواد خپل ځای ته نه انتقالوي بلکي په عامه لار کې يې غورځوي ،په فرعي خامه کوچو کې موټران په دومره سرعت روان وي چې په گرد او غبار يې خلک سخت په تنگ کړي وي او داسې نور......

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : خلک دې له خپل شر (اذيت او آزار) څخه وساته دا هم ستا د پاره صدقه ده (رواه امام مسلم).

او کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم نه پوښتنه وشو چې کامل مسلمان کوم دی ؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل :هغه چې د ژبې او لاس له ضرر څخه يې خلک په امن وي (متفق عليه).

له ابې هريره رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل شول: فلانۍ ښځه لمونځ کوي او روژه هم نيسي (حال دا چې) گاونډيان يې په ژبه سره آزاروي. پس رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل

: په هغه کې خير نشته هغه به په اور کې وي – او رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : هر څوک چې په الله او ورځ د قيامت ايمان لري ګاونډيان به نه آزاروي (متفق عليه).

**صلح**

صلح په لغت کې جوړې اوسازش ته وايي او د شريعت په اصطلاح کې يو عقد او تعهد دی چې د هغه په وسيله د طرفينو په مينځ کې د خصومت ،جنجال او دوښمنۍ مخ نيول کيږي. د صلح په کولو سره يو طرف د دوښمنۍ او جنجال د ختمولو په خاطر تر خپل حق يا څه حصې د خپل حق څخه مقابل طرف ته ورتيريږي (د الله جل جلا له د رضا او خوښۍ د پاره).

نو صلح د طرفينو د شخړې ، جنګ جګړې او اختلافات مخ نوی کول او هغوی راضي کول بغير له الزام څخه (يو نصيحت او خيرخواه حرکت بلل کيږي).

**د صلحې جايزوالی :**

اسلامي شريعت د مسلمانانو تر مينځ د شخړې د حل د دوښمنۍ له مينځه وړلو لپاره صلح جايز ګرځولې ده

لقوله سبحانه و تعالى : [والصلح خير] (النساء/١٢٨).

يعنې : صلح او جوړه کول غوره دي.

او فرمايي: [فاتقوا الله وأصلحوا ذات بينكم] (الأنفال/١).

يعنې : له الله (جل جلا له) څخه ووېريږئ او خپلمنځي اړيکی سمې کړئ (د خپل منځې شخړې په صلح کولو لرې کړئ).

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: «الصلح جائز بين المسلمين، إلا صلحاً حرّم حلالاً أو أحل حراماً».

یعنې : د مسلمانانو په مینځ کې روغه جوړه جایز ده په شرط ددې چې حرام حلال او حلال حرام نه کړي.

عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ :«أَنَّ أَهْلَ قُبَاءٍ اقْتَتَلُوا حَتَّى تَرَامَوْا بِالْحِجَارَةِ، فَأُخْبِرَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم بِذَلِكَ، فَقَالَ» :اذْهَبُوا بِنَا نُصْلِحُ بَيْنَهُمْ». (بخاری:۲۶۹۳).

ژباړه : سهل بن سعد رضی الله عنه وايي : د قبا اوسیدونکو په خپل مینځ کې په جنګ شول داسې چې یو د بل په طرف یې ډبرې ویشتې کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خبر شو ویې فرمایل : ځئ چې لاړ شو د هغوی صلح وکړو.

**د جناب نبي کریم صلی الله صلی الله علیه وسلم د جوړجاړی یو نمونه:**

ام سلمه رضی الله عنها وايي: دوه کسان د خپلې دعوې د حل د پاره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل د څه میراث په باره کې چې زاړه شوي او تیر وخته شوی وو او د دوی هیڅ کوم هم شاهد نه لرلو ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : تاسې چې خپلې دعوي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته پیش کوئ او زه د نورو په شان بشر یم ، کیدای شي ځینې د تاسې د لیل او حجت په بیانولو کې نظر جانب مقابل ته بلیغ وي ، زه هم ستاسې په مینځ کې د اوریدلو له مخې دعوه حل کوم ، پس که له تاسې څخه چا د لیل د قوت په وجه د بل په مال باندې په ناحقه قبضه وکړه او د هغه په ګټه حکم ورکړ شو هغه به د خپل مسلمان ورور حق نه خوري ځکه ما چې د دعوي پر اساس هغه ورکړل هغه په اصل کې د هغه حق نه دی په اصل کې مې هغه ته د دوزخ یوه ټوټه ورکړې ده ، چې د قیامت په ورځ به د اور د حلقې په شان د هغه په غاړه کې ځړول کیږي ددې بیان په وجه هغوی دواړو وژړل او هر یو ویل زه مې خپل مسلمان ورور ته تر خپل حق تیر یم.

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : تاسې چې اوس داسې وايئ لاړ شئ هغه تقسيم کړئ او د حق لاره ونيسئ او هغه د بچه اچونې له مخې تقسيم کړئ. (روا احمد او ابوداود او ابن ماجه) .

**د خلکو په مينځ کې د اصلاح فضيلت :**

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[لاَّ خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوَاهُمْ إِلاَّ مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلاَحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَن يَفْعَلْ ذَلِكَ ابْتَغَاء مَرْضَاتِ اللّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْراً عَظِيماً ] (النساء ۱۱۴).

ژباړه : د دوی په ډيرو پټو خبرو کې کوم خير نشته ، خو هغه چا چې په کوم خيرات يا ښه کار يا د خلکو تر مينځ يې په روغه امر کړی دی او څوک چې دا کار د الله (جل جلا له) د رضا د پاره کوي ، نو ژر به مونږ ده ته ډير لوی اجر ورکړو.

وروى أبو داود عن أبي الدرداء أن رسول اللَّه صلى الله عليه وسلم قال: «ألا أخبركم بأفضل من درجة الصيام والصلاة والصدقة؟ قالوا: بلى يا رسول الله! قال: إصلاح ذات البين...» (حديث صحيح، صحيح أبي داود سلسلة صحيحة حديث ۴۱۱۱).

ژباړه : ابی درداء وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايل : ايا تاسې د داسې عمل نه خبر نه کړم چې تر نفلي روژې نفلي لمونځ او صدقې نه يې درجه غوره وي ؟ ويي ويل هو يا رسول الله ، ويي فرمايل : د خلکو په مينځ کې اصلاح کول.

**صلح څنګه کول پکار دي :**

صلح کونکی بايد د حق طرفداري وکړي ، د خپلوۍ ، تربګينت ، سمت پرستۍ پر بنا د ظالم طرف طرفداري ونه کړي ، صلح کونکی بايد د مظلوم او حق طرف ونيسي او مقابل لوری په اخلاقو ، ښه سلوک ، قناعت او نصيحت د حق لورې ته دعوت کړي.

الله جل جلا له فرماي:[ وَلاَ تَلْبِسُواْ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُواْ الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقره ۴۲).

ژباړه: او حق له باطل سره مه ګډوئ سره له دې چې تاسې ښه پوهیږئ نو حق مه پټوئ.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: «من مشى ظالم ليقويه و هو يعلم انه ظالم فقد خرخ من الاسلام» (مشکوة المصابیح).

یعنې :څوک چې د ظالم سره ددې د پاره تګ وکړئ چې هغه تقویه کړي ، په داسې حال کې چې دی د هغه په ظلم خبر وي نو یقیناً چې دغه کس له اسلام څخه ووت.

او بل دا چې صلح په دې شرط جایز ده چې حلال حرام او حرام حلال نه کړي

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :«الصلح جائز بين المسلمين ، إلا صلحاً حرّم حلالاً أو أحل حراماً»

یعنې : صلح کول په دې شرط جایز دي چې حرام حلال او حلال حرام نه کړ شي.

مګر زمونږ په ټولنه کې چې اکثراً کومې صلح او فیصلې کیږي د کتاب الله او سنتو خلاف وي جرم یو کس کړي او په بدو کې ښځې ورکوي دا طاغوتي صلحې او فیصلې دي چې شرعاً مردودې دي (ستر ظلم او قبیح عمل دی).

**د صلح د صحت شرطونه :**

۱- د دعوی دواړه طرفونه به عاقل ، بالغ او آزاد وي.

۲- صلح به داسې وي چې حلال حرام او حرام حلال نه کړي.

۳- صلح کوونکی به متقي ، عالم او په مسائلو پوه کس وي هدف به يې عدل وي ، داسې کس چې هدف يې عدل نه بلکې خپلوي ، طرف او بل هدف پالل وي يا د مسائلو نه باخبره نه وي په هغه باندې صلح کول جایز نه دي ځکه هغه د شخړې د حل پر ځای شخړي ته پراختیا ورکوي.
۴- صلح که په مال کې وي نو هغه مال مباح او داسې مال وي چې قبضه کول يې ممکن وي.
۵- صلح به په حقوق عباد کې وي نه په حقوق الله کې.
(موسوعة الفقة الاسلامي – باب الصلح).

## مسابقه

د دوو يا څو کسانو تر مینځه سبقت او مخې والي او هدف ته رسیدلو ته مسابقه وايي.

### د مسابقې حکم :

مسابقه په څلور قسمه ده.

**اول** : په نیکو او ښو کارونو کې مسابقه کول چې نیت يې د الله تعالی رضا وي دا عالي او د لوړې درجې مسابقه ده ، الله سبحانه وتعالی فرمايي : [سَابِقُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ذَلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ] (الحديد ۲۱).

ژباړه : د خپل رب ښښنې او جنت ته یو له بله نه وړاندې شئ چې ارتوالی يې د آسمان او ځمکې د ارتوالی په اندازه دی یوازې هغو کسانو ته تیار شوی دی چې پر الله او د هغه پر رسولانو يې ایمان راوړی وي ، هو : دا د الله مهرباني ده چا ته يې چې خوښه شي ورکوي يې او الله پاک د ډېرې لويې مهربانۍ څښتن دی.

**دوهم : د جهادي تمريناتو مسابقه :**

د جهادي تمريناتو د پاره مسابقه کول جايز دي لکه : په اوس عصر کې نښه ويشتل او نور او په پخوا وخت د آس ، اوښ او قچرو مسابقه کول د في سبيل الله جهاد د استعداد د لوړالي په نيت.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ :«لاَ سَبَقَ إِلاَّ فِي نَصْلٍ أَوْ خُفٍّ أَوْ حَافِرٍ»(أخرجه أبو داود والترمذي).

ژباړه : ابی هريرة رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : مسابقه کول نشته مگر په نښه ويشتلو اوښ او آس کې (د جهاد دپاره).

وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: «سَابَقَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم بَيْنَ الخَيْلِ الَّتِي قَدْ أُضْمِرَتْ، فَأَرْسَلَهَا مِنَ الحَفْيَاءِ، وَكَانَ أَمَدُهَا ثَنِيَّةَ الوَدَاعِ وَسَابَقَ بَيْنَ الخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضَمَّرْ، فَأَرْسَلَهَا مِنْ ثَنِيَّةِ الوَدَاعِ، وَكَانَ أَمَدُهَا مَسْجِدَ بَنِي زُرَيْقٍ، وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ مِمَّنْ سَابَقَ فِيهَا» (متفق عليه).

ژباړه : او د ابن عمر رضی الله عنهما څخه روايت چې هغه وايي : رسول الله صلی الله عليه وسلم د تربيه او روزل شويو اسونو تر مينځ مسابقه په لاره واچوله چې مسافه يې د حفياء څخه تر تنية پورې وه ، او غير روزل شويو اسونو د پاره يې مسافه د تنية الوداع څخه تر مسجد بنی زريق پورې وټاکله ، ابن عمر وايي: چې زه هم د دغه مسابقې له گډون کوونکو څخه وم.

**دريم مباح مسابقه :**

لکه سپورت، لامبو وهل او نور چې نيت يې د بدن روغتيا وي په لاندې شرطونو جايز دي.

١- بايد چې انسان له ديني واجباتو مشغول نه کړي لکه : لمونځ ، علم شرعي ، نفقه ، د والدين خدمت او نور.

۲- شرط وهل او قمار به پکې نه وي.

۳- د اسلامي شریعت مخالفت به کې نه وي لکه : بې ستري ، خصومت ، د وخت ضایع کول او نور.

**څلورم قسم حرام مسابقات :**

لکه ورق بازي، شطرنج، بزکشي، د سپیو جنګول او نور.

**پوښتنه :ورق بازي څه حکم لري ؟**

یوه بازی ده چی په هغه کښي باچا وزیر غلام ملکه او د ۱ څخه تر لسو پوری ورقې وي نو دغه بازی کول ګناه لری که نه ؟

ځواب:

الله تعالی انسان د یوه ستر هدف د پاره پیدا کړی دی او هغه ته یې امر کړی دی چې خپل شرعي وظایف په ښه شان تر سره کړي او د قیامت په ورځ د هغه څخه د هرې لحظې پوښتنه کیږي چې عمر دې په څه کې تیر کړی دی ، نو ځکه مسلمان باید خپل قیمتي وخت په بیهوده او بې ګټې چې د نیا او آخرت په زیان وي تیر نه کړي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د بې هوده لوبو او لهو لعب په باره کې فرمایلي دي چې :

«کل شيء لیس من ذکرالله فهو لغو و سهو الا اربع خصال: مشي الرجل بین الغرضین و تأدیب فرسه، و ملاعبته اهله، و تعلیم السباحة» (أخرجه النسائي،الدر المنثور:۴/۸٦).

ژباړه: ټولې لوبې او بازۍ بې هوده او د الله تعالی له ذکر څخه غافله کوونکې دي بغیر له څلورو شیانو :د سړي تګ یا منډه د دوو اهدافو تر مینځ ، د آس تأدیب او آمده کول ، د خپل اهل سره ملاعبه او لامبو یا آب بازي.

ددې صحیح حدیث په دلیل ټولې لوبې بې هوده او لهو لعب بلل کیږي چې ددې جملې یو هم ورق بازې ده ، چې فقهاؤ حرام او مکروه تحرمي بللې ده ، امداد المفتین په صفحه ۱۰۰۲ او د هند ستر مفتي په کفایت المفتي ۱۹۹/۹ لیکلې ده.

او همدارنګه معاصر فقیه علامه زحیلي لیکي: «و یحرم بالاتفاق کل لعب فیه قمار... و ما خلا القمار و هو اللعب الذي لا عوض فیه في الجانبین و لا من احدهما فمنه ما هو حرام و منه ما هو مباح، لکن لایخلوکل لهو غیر نافع عن الکراهة لما فیه من تضییع الوقت و الاشتغال عن ذکر الله و عن الصلوة و عن کل نافع مفید».(الفقه الاسلامي:۵٦۱/۳)

همدارنګه د البلد الحرام علماء لیکي : سترنج او ورق بازي حرامه دي ځکه دا غفلت مینځ ته راوړي او د الله تعالی د ذکر څخه د عفلت سبب ګرځي (فتاوي علماء البلد الحرام -۴۳۷/۴).

او که په ورق بازۍ کې شرط وي قمار دی چې قمار عظیمه ګناه او شیطاني عمل دی.          و الله سبحانه و تعالی اعلم

**اوزلوبه (بزکشي) څه حکم لري ؟**

زمونږ په هیواد افغانستان کې یو بل ناوړه او غیر اسلامي دود د بزکشی لوبه ده چې دغه لوبه اکثراً په ژمي کې د افغانستان په ځینو ولایاتو کې تر سره کیږي ، د دغه لوبې لپاره د سپمې شتمن خلک ښه چټک او مزې آسونه ساتي او هر یو د خپل آس لپاره یو آس ځغلونکی ساتلی وي چې په دوی کې ورته چاپ انداز وایي ، د آس خاوند دغه چاپ انداز ته معاش مقرر کړی وي

او د هغه وظيفه يوازې د آس سانته او پالل او بيا په بزکشی کې د آس ځغلول وي .

کله چې د بزکشی وخت راشي نو هر څوک خپل آس د بزکشی ميدان ته راولي ، د دغه لوبې لپاره لومړی يو خوسکی ذبحه کوي هغه په ميدان کې اچوي ، چاپ اندازان په ډيره چټکی آسونه د خوسکی طرف ځغلوي او هر يو د خوسکی پورته کولو کوښښ کوي.

د بزکشی دغه پورتنې شکل کوم چې اوس رواج لري حرام عمل دی او داسې يو جاهلي عمل دی چې نه شرعي مشروعيت او نه هم کومه مشروع ګټه لري او په لاندې علتونو حرام بلل کيږي :

١- په دې لوبه کې د قمار معامله ده ځکه د لوبې ګټلو د پاره انعام ټاکل شوی وي : معاصر فقيه علامه زحيلي ليکي: «و يحرم بالاتفاق كل لعب فيه قمار... و ما خلا القمار و هو اللعب الذي لا عوض فيه في الجانبين و لا من احدهما فمنه ما هو حرام و منه ما هو مباح، لكن لايخلوكل لهو غير نافع عن الكراهة لما فيه من تضييع الوقت و الاشتغال عن ذكر الله و عن الصلوة و عن كل نافع مفيد». (الفقه الاسلامي:٣/٥٦١).

همدارنګه مولانا محمد شفيع صاحب په جواهر الفقه کې د آسونو د لوبې ، د سپو جنګول ، جرګانو جنګول او نورو د قمار شکلونو او معاملو پوره وضاحت کړی دی او دغه د ابن کثير قول يې نقل کړی دی :

كل شيء من القمار فهو من الميسر حتى لعب الصبيان بالجو. (ابن کثير ٩١ ج ٣)

يعنی : هر هغه څيز چې په قمار کې داخل وي ، هغه د ميسر په حکم کې داخل دی حتی د ماشومانو په غوزانو يا چهارمغزو وغيره باندی د ګټلو پيللو لوبې کوي هغه هم قمار يا جواري ده.

۲- دا چې د آسونو خاوندان دومره لوی لګښت د جهاد د تیاري لپاره نه بلکي د یوه بې ګټې او ناروا کار د پاره تر سره کوي.

۳- دا چې د بزکشی لوبه مبتدع چنګیزخان دی هغه دغه ناروا عمل په ۷۱۲هجري کې د لومړی ځل لپاره په اسلامي هیوادونو کې رواج کړ چې پر دغو هیوادونو یې وحشانه یرغل وکړ او د یرغل په جریان کې یې ډیر بې کاره او جاهلي رواجونه پرې ښودل.

٤- دا چې پر کوم خوسکی چې دوی لوبې کوي هغه الله تعالی د دوی ددې ډول هوس لپاره نه دی پیدا کړی ، بلکي الله تعالی د یوې معقلې ګټې اخیستنې د پاره پیدا کړی دی نه دا چې لوبې پرې وکړي او هغه په ظالمانه توګه داسې دانګ او خاورو کې ولوغړوي چې انسان لا څه کوي چې د حیوان له خوراک څخه هم ووځي.

٥- دغه لوبه دومره وحشي لوبه ده چې چاپ اندازان د خپلې تنخوا ، انعام او د خپلو بادارانو د خوشحاله کولو پخاطر یو د بل پښې او لاسونه ماتوي ځنې وختونه مرګ هم مینځ راځي او هیڅ پروا هم نه پرې کوي نه کسات شته او نه هم دیت ځکه چې په لوبه کې وژل شوی دی صرف واریثانو ته یې یو څه اندازه پیسی ورکول کیږي او بس.

٦- په بزکشی کې د ټولو څخه لوی جنایت دا دی چې د بزکشی لوبه اکثراً د ماسپښین څخه وروسته پیلیږي د بزکشی لپاره جمع شوی سیل کوونکي خلک تر ماښام پورې سیل کوي او اکثریت د دوی لمونځ نه ادا کوي بلکي ډیر کم د دوی لمونځ ادا کوي او دا هغه جنایت دی چې ددې په وسیله خلک د الله تعالی د ذکر او فریضې څخه غافله کیږي او بلاخره په سلګونو خلک د لوی جرم مرتکب ګرځي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د بې هوده لوبو او لهو لعب په باره کې فرمایلي دي چې :

«کل شيء لیس من ذکر الله فهو لغو و سهو الا اربع خصال: مشي الرجل بین الغرضین و تأدیب فرسه، و ملاعبته اهله، و تعلیم السباحة» (أخرجه النسائي).

یعنې : ټولې لوبې او بازۍ بې هوده او د الله تعالی له ذکر څخه غافله کوونکي دي بغیر له څلورو شیانو :د سړي تګ یا منډه د دوو اهدافو تر مینځ ، د آس تأدیب او آمده کول د جهاد لپاره، د خپل اهل سره ملاعبه او لامبو یا آب بازي.

نو ثابته شوه چې د بزکشی لوبه د اسلام خلاف ظالمانه او جاهلانه لوبه ده چې د مسلمان له شانه سره بالکل نه ښایي.

**د سپیو جنګول (سګ جنګي) څه حکم لري ؟**

تر هرڅه مخکی زیات سلامونه او نیکی هیلی محترمو استادانو ته وړاندې کوم.

محترما څرنګه چې تاسو ته معلومه ده په ځینو ځایو کې زیات داسې کارونه شته چې د زیاتو خلګو له لورې په ډلیزه توګه ترسره کیږي له یو خوا امکان لري ځینې له دغو کارونو زیاته ګناه هم ولري خو د خلګو په مینځ کی عادي شوي او کناه هم نه ورته وایي لکه د کورنیو حیوانات زرکه ، سپی ، کرک ، چرګ او داسې نور د خلګو لخوا په کورونو کې ساتل کیږي او جنګول کیږي. پوښتنه مې دا ده چې دا څه حکم لري؟ یعنې جنګول یې چې په ځینو حالاتو کې ورباندې پیسی هم اړدي یعنې که دی زرک مات شو نو ماته به دونه روپۍ راکوې. مخکې مضمون چې تاسې د کورنیو حیواناتو د ساتلو په هکله خپورکړی وو هغه مې لیدلی خو دلته د حیواناتو د جنګ او د هغو په سر د پیسو ایښودل دي که چېرې په تفصیل سره ځواب راته راکړئ ځکه چې غواړم

چې ددې کار په ضدکلکه ملا وتړم خو مخکې زه باید مکمل معلومات په دې هکله ولرم.

زیاته مننه: انجنیر فضل الرحمن له ارزګان ولایت ترینکوټ ښارنه

ځواب:

د اسلام مقدس دین پر حیواناتو باندې د رحم کولو ډېر تینګار کړی ، پر حیواناتو باندې رحم کول الله (جل جلا له)ته خوښ عمل دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي «بَيْنَا رَجُلٌ يَمْشِي فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَنَزَلَ بِئْرًا فَشَرِبَ مِنْهَا، ثُمَّ خَرَجَ فَإِذَا هُوَ بِكَلْبٍ يَلْهَثُ يَأْكُلُ الثَّرَى مِنَ الْعَطَشِ، فَقَالَ: لَقَدْ بَلَغَ هَذَا مِثْلُ الَّذِي بَلَغَ بِي، فَمَلأَ خُفَّهُ، ثُمَّ أَمْسَكَهُ بِفِيهِ، ثُمَّ رَقِيَ، فَسَقَى الْكَلْبَ، فَشَكَرَ اللَّهُ لَهُ، فَغَفَرَ لَهُ» قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَإِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ أَجْرًا؟ قَالَ: «فِي كُلِّ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ».(بخاری:۲۳٦۳)

ژباړه : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي : یو ورځ یو کس مېزل کولو او هغه (د مېزل په وخت کې) سخت تږی شو، یوې کوهي ته ورکښته شو او له هغه څخه یې اوبه وڅښلې او بهر شو ، نا ببره یې یو سپی ولید چې د سختې تندې له امله یې خپله ژبه ایستلي ده او خاورې خوري. (له ځانه سره یې) وویل: دا سپی هم داسې تږی دی لکه زه چې تږی وم (دوباره چاه ته ور کښته شو)، خپله موزه یې له اوبو ډکه کړه هغه یې په خوله کې و نیوه او له چاه څخه پورته شو او سپي ته یې اوبه ورکړې.

الله (جل جلا له) له هغه څخه راضي شو او د هغه ګناهونه یې و بخښل. صحابوو وویل : ای رسول الله ! الله (جل جلا له) مونږ ته د حیواناتو سره د نیکی په کولو سره هم اجر را کوي ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل :(د هر ذی روح سره نیکي کول ثواب لري).

**د حيواناتو جنګول :**

اسلامې شريعت پر حيواناتو باندې ظلم كول ، د هغه په جنګ اچول او د هغه نښه او هدف ګرځول حرام كړي دي.

فقه السنه ليكي : جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم د حيواناتو جنګول يو بل ته د هغوى تحريكول منع كړي دي ، د ابن عباس رضى الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حيواناتو يو بل ته تحريكول او د هغه جنګول داسې منع كړى دي لكه د حيواناتو په نښه كول يې چې منع او حرام كړى دي.

رسول اللَّهِ صلى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي:«عُذِّبَتْ امْرَأَةٌ فِي هِرَّةٍ سَجَنَتْهَا حَتَّى مَاتَتْ فَدَخَلَتْ فِيهَا النَّارَ لا هِيَ أَطْعَمَتْهَا وَسَقَتْهَا إِذْ حَبَسَتْهَا وَلا هِيَ تَرَكَتْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الأَرْضِ» (رواه البخاري-٢٢٣٦، و مسلم -٢٢٤٢).

يعنې : يوې ښځې پشى بندي كړي وه چې نه يې هغه ته د خوراک شى وركول او نه د څښاک او نه يې خوشي كوله چې د ځمكې له ورشو څخه څه و خوري ، هغه پشى بلاخره له لوږې څخه مړه شوه ، (ددې ظلم په وجه) هغه ښځه دوزخ ته لاړه.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ الله عَنْهُمَا: أَنَّهُ مَرّ بِنَفَرٍ نَصَبُوا دَجَاجَةً يَرْمُونَهَا. فَلَمَّا رَأَوْهُ تَفَرَّقُوا عَنْهَا، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: مَنْ فَعَلَ هَذَا؟ إِنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم لَعَنَ مَنْ فَعَلَ هَذَا. (بخارى:٥٥١٥)

ژباړه : له ابن عمر رضى الله عنهما نه روايت دى چې هغه د يوې ډلې څخه تيردلو چې هغوى چرګ هدف او نښه كړى وو او د هغه په طرف يې غيشي ويشتل ، كله چې هغوى ابن عمر وليد تيت شول. ابن عمر وويل : دا كار چا تر سره كړى دى ؟ څوک چې دا كار وكړي رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغوى باندې لعنت ويلى دى.

لعنت د سختو گناهونو د پاره استعمال شوی دی مطلب يې دا دی چې څوک له دغه گناه څخه توبه و نه باسي رسول الله صلی الله عليه وسلم هغوی ته ښيرا کړی ده چې د الله (جل جلا له) د رحمت څخه دې لرې وي.

د حيواناتو جنگولو په لوبو کې د شرط او پيسو اېښودل قمار دی :

**قمار** : هر هغه معامله که په بازۍ لگولو، شرط لگولو يا دبخت او اتفاق پر بنا وي چه گټه او تاوان يې مبهم او نامعلوم وي هغی ته قمار او ميسر وائی.

په هره لوبه کې چې شرط لگول وي قمار دی ، د حيوان جنگولو په ظالمانه لوبه کې شرط لگول قمار دی.

کل شیء من القمار فهو من الميسر حتی لعب الصبيان بالجو (ابن کثير ۹۱ ج ۳)

يعنی: هر هغه څيز چې په قمار کې داخل وي د ميسر په حکم کې داخل دی تر دې چې د ماشومانو په غوزانو يا چهارمغزو وغيره باندی د گټلو بيللو لوبې کوي هغه هم قمار يا جواری ده.

جواهر الفقه زياتوي : ټولې بې فائدې لوبې منع او نا رواه دي ، برابره خبره که په هغه باندې مقابله وشي او که نه ، انفرادي وي يا ډليز. بيا په مقابل کې څه شی مقرر کړي يو طرف ته وي يا دواړو طرفونو ته دا ډول لوبې مطلقاً حرامې دي ، په حديث شريف راځي : کل لهو المسلم حرام الا ثلاثه ملاعبة اهله و تاديبه لفرسه و مناضلة بقرسه (جواهر الفقه بحواله - شامي ج ۵ ص ۵۳).

قمار عظيمه گناه ده چې په قرآنکريم کې د شيطان عمل ښودل شوی دی او دغه جرم د بت پرستی سره برابر ذکر شوی دی :

لقوله سبحانه تعالی: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ] (۹۰سورة المائدة).

ژباړه : ای مؤمنانو! يقيناً چه شراب او قمار او بتان او غشی (د فال، دا څلور واړه ټول) پليت دی له کاره د شيطان څخه دی نو ځان وساتئ تاسی له دې څخه لپاره ددی چه نجات ومومئ.

**د حيواناتو جنګول د کافر قوم ميراث دی :**

دا ظالمانه عمل چې بې خولې او ژبې حيوانات يو د بل په مقابل کې تحريک او جنګوي ، دغه حيوانات په سرو وينو ککړ ، زخمې بدن څخه دوی خوند اخلي د کافر قوم ميراث دی چې وروسته د دين څخه نا خبره مسلمانانو کې رواج شوی دی.

نن ډير د افسوس ځای دی چې په دې ظالمانه عمل باندې ځينې مسلمانان ګرفتار دي ، هغوی ته بيا په سلګونو او زرګونو مسلمانان ولاړ وي او د دغه ظالمانه شيطاني عمل سيل کوي.

ای افسوس !!!

د حيواناتو جنګولو ظالمانه کړنې په ګناه کې ټول سيل بين او تماشاواله شامل دي :

ځکه چې دوی پر دغه ظالمانه عمل باندې راضی او خوښ دي نو ځکه په دې شيطاني عمل کې ټول له يوه سره شامل دي ، په دليل د لاندې حديث شريف :

إذا عملت الخطيئة في الأرض كان من شهدها فكرهها كان كمن غاب عنها، ومن غاب عنها فرضيها كان كمن شهدها".(ابوداود ۴۳۴۵).

يعنې : کله چې په يوه ځمکه کې ګناه وکړ شي نو چه کوم خلک هلته موجود وي او په ګناه خفه شي دوی د هغو خلکو په شان دي چه هلته موجود نه وي (يعنی د دوی څخه د دغه ګناه په اړه پوښتنه نه کيږي) او چې کوم خلک په دغه ځمکه کې نه وي او پدی ګناه راضی وي نو هغوی د هغو خلکو

په په شان دي كوم چه دغه ځاى كې اوسي (دوى په هغه كناه كې شريک وي).

و الله سبحانه و تعالى اعلم

## نهم فصل
## معاصر معاملات

### د النقود (نغدو پيسو) حكم څه دى ؟

النقود (نغدې روپۍ) چې لومړي د سپينو او سرو زرو څخه جوړېدلې او وروسته په كال د ۱۹۱۰ ميلادي لومړى په چين كې د ورقو په شكل مينځته راغلې او د لومړي ځل لپاره بانک نوټ د استالاهم بانک لخوا توليد او مينځته راغلې.

د معاصرو فقهاؤ په نزد په اوسنيو نغدو نوټونو لكه : افغانۍ ، ډالر ، ريال ، درهم او نورو باندې د سپينو او سرو زرو احكام جاري كيږي ، مثل په مثل په زيادت سره تبادله يې سود حكم لري، لكه : افغانۍ په افغانۍ ، ډالر په ډالر برابر بدليږي كه زيادت پكې وو سود دى ځكه جنس يې يو شان دى مگر كه جنس مختلف وو لكه: افغانۍ په ډالر زيادت پكې باک نلري ځكه جنس يې يو شان نه دى .

او همدارنگه په اوسنيو نغدو پيسو كې زكات فرض دى( معاملات المالية المعاصرة – وهبة زحيلي -ص ۱۵۰).

### كه موجود بانک نوټونه نا چل شي ؟

كچېرې موجوده بانک نوټونه ناچل اعلان شي نو د زړو پيسو قرض به څنگه ادا كيږي ؟

د جمهورو فقهاؤ قول دا دى چې د قرض په ادا كولو كې به د هغه جنس ، نوع ، مقدار او صفت كې هيڅ فرق نه وي پرته له كمي او زيادت څخه به وي

يعنې د همغه وخت په پیسو یا د هغه په مثل قیمت به قرض ادا کیږي ځکه چې د فرق په صورت کې د سود وېره ده مروجې پیسې د سرو او سپینو زرو حکم لري.

مگر د امام یوسف قول دا دی چې هغه باید د ورځې په نرخ تبادله شي او دا قول د احنافو په نزد مفتی به دی. مگر"مجتمع الفقه الاسلامي ۴۲ ۴/۵ کال ۱۴۰۹" لومړی قول احتیاطاً د سود څخه د لریوالی په وجه راجح بولي.

جاء في المعاملات المالية المعاصرة :

اتجاء الجمهور الأعظم من فقهاء المذاهب الأربعة : أنها تؤدى بجنسها ونوعها وقدرها وصفتها ، دون زيادة أو نقصان ، منعاً من وقوع في الربا المحرم شرعاً ، شأنها شأن بقية النقود الذهبية أو الفضية والفلوس الرايجة.

و ذهب أبو يوسف رحمه الله الى انه يجب ردها بقيمتها يوم اقراضها او قبضها فی القرض ، ورد قيمتها يوم الانعقاد فی عقد البيع ، وهذا هو المفتى به عند الحنفية.

لكن قرار مجمع الفقه الاسلامي الدولي رقم ۴۳ (۴/۵) عام ۱۳۰۹ فی دورته الخامسة بالكويت أخذ بالاتجاه الأول.

(المعاملات المالية المعاصرة لزحيلي -ص ۱۵۵).

**آن لاین تجارت** (On line Business) **څه حکم لري ؟**

**اول** :انټرنټي تجارت د معاصرو فقهاؤ په نزد جایز دی په شرط ددې چې په شرعي ضوابطو برابر وي.

داسې چې یو بل و نه ویني او نه هم په یو ځای کې سره جمع شي او نه هم په خپلو سترګو هغه جنس وویني او نه یو د بل خبرې واروي مګر د دوی تر مینځ د ارتباط وسیله لیکل یا کومه برقي و سیله وي لکه تلېفون ، انټرنټ ، فکس و غیره نو ددې وسائلو په وسیله بیع جایز ده په شرط ددې چې د بایع او

مشترۍ تر مینځ ایجاب او قبول تر سره شي او جنس قبض شي، معاملات المعاصرة لیکي :

إذا تم التعاقد بين غائبين لا يجمعهما مكان واحد، ولا يرى أحدهما الآخر؛ معاينة، ولا يسمع كلامه، وكانت وسيلة الاتصال بينهما الكتابة أو الرسالة أو السفارة (الرسول)، وينطبق ذلك على البرق والتلكس (البريد الآلي)، والفاكس (البريد المصوَّر)، وشاشات الحاسب الآلي (الكمبيوتر)، ففي هذه الحالة ينعقد العقد عند وصول الإيجاب إلى الموجه إليه وقبوله (معاملات المعاصره ص ۴ بحواله :مجمع الفقه الإسلامي، جدة، الدورة السادسة، القرار رقم ،٣).

**دوهم :**

په بیع کې د جنس قبض او تسلیمول شرط دي ، د بیع د صحت له شرطونو څخه یو دا شرط دی چې تجارتي جنس قبض او تسلیم شي.

(فتح القدير ج ٥ ص ٢٦٦ ، البحوث ج ١ ص ٢٦٣ محمد تقي عثماني)

کله چې تجار خپل یا د هغه وکیل اجناس پخپل تصرف کې راولي او تسلیم یې کړي بیع صحي ده فرق نه کوي بیع او د پیسو لیږل د انټرنیټ له لارې تر سره شوی وي.

مګر که جنس قبض نه شي بیع نه صحي کیږي ، داسې چې اجناس واخلي هغه یې خپله تسلیم کړي نه وي حتی په سترګو یې نه وي لیدلي پر بل کس یې د ټکټ او آن لاین له لارې و پلورې لکه د ځینو سودي بانکونو معاملات نو دا ډول بیع نه صحي کیږي. بدائع الصنائع ، للكاساني -٣٩۴/۴).

و الله سبحانه وتعالى اعلم

## د تجارت د ترغیب د پاره اعلانات او سوغاتونه ویشل څه حکم لري ؟

پوښتنه :

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!

الله تعالی دې تاسو ته د دې ستر ديني خدمت اجر په دنيا او آخرت دواړو کې درکړي. زه يو سوال لرم، هغه دا چې که څوک پخپل تجارتي اجناسو کې د انعاماتو سکيم شروع کول غواړي هغه داسې چې د اجناسو په کيفيت او قيمت کې د انعاماتو څخه د پخوا پشان څه فرق نه راولي، يوازې دې لپاره چې خپل اجناس په زياته اندازه وپلورل شي او تجارتي شرکت يې په مارکيټ کې مشهور شي او داسې نور... نو آيا د داسې انعامي سکيم شروع کول په شريعت کې څنګه دي؟! ستاسو جامع ځواب ته ژر تر ژره سترګه په لار يم..

عمر خطاب

ځواب:

دلته دوه صورتونه دي اول د تجارت د پاره اعلانات او تبليغات دوهم د انعاماتو ويشل.

**اول صورت :** د تجارت د پرمختګ او ترغيب د پاره اعلانات کول د لاندې شرايطو په صورت کې جايز دي :

**اول** : دا چې خلک دده د تجارتي فعاليت څخه خبر نه وي او د اعلاناتو څخه مقصد د خلکو خبرول وي تر څو خلک دده د تجارتي فعاليت د نوعې او موقعيت څخه خبر شي.

**دوهم** : په تجارتي اعلاناتو او تبليغاتو کې به دوکه چل او فريب نه وي چې په اعلانات کې يو شی وي او په اصل کې بيا بل څه وي او د عيب پټول به پکې نه وي ځکه داسې کول حرام دي جناب نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمايي :«مَنْ غَشَّنا فَلَيْسَ مِنَّا» (مسلم) .

يعنې:څوک چې مونږ ته فريب راکوي له موږ څخه نه دی.

دريم : د تجارتي معاملاتو د پاره چې کوم اعلانات کيږي هغه به په صدق او رښتيا ولاړ وي درواغ به پکې نه وي ځکه چې داسې کول حرام دي

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا». أَوْ قَالَ: «حَتَّى يَتَفَرَّقَا، فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا، وَإِنْ كَتَمَا وَكَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا». (بخاری: ۲۰۷۹).

**ژباړه:** خرڅونکی او اخيستونکی څو پورې چې يو له بله نه وي جلا شوي د معاملی د فسخې حق لري او زياته يې کړه : که هغوی رښتيا ووايي او د جنس عيب بيان کړي نو د هغوی په معامله کې به خير او برکت وي او که د جنس عيب پټ کړي او درواغ ووايي د هغوی معامله به بې برکته وي.

**څلورم** : په دې تجارتي اعلاناتو کې به بل ته ضرر رسول نه وي او په دې مقصد به هم نه وي چې بل کس له پښو وغوځوي ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«لا يؤمن أحدكم حتى يحب لأخيه ما يحب لنفسه» (البخاري و مسلم).

يعنې :تر هغه پورې يو د تاسې کامل مؤمن نشي کيدای څو پورې چې څه د ځان د پاره خوښوي هغه د خپل ورور د پاره خوښ کړي.

او همدارنګه فرمايي :«لا ضرر ، ولا ضرار » او په بل روايت کې : «لا ضرر ولا ضرار في الإسلام» (رواه احمد ۵/۳۲۶ ، ۳۱۳ ، ۳۲۷ او ابن ماجه – ۲۳۴۰،۲۳۴۱).

يعنې : په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول حرام دي.

**پنځم** : په تجارتي اعلاناتو کې به اسراف او تبذير نه وي ځکه چې اسراف او تبذير په اسلامې شريعت کې حرام دی الله سبحانه وتعالی فرمايي : [ولا تسرفوا إنه لا يحب المسرفين ](سورة الأنعام ۱۴۱).

ژباړه: اسراف مه کوئ ځکه الله تعالی اسراف کونکي نه خوښوي.

و قال الله تعالى : [ ولا تبذر تبذيراً ، إن المبذرين كانوا إخوان الشياطين] (سورة الإسراء /۲۶-۲۷).

ژباړه: او اسراف مه کوئ په اسراف کولو سره ، يقيناً اسراف کونکي د شيطان وروڼه دي.

شپږم : نومو‌ړی تجارتي فعالیت به د اسلام او مسلمانانو په ضرر نه وي او په هغه کې به ترویج یا رواجول د محرماتو نه وي ځکه چې د داسې شي تجارت کول حرام دي

قوله تعالی :[وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ]

ژباړه :په نیکی او پرهیزکارۍ کې يو له بله مرسته وکړئ او (هیچکله) د ګناه او نافرمانۍ په کار کې يو له بله مرسته مه کوئ.

**دوهم صورت:** د انعاماتو یا سوغاتونو ویشل دي چې دوه ډوله دي :

**اول** : هغه چې تجار کوم کس ته څه سوغات ورکوي او په هغه باندې خپله پته یا ادرس او تجارتي بیانات لیکل شوی وي ان شاء الله په دې کې به څه مشکل نه وي او په دې سوغات باندې د هبه احکام جاري کیږي.

**دوهم** : په سر بسته ډبیو ، قطیو یا کارټنونو کې د څه سوغات پټ ایښودل چې رقم یاجنس یې هم يو شان نه وي قمار دی فتاوي المعاصر البلدالحرام یې په اړه لیکي:

پوښتنه : ځنې تجارتي مؤسیسات اعلانونه کوي چې هرڅوک دغه اجناس واخلي د جائزې مستحق به وګرځي له دې لارې خلک ورماتوي ترڅو د دوی د اجناسو د خریدارۍ سره علاقه مند شي چې ځینې خلک یې د جایزې په نیت اخلي ددی حکم څه دی ؟

ځواب : دا کار حرام دی او د قمار يو ډول دی دوی د خلکو مال په ناحقه تر لاسه کوي دا کار یې د خلکو د غلولو لپاره يو سبب جوړ کړی وي

مسلمان سوداګر باید له دې کار څخه ځان وساتي.

فتاوی البلد الحرام (مكة المكرمه) (۳۹۸/۱۹)

و الله سبحانه و تعالی اعلم

**التأمين (بیمه) څه حکم لري ؟**

د بیمې بیان د قمار په برخه کې هم وشو، بیمه په دې معنی ده چې یو کس په میاشتنې ډول یا په کال کې څه مبلغ د بیمې شرکت ته ورکوي تر څو د بیمې شرکت د هغه د روغتیا ، اجناسو او مالونو د ضمانت تعهد وکړي تر څو د حادثې په وخت کې د بیمې شرکت د هغه خساره ادا کړي.

واضح خبره ده چې بیمه ورکوونکی هر وخت په تاوان کې دی مگر د بیمې شرکت کله گټه او کله تاوان کوي کچیرې خساره د بیمې د ادا شوي مبلغ څخه اضافه شي شرکت تاوان کوي مگر که خساره او تاوان لږ وي د بیمي شرکت گټه کوي نو ځکه دا معامله د تاوان او گټې په مینځ کې مبهمه ده چې هم قمار او هم سود دی.

لنډه دا چې د بیمې په معامله کې پنځه اسباب حرام دي لکه :

۱- **سود** : د بیمې د قسطونو په ادا کولو کې بلا عوضه زیادت سود دی.

۲- **الغرر الفاحش (نا څرگندوالی)** : د بیمه تړون یو احتمالي تړون دی چې مقدار یې مجهول او نا څرگند دی پس دا یو ناڅرگنده معامله ده او په معاملات کې ناڅرگندوالی «الغرر» بلل کیږي چې حرام دی.

۳- **غبن او دوکه** : د بیمه په معامله کې غبن او دوکه وي ځکه محل د تړون نا معلوم وي.

۴- **جهالت** : د بیمه په تړون کې د دواړو طرفونو لپاره جهل وي ځکه د غرق کیدلو او سوزیدو یا اور اخیستلو او داسې نورو حادثاتو مقدار او خساره معلومه نه وي.

۵- **قمار** : د بیمه معامله د تاوان او گټې یا برد باخت تر مینځ وي چې دا عین قمار دی.

د اسلامي نړۍ لاندې معاصرو مراجعو د بیمه تړون حرام کړی دی :

د قاهرې د علماؤ ټولنه ۱۳۸۵ کال ، مجمع البحوث الاسلامية في الأزهر ، مجمع الفقه الاسلامي في رابطة العالم الاسلامي في مكه مكرمه ، مجلس هيئة كبار العلماء السعودية ، قرار الندوة الفقهية الثالثة في بيت التمويل الكويتي ، قرار مجمع الفقه الأسلامي الدولي رقم ۹ (۲/۹) ، په افغانستان کې د آنلاین اسلامي لارښود د څېړنې علمي څانګه .

نو ثابته شوه چې د بیمې عقد شرعاً فاسد عقد دی.

بیمه شرعي یا بیمه تعاوني دا ده چې څو کسه مسلمانان د احسان ، صدقې او کومک په نیت پیسې او مال جمع کړي یو ټولنه تشکیل کړي او د دغه ټولنې لیارې د فقیرانو ، طبعي آفاتو تاواني شوي خلکو سره امداد وکړي داسې کول جایز دي کار د خیر دی.

(المعاملات المالية المعاصرة – وهبة زحيلي ص ۲٦۳ ).

**معالج ډاکتر ته د درملتون او لابراتوار کمیشن ورکول څه حکم لري ؟**

پوښتنه :

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاة

تاسې ته به معلومه وي چې په اکثره معاینه خانو کې معالج ډاکټر چې کوم درملتون یا لابراتوار ته خپل نسخه لیکي د هغه سره لاره لري یعنې درملتون او یا لابراتوار د هرې نسخې په سر ډاکټر ته فیصدي ورکوي آیا دغه اجرت او کمیشن ډاکټر او درملتون واله ته جایز دی ؟.عبدالله له کابل څخه

ځواب:

څرنګه چې دا یوه معاصره مسئله ده د نړۍ معاصر فقهاء یې په اړه لیکي :

د درملتون او لابراتوار څخه د معالج طبیب اجره یا کمیشن اخیستل درې صورته لري :

۱- درمتلون او لابراتوار واله چې ډاکټر ته په ليکل شوې نسخه او معايناتو باندې څه اجره يا کميشن ورکوي د طرفينو د پاره حرام دی ځکه دا اجرت بغير له څه عوض څخه ورکول کيږي ، چې د مريض په حق کې تيری او خيانت دی.

۲- که درملتون يا لابراتوار واله له خپل جيب څخه ډاکتر ته د هغه د ايمانداری ، صدق او پوهې له خاطره بغير له کوم عوض څخه څه کومک کوي نو داسې کول جايز دي د ډاکتر او مريض دواړو د پاره کومک دی.

۳- که معالج ډاکتر د ضرورت څخه علاوه اضافي درمل او يا د ضرورت څخه اضافي معاينات په دې خاطر ليکي چې په نسخه او ټيسټ کې د ده د کميشن او اجرت فيصده لوړه شي او يا بې کيفيته درمل ليکي داسې کول صريح فريب دي او د فريب سره مدد کول دي او په باطله طريقه د خلکو د مال خوړل دي.

فتاوي اللجنة الدائمة ليکي :

الحمد لله.

أولاً : إذا كان الواقع كما ذكر من الاتفاق السابق بين الطبيب في عيادته الخاصة وصاحب المختبر على أن يكون له نسبة من أجرة التحليل ـ فذلك غير جائز للطرفين ؛ لما فيه من الأثرة والتحجير على أصحاب المختبرات الأخرى ، إلا إذا كان صاحب هذا المختبر له امتياز على غيره من جهة الصدق والأمانة والتفوق في التحليل ، فيجوز تخصيصه بالتحويل عليه ؛ لما في ذلك من مزيد مصلحة للمريض وإعانة للطبيب على إحكام العلاج ، لكن لا يجوز للطبيب أن يأخذ نسبة من أجرة التحليل ؛ لأنه أَخْذُ مال في غير مقابل.
ثانياً : إذا علم صاحب المختبر أن الطبيب طلب تحاليل غير لازمة للمريض ليزيد فيما يأخذه من النسبة لم يجز له أن يقوم بعمل هذه التحاليل ؛ لما في

ذلك من التعاون معه على غش المريض وأكل ماله بالباطل ، وعليه أن ينصح للطبيب عسى أن يتوب عن ذلك ، وتسلم الأطراف الثلاثة ، أما إذا لم يعلم صاحب المختبر بذلك فلا إثم عليه في القيام بتلك التحاليل. وبالله التوفيق، وصلى الله على نبينا محمد وآله وصحبه وسلم" انتهى.

"فتاوى اللجنة الدائمة للبحوث العلمية والإفتاء" (۴۳۲/۲۴).

**د تجارتي مال او جنس ګرينټي کول څه حکم لري ؟**

په اوسني بازار کې ځينې کمپنۍ يا شرکتونه خپل مالونه په ګرنټي چې په عربي کې ورته الضمان وايي خرڅوي چې که تر فلانی مودې پورې عوارض وکړي مونږ يې جوړوو.

دغه د جوړولو ضمانت يا د عيب ضمانت که د اجرت پرته وي جايز دی ځکه دا د کفالت عقد دی احسان او تبرع بلل کيږي.

او که چيرې په ګرينټي باندې اجره اخلي بيا سودي لين دين بلل کيږي ځکه کفيل يا ضامين دا پر ځان منلي ده او دا ضمانت پر ده باندې قرض دی نو په قرض باندې اجرت اخيستل سود دی او د بيمې يو ډول دی چې د بدن ، روغتيا او مالونو بيمه کول په اسلام کې حرام دي او د بېمې بيان مخکې تير شو.

جاء في فتاوى الأسلام سوال جواب:

لا يجوز أخذ أجرة على الكفالة والضمان ؛ لما قد يؤدي ذلك إلى الوقوع في الربا. وذلك أن الكفيل أو الضامن ملزم بدفع الدين عن المكفول إذا لم يقم المكفول بالسداد، فإذا سدد عنه كان ذلك قرضا، وكانت الأجرة على الضمان فائدة على القرض، وهي ربا.

قال أبو محمد البغدادي الحنفي في "مجمع الضمانات" ص ٢٨٢ " : ولو كفل بمال على أن يجعل الطالب له جُعلا ، فإن لم يكن مشروطا في الكفالة ؛ فالشرط باطل ، وإن كان مشروطا في الكفالة ، فالكفالة باطلة " انتهى.

وجاء في قرار مجمع الفقه الإسلامي :

إن الكفالة هي عقد تبرع يقصد به الإرفاق والإحسان ، وقد قرر الفقهاء عدم جواز أخذ العوض على الكفالة ، لأنه في حالة أداء الكفيل مبلغ الضمان يشبه القرض الذي جر نفعاً على المقرض ، وذلك ممنوع شرعاً " انتهى من (قرارات مجمع الفقه الإسلامي ص٢٥ ).و الله أعلم.

**د ځان او اولادونو خرڅول څه حکم لري ؟**

پوښتنه :که څوک د فقر او بې وسۍ له مخې خپل ځان یا زامن د پیسو په بدل کې خرچ کړي ، آیا داسې کول جایز دي ، د اخیستونکي زامن ملک ګرځي او کنه ؟ عبدالله – کابل

ځواب:

د انسان بیع (خرڅول او اخیستل) په اتفاق د ټولو فقهاؤ حرام دي.

عن أَبِي هُرَيْرَة رضى الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ : قال اللهُ :«ثلاثةٌ أنا خصمهم يومَ القيامةِ : رجلٌ أعطى بي ثم غدرَ ، ورجلٌ باع حرًّا فأكل ثمنَه، ورجلٌ استأجرَ أجيرًا فاستوفى منهُ ولم يُعْطِه أجرَه» (البخاری ٢٢٢٧).

ژباړه : د ابی هریره رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: الله سبحانه وتعالی فرمایي: دری کسان دي چې د قیامت په ورځ به د هغوی دوښمن وم، اول : هغه کس چې زما په نوم تعهد وکړي او بیا خیانت وکړي، دوهم: هغه څوک چې آزاد کس و پلوري او دهغه قیمت وخوري، دریم: هغه څوک چې یو کس څخه کار واخلي خو مزدوري یې ور نه کړي.

انسان د الله تعالی ملک دی د هیچا ملک نه شي کیدای ځکه الله تعالی انسان مکرم او محترم او اشرف المخلوق پیدا کړی دی او په دنیا کې یې ټول شیان ورته مسخر کړي دي.

لقوله سبحانه وتعالی :[وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آَدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا](الإسراء:٧٠).

ژباړه :او په رښتیا چې مونږ بني آدم ډیر عزت من کړی ، په وچه او لمده کې مو هغه ته سپرلۍ ورکړې له پاکو څیزونو مو هغه ته روزي ورکړې او په خپلو ډیرو مخلوقاتو مو هغه ته ډیر زیات غوروالی ور ښلی دی.

حتی د انسان د بدن د اعضاؤ او اندامونو خرڅول هم حرام دي او په حکم د نفس د انسان کې دي.

دا ډیر د افسوس خبره ده چې یو مسلمان د لوږې نه د خپلو اولادونو خرڅولو او جلاوالي ته مجبوریږي خو د هغوی خپل او خپلوان نږدې کسان ، کلی او سیمه ځان نه ورباندې خبروي.

د افسوس ځای دا ده چې بیا دغه د مسلمان اولاد یو بل بې رحمه او بې غیرته مسلمان د پیسو په بدل کې اخلي او د سیمې خلک یې ننداره کوي خو په هیڅ کوم کې هم رحم او غیرت نه وي.

دا زکات ، عشر او صدقات د څه لپاره دي ؟ دا ولې یو کس فقیر او بې وسه او بل کس مالدار وي ؟ ولي یو کس توانا او بل بې توانه وي. پوه شئ دا د الله امتحان دی.

له عامو مسلمانانو څخه مو دا ګیله ده چې خپلو اولادونو ته وګورئ ، لږ غیرت او رحم وکړئ ، که ستا له غېږې څخه خپل واړه ماشومان جلا شي څومره به ورباندې وځړیږئ، د خپلو خپلوانو له حاله ځان خبر کړئ ، په دې

صورت کې لومړی مسئولیت د هغوی د خپلوانو او نږدې کسان دی ځکه چې نورو ته خو څه حال معلوم نه وي.

او ددې کار څخه دا هم څرګندیږي چې زکات او عشر نشته ټول خلک یې نه ادا کوي او هسې د ګوتو په شمار خلک یې ادا کوي کچیرې ټولو خلکو ادا کولای نو یو فقیر او بې سرپرسته کور ته به هم څه رسیدلي وو.

چې د یوې ټولنې دا حال وي چې یو له مړښت څخه چوي او بل یې له لوږې اولاد خرڅوي او بل بې رحمه او بې غیرته یې د پیسو په بدل کې اخلي ، آیا په داسې ټولنه به د الله تعالی قهر نازلیږي او که رحم ؟

**د وینې خرڅول جایز دي او که نه ؟**

په سر کی تاسو ښاغلی ته محمدي تحفه وړاندې کوم او وایم چه السلام علیکم ورحمة الله و برکاته!

پس له سلامه یوه پوښتنه لرم که په تفصیل سره یی ځواب راکړئ ښه به وي زما پوښتنه دا ده چه ایاد کافر او د اهل کتاب وینه مسلمان ته ورکول کیږي او نه او برعکس د هغی. والسلام - عبدالودود اختر

ځواب:

**اول** : مریض ته د وینو په ورکولو عوض او پیسې اخیستل په اتفاق د فقهاؤ حرام دی.

په دلیل د الله تعالی ددې حکم چې فرمایي : (أو دما مسفوحا) او په حدیث شریف کې راغلی : (نهی عن ثمن الدم).

الحافظ ابن حجر رحمه الله وایي : د وینې بیع داسې حرامه ده لکه د مردارې او خنزیر بیع او په دې باندې اجماع ده.

او بل دا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي : (إن الله إذا حرم شیئا حرم ثمنه)

يعني : يقيناً الله (جل جلا له)چې د کوم شي د حرمت حکم کړی وي د هغې بيع او تجارت هم حرام دي.

مگر د ضرورت په وخت کې د مريض او ناروغ د پاره د وينې اخيستل مباح دی ځکه (فإن الضرورات تُبيح المحظورات).

وجاء في "الموسوعة الفقهية" (١٤٨/٩) :

ويحرم ولا ينعقد بيع الدم المسفوح , لقوله تعالى : (أو دما مسفوحا)... وصرح ابن المنذر والشوكاني بإجماع أهل العلم على تحريم بيعه " انتهى.

جاء في "فتاوى اللجنة الدائمة للبحوث العلمية والإفتاء" (٧١/١٣) :

لا يجوز بيع الدم ؛ لما في "صحيح البخاري" , من حديث أبي جحيفة أنه اشترى حَجّاماً , فأمر بمحاجمه فكسرت , فسئل عن ذلك فقال : إن رسول الله صلى الله عليه وسلم (نهى عن ثمن الدم).

قال الحافظ في "الفتح" : " المراد تحريم بيع الدم كما حرم بيع الميتة والخنزير , وهو حرام إجماعاً , أعني بيع الدم وأخذ ثمنه " انتهى.

رأى مجلس المجمع الفقهي الإسلامي لرابطة العالم الإسلامي:

لا يجوز؛ لأنه – أي الدم – من المحرمات المنصوص عليها في القرآن الكريم، مع الميتة ولحم الخنـزير، فلا يجوز بيعه، وأخذ عوضٍ عنه، وقد صح في الحديث:"إِنَّ اللَّهَ إِذَا حَرَّمَ عَلَى قَوْمٍ شَيْئًا حَرَّمَ عَلَيْهِمْ ثَمَنَهُ"، كما صح أنه صلى الله عليه وسلم نهى عن بيع الدم(صحيح ابن حبان حديث رقم (٤٩٣٩).

ويستثنى من ذلك حالات الضرورة إليه؛ للأغراض الطبية، ولا يوجد مَن يتبرع به إلا بعوض؛ فإن الضرورات تُبيح المحظورات، بقدر ما تُرفَع الضرورة، وعندئذ يَحِل للمشتري دفعُ العوض، ويكون الإثم على الآخذ.

(المجمع الفقهي الإسلامي)

**دوهم** : کافر ته د وینې ورکول یا د کافر څخه د وینې اخیستل څه حکم لري ؟

فتاوى علماء البدالحرام لیکي : هغه کافران چې حربي نه وي یعنې ذمې او معاهد وي هغوی ته د وینې ورکول باک نه لري په دلیل د دغه آیت شریف :[لا ینهاکم الله عن الذین لم یقاتلوکم في الدین ولم یخرجوکم من دیارکم أن تبروهم وتقسطوا إلیهم ](الممتحنة /٨).

ژباړه : الله پاک تاسې له دې څخه نه منع کوي چې چا له تاسې سره په دین کې جنګ نه دی کړی او نه یې له کورونو ویستلي یئ چې تاسې له هغوی سره ښیګنه وکړئ.

یعنې: هغه کافرانو چې د مسلمانانو سره نه وي جنګیدلي او نه یې مسلمانان له خپلو کورونو څخه ایستلي وي هغوی ته د حاجت په وخت کې وینه ورکول باک نه لري.

مګر هغه کافران چې د مسلمانانو په خاوره یې یرغل کړی وي د هغوی او مسلمانانو په مینځ کې جنګ وي هغوی ته د وینې ورکول حرام ، موالات دی د اسلام او مسلمانانو پر وړاندې د هغوی اعانت دی چې سخت خطرناک دی (لکه په اوس وخت کې د امریکا په مشري نړیوال یرغل او طاغوت).

"لا أعلم مانعاً من ذلك ، لأن الله تعالى یقول في کتابه العظیم : (لا ینهاکم الله عن الذین لم یقاتلوکم في الدین ولم یخرجوکم دیارکم أن تبروهم وتقسطوا إلیهم) (الممتحنة /٨)

فأخبر الله سبحانه أنه لا ینهانا عن الکفار الذین لم یقاتلونا ولم یخرجونا من دیارنا أن نبرَّهم ونُحسن إلیهم ، والمضطر في حاجة شدیدة إلى الإسعاف ، وقد جاءت أم أسماء بنت أبي بکر الصدیق رضي الله عنها إلى بنتها وهي کافرة ، في المدینة في وقت الهدنة بین النبي صلى الله علیه وسلم وأهل مکة ـ تسألها

الصلة ، فاستفتت أسماء النبي صلى الله عليه وسلم في ذلك فأفتاها أن تصِلها ، وقال : (صلي أمك وهي كافرة)

فإذا اضطر المعاهد أو الكافر المستأمن الذي ليس بيننا وبينه حرب ، إذا اضطر إلى ذلك فلا بأس بالصدقة عليه من الدم ، كما لو اضطر إلى الميتة ، وأنت مأجور في ذلك ، لانه لا حرج عليك أن تسعف من اضطر إلى الصدقة".

وبناء عليه ، فإن الكافر المحارب الذي بينه وبين المسلمين حرب لا يجوز له التبرع بالدم ، لأن في هذا إعانة على عدوانه على المسلمين ، وهو أمر خطير جداً ، نسأل الله السلامة والعافية.

(علماء البلدالحرام – مكة المكرمة (ج ١ ص ٣٧٦).

و الله سبحانه و تعالى اعلم

**د كميشن اخيستل جايز دي او كه نه ؟**

محترمو السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!

سوال مي دا دی چې دپراپرټی (رهنمای معاملات) کې کار کول په کمیشن سره (په فیصدی)جایز دي كه نه ؟ او دواړو نه کمیشن اخستل جایز دي که یا ؟

مزمل – پاکستان

جواب :

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

د رهنمای معاملات (پراپرټي) له لارې د ځمکې د خرڅونكي او اخيستونكي يا كرايې واله څخه د كميشن اخيستل جواز لري (جدید فهي مسائل ج ١ ص ٢٧١ بحوله بداية المجتهد ج ٢ ص ١٤٤).

په شرط ددې چې معاملاتو کې صدق موجود وي ، چل او فريب نه وي.

يجوز للسمسار أن يأخذ أجرة على سمسرته ، من البائع أو المشتري أو منهما ، ويلزمه أن يصدُق ويبين.

رهنمای معاملات یا پراپرټي واله د خرڅونکي د وکیل حیثیت لري چې په وکالت کې به امانت او صدق کوي د هغه څخه به د اصلي نرخ څخه علاوه څه شي نه اخلي او بل دا چې خپله د کمیشن اجره به ښکاره کوي چې د ځمکې دغه قیمت دی او دغه زما د رهنمای معاملاتو اجره ده ، او د شي عیب به نه پټوي کچیرې د ځمکې اسناد جلي وي رهنما واله به خلکو ته فریب نه ورکوي.

نور د کمیشن کار بار او په هغه باندې اجره اخیستل د څلورو واړو مذاهبو په نزد رواه ده.

و قد نص جمع من الأئمة على جواز السمسرة ، و جواز أخذ اجرة عليها
(موسوعة الفقهية ۱۵۱/ ۱۰)

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**د بانک د ماستر کارت ، ویزه کارت کارول څه حکم لري ؟**

د بانک د اعتبار کارت چې په عربی کې ورته (بطاقة الائتمان) وایي ، د قرض یو اعتباري کارت وي چې د بانک څخه اخیستل کیږي او په هغه باندې په آن لاین ډول د انټرنیت له لارې یو شي مثلاً سافټویر ، کتاب ،صوتي او ویدیویي معلومات او نورورباندې اخیستل کیږي.

د بانک د اعتباري کارت په ذریعه باندې د انټرنیټ له لارې اخیستل او تجارت جایز دی په هغه صورت کې چې په شرعي ضوابتو برابر وي لکه :

۱- خپله د کارت قیمت او په هغه باندې د اداري مصارفو اخیستل جایز دي مگر د کارت د قیمت او اداري مصارفو څخه علاوه څه اخیستل صریح

سود دی ځکه دغه کارت د قرض حیثیت لري په قرض باندې زیادت سود دی.

المجتمع الفقه الاسلامي ليکي :

فلا يجوز له (المصدر للبطاقة) أن يأخذ أكثر من المبلغ الذي اشترى به صاحب البطاقة البضائع. ويجوز له أن يأخذ مبلغا مقطوعا في مقابل المصاريف الإدارية ، وهذه لا تزيد بزيادة المبلغ المستخدم عند شراء البضائع. فهو الربا بعينه

(د کارت مالک ته د کارت د قیمت نه زیات مبلغ اخیستل جایز نه دي ، او هغه ته د کارت د اداري مصارفو د اجرت اخیستل جایز دي مګر د اداري مصارفو د اجرت څخه زیات مبلغ اخیستل ورته جایز نه دي ځکه دا عین سود دی).

۲- داسې شرط لګول به پکې نه وي چې د مودې په تیرېدو او د وخت پوره کیدو سره به بانک ته نورې پیسې ورکوي.

یعنې : کله چې د کارت وخت ختم شي نو یوازې دوې لارې لري :

الف) : د خپلو هغو پیسو چې بانک ته مو قرض ورکړي د هغه د تر لاسه کولو د پاره به نوي کارت اخلې د هغه مصارف به ورکوې څو خپل قرض بیرته لاس ته راوړي چې دا په قرض باندې ګټه شوه.

ب) : که کارت نوی نه کړې نو پیسې دې سوزې دا په باطله طریقه د خلکو د مال خوړل دي.

که بانک دا شرط ولګوي چې کله د کارت وخت ختم شو ستا حساب ختم دی نوري پیسې به داخلوې دا یو سودي معامله ده ځکه په سودي قرض کې د قرض په تأخیر او ځنډ باندې ګټه اخیستل کیږي دلته بانک هم د قرض په تأخیر سره ګټه اخلي چې دا صریح سود دی.

فتاوي الأسلام سوال جواب ليکي :

لا يجوز التوقيع على العقد الربوي ولا الدخول فيه ، ولو كان الإنسان عازما على السداد في الوقت دون تأخير ؛ لأن العقد المحرم لا يجوز إقراره ، ولأنه قد يتأخر الإنسان في السداد لظرف ما ، من نسيان أو مرض أو غيره ، فيقع في الربا.

(په سودي تړون باندې امضاء او په هغه کې ور داخېدل جايز نه دي ، که څه هم انسان دا عزم ولري چې په وخت سره بغير له ځنډ څخه به يې ادا کوي ځکه داسې عقد او تړون حرام دی په هغه باندې اقرار جايز نه دی ، کچېرې انسان هغه پر خپل وخت مصرف او ادا نه کړي د ناروغۍ يا هېرې له امله وځنډېږي نو هغه په سود کې واقع کيږي).

همدارنګه "خالد بن سعود عضو الجمعية العلمية السعودية للسنة" په دې باره کې ليکي :

البطاقة الإئتمانية الربوية بأن يشترط البنك زيادة حين التأخر عن السداد أو يأخذ على العميل فوائد مقابل إعطائه البطاقة كما هو الغالب في البنوك كالفيزا والماستر كارد والإكسبرس وغيرها فهذه يحرم التعامل بها ولا يجوز للمسلم الحصول عليها والانتفاع بها بوجه من الوجوه ويجب على من كانت عنده أن يتخلص منها.

(د سود اعتباري کارت کې د بانک دا شرط لګول چې که د پيسو په بيا اچولو کې تأخير او ځنډ راشي د هغه فائده اخلي يا د کارت په مقابل کې اخلي لکه غالباً چې اکثره بانکونه (دا عمل تر سره کوي) لکه : الفيزا (ويزه) ، ماسټرکارت ، اکسپرس او نور په دغو باندې معاملات کول حرام دي ، د مسلمان د پاره جايز نه دی چې هغه تر لاسه کړي او د هغه څخه په وجه ګټه واخلي که د چا سره وي د هغه له کارولو څخه دې ډډه وکړي).

خلاصه دا چې داسې شرط لګول چې که په یوه میاشت یا یو کال کې دغه د کارت اخیستونکي خپل پور مصرف کړي ښه که یې مصرف نه کړي نو د کارت د نوي کولو پیسې به ادا کوي (چې اصلاً په همغه پور باندې زیادت شو خو حیله او بهانه یې د کارت نوي کول شول) او که نوی کارت وا نه خلي خپلې پیسې نشي اخیستی ځکه چې د هغه موده ختمه شو.

په بخاري شریف کې روایت نقل شوی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

«مَا بَالُ أُنَاسٍ يَشْتَرِطُونَ شُرُوطًا لَيْسَتْ فِي كِتَابِ اللَّهِ، مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَيْسَ فِي كِتَابِ اللَّهِ فَلَيْسَ لَهُ وَإِنْ شَرَطَ مِائَةَ مَرَّةٍ، شَرْطُ اللَّهِ أَحَقُّ وَأَوْثَقُ». (بخاری:۲۵٦۱)

یعنې : ځینې خلک داسې شرطونه لګوي چې هغه په کتاب الله کې نشته ؟ هر څوک چې داسې شرط ولګوي چې د الله تعالی په کتاب کې نه وي نو هغه شرط باطل دی که څه هم سل ځله شرط وتړي (باید پوه شي) چې : د الله تعالی شرط محکم او مؤثق دی.

همدارنګه دوکتور وهبة الزحيلي وايي :

و أمثلتها : الفيزا ، والماستر كارد ، والداينرز كارد ، والأمريكان اكسبريس ، وهى الأكثر رواجاً فى عصرنا ، وهى انواع ثلاثة ، الخضراء ، والذهبية و الماسية.

حكمها الشرعي : يحرم التعامل بهذه البطاقة ، لأنها تشتمل على عقد اقراض ربوي ، يسدده حاملها على أقساط مؤجلة ، بفوائد ربوية.

(مثالونه یې لکه : ویزه، ماستر کارت، داینرز کارت، امریکن اکسبریس او دغه کارتونه چې کوم دي اکثره زمونږ په عصر کې رواج لري ، او دا درې ډوله دي، شنه، د سرو زرو او د الماس.

**شرعي حکم** : په دغه کارتونو باندې معاملات کول حرام دي ځکه چې ددې تړون يو سودي قرض دی کارت اخيستونکی به د ټال په صورت کې سودي قسط ادا کوي). (المعاملات المالية المعاصرة – وهبة الزحيلي ص ۵۴۴).

**مستعمل سره زر په نويو سرو زرو بدلول :**

ډير ښځې داسې کوي چې خپل د سرو زرو يا سپينو زرو استعمال شوي ګاڼه په نويو ګاڼه بدلوي او په مقابل کې څه پيسې سر (اضافه) ورکوي دا معامله باطله ده او دا ډول لين دين سود دی.

ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«الذهب بالذهب وزناً بوزن مثلاً بمثل والفضة بالفضة وزناً بوزن مثلاً بمثل فمن زاد أو استزاد فهو ربا» (رواه مسلم).

ژباړه: سره زر په سرو زرو وزن په وزن (برابر) او يو شان او سپين زر په سپينو زرو په وزن کې برابر او يو شان بدليږي که زيادت پکې وشي نو هغه سود دی.

مسلمانې خويندې چې کله غواړي خپل ګاڼه په نويو ګاڼه بدل کړي نو داسې به کوي چې لومړی به خپل ګاڼه خرڅ کړي او وروسته به نوي ګانه واخلي هيڅکله به ګاڼه په ګاڼو نه بدلوي ځکه چې هغه سر په سر او برابر نه بدليږي نو کله چې ګاڼه سر په سر او برابر بدل نشي سود بلل کيږي.

**د وړو پيسو بدلول په لويو پيسو باندې**

د ډالرو د وړو نوټونو بدلول په لويو نوټونو يا د افغانيو واړه نوټونه په لويو نوټونو په فرق سره که څه هم لاس په لاس وي حرام او سود دی ځکه نوټونه د سرو او سپينو زرو حيثيت لري لاس په لاس ، برابر او يو شان به تبادله کيږي ، د افغانۍ ډالر او هر ډول نوټونو همدا حکم دی په دليل د دغه حديث شريف

:«الذهب بالذهب مثلاً بمثل، يداً بيد، والفضة بالفضة مثلاً بمثل، يداً بيد» (المسلم).

يعنې : سره زر په سرو زرو ، سپين زر په سپينو زرو يو شان برابر او لاس په لاس به وي.

جاء في فقه التجار المسلم :

لا يجوز شرعاً بيع الفئة الصغيرة من الدولار الأمريكي بفئة كبيرة من الدولار الأمريكي مع التفاضل سواء كان ذلك يداً بيد أو مؤجلاً، لأن العملات الورقية - النقود - تقوم مقام الذهب والفضة وبالتالي فإن الربا يجري فيها كما يجري في الذهب والفضة فتأخذ النقود الورقية أحكام الذهب والفضة وبناءً عليه لا يجوز بيع الجنس الواحد منها بعضه ببعض متفاضلاً سواء كان ذلك نسيئة أو يداً بيد لقول الرسول - صلى الله عليه وسلم -: (الذهب بالذهب.....). فقه التجار المسلم ص ١١٧

**د تجارتي نوم يا نښان او لينس يا جواز خرڅول :**

تجارتي نښان او جواز د سوداګرو په وړاندې قيمت او ارزښت لري ځکه چې هر هغه نوم او نښان چې د خلکو په مينځ کې يې ښه نوم او اعتبار ګټلی وي نو ګن شمير خلک د همغه تجارتي نوم يا کمپنۍ توکي او اجناس اخلي.

اوس پوښتنه دا ده چې د دغه نښان او جواز خرڅول څه حکم لري ؟

علامه اشرف على تهانوي رحمه الله په اړه ليکي :

د کمپني نوم د وظيفې د حق سره ورته والی لري په دې اعتبار چې په اصلي توګه ثابت دی نه په دې معنی چې د ضرر د لرېوالي له کبله ثابت دی او دواړه اضافي کړنې دي چې راتلونکي کې د مال لاسته راوړنې بلل کيږي نو ښکاري چې په عوض کې يې مال اخيستل جايز دي که څه هم چې د تقوی

سره سمون نه خوري مگر د ضرورت له مخې صحت مومي (معاصر فقهي مسائل ص ۴۱).

مجتمع فقه اسلامي د تجارتي نښان د خرڅولو جواز ورکړی دی :

مجمع فقه الاسلامي د معنوي حقوقو په باره کې داسې فتوی ورکړي ده :

أولاً : الاسم التجاري والعنوان التجاري والعلامة التجارية والتأليف والاختراع أو الابتكار هو حقوق خاصة لأصحابها، أصبح لها في العرف المعاصر قيمة مالية معتبرة لتمول الناس لها، وهذه الحقوق يعتد بها شرعاً، فلا يجوز الاعتداء عليها.

ثانياً: يجوز التصرف في الاسم التجاري أو العنوان التجاري أو العلامة التجارية ونقل أي منها بعوض مالي إذا انتفى الغرر والتدليس.

اول : تجارتي نوم او نښان ، د کتاب ليکل ، اختراع او ابتکار خاص حق دی د هغه څښتنانو لره ، هغه لره په معاصر عرف او رواج کې خاص حيثيت او اعتبار دی د خلکو د تمويل د پاره ، دا حقوق په شريعت کې د توجه وړ او په هغه باندې د چا تجاوز يا تصرف کول جايز نه دي.

دوهم : په تجارتي نوم او نښان کې تصرف او يا د هغه نقلول بل کس ته د مالي عوض په بدل کې جايز دي په شرطددې چې چل او فريب پکې نه وي.

يعنې يو کس د خپل شرکت نوم او نښان يا جواز د مال په بدل کې بل کس ته ور تسليمولی شي چې هغه يې مالک وګرځي.

همدارنګه د کتاب په چاپ او هغه څخه کټه پورته کولو کې هيڅوک حق نه لري مګر د مال په بدل يا د هغه په اجازه بل کس ته د چاپ او ګټې سپارل جايز دي.

علامه وهبة الزحيلي ليکي :

لقد دلت الاحكام الفقهية فی المذاهب علی أن منفعة الحقوق المعنوية كالأعيان تعد مالاً ، و داخلة في الملک ، ويحرم الاعتداء عليها او انتحالها او سرقتها.

يعنې : په مذاهبو کې فقهې احکام په دې باندې دلالت کوي چې :د معنوي حقوقو منفعت د مال حکم لري او ملک بلل کيږي ، په هغه باندې حمله کول او ادبي غلا کول حرام دي.

همدارنګه د معنوي څيزونو لکه : اختراع ، تأليف او نورو بيع جايز ده

دوکتور وهبة الزحيلي زياتوي :

و قد قرر الحنفية جواز کل ما له منفعة.

يعنې : احنافو د ټولو هغو شيانو بيع جايز ګرځولې ده کوم چې د منفعت او او ګټې اخيستنې وړ وي (المعاملات المالية المعاصرة – وهبة الزحيلي ص ۵۸۲ ).

**بيع السهام (د حصو خرڅول او اخيستل) :**

پخوا زمانه کې به چې شرکت تر سره کيده دوه يا څو کسانو به پکې کډون کولو خو د تيرو دوو دريو بېړيو راهيسې يو نوی صورت وجود ته راغلی دی چې د ډيرو کسانو يا څو شرکتونو يو ځای کېدل دي چې (Joint Stock) يا کمپنۍ ورته وايي او ددې شرکتونو او کمپنيو په کار بار کې دا نوی مسئله هم را پيدا شوی ده چې د دغو کمپنيو د حصو پلورل او رانيول په ټوله نړۍ کې مروج دي.

حصه چې په عربي کې ورته (سهم) او په انګليسي ورته (share) وايي د يوې کمپنۍ په اثاثاتو کې د ملکيت د يوې متناسبې حصې څخه عبارت ده.

د کمپنۍ د حصو يا أسهامو بيع په لاندې شرطونو جايز ده :

۱- کمپنۍ به په حرام کار بار ملوثه نه وي او نه به هم په حرامو کارونو کې مرسته کوونکي وي لکه : سود ، د شرابو تولید او داسې نور چې شرعاً حرام وي.

۲- کمپنۍ به د تجارتي بیمه معاملات نه تر سره کوي ځکه چې د بیمې په معامله کې جهالت ، فریب ، قمار او سود دی.

جاء في فتاوي اللجنة الدائمة :

يجوز للإنسان أن يساهم في هذه الشركات إذا كانت لا تتعامل بالربا ، فإن كان تعاملها بالربا : فلا يجوز ، وذلك لثبوت تحريم التعامل بالربا في الكتاب والسنة والإجماع.

وكذلك لا يجوز للإنسان أن يساهم في شركات التأمين التجاري ؛ لأنَّ عقود التأمين المشتملة على الغرر والجهالة والربا : محرَّمة في الشريعة الإسلامية.

(اللجنة الدائمة فتوى رقم ١٥٢٦).

۳- شیخ محمد تقي عثماني په البحوث کې دا شرط زیاتوي چې : د کمپنۍ ټول اثاثات به د نغدو په شکل نه وي بلکي د ځای پر ځای شوي سامان او ملکیت لکه : ودانۍ ، ځمکه او داسې نورو درلودونکي به وي.

**بدل الخلو (د مکانونو او دوکانونو سرقفلي) :**

سرقفلي چې په عربي کې ورته (الخلو) وایي یعنې د جایداد خالي کول ، اهل عراق یې (السرقفلية) بولي چې فارسي کلیمه ده ، اهل شام یې (الفروغ) بولي او اهل مصر یې (المفتاح) بولي.

په ځینو سیمو کې د دوکانونو او مکانونو د سرقفلي بیع رواج لري ، سرقفلي په یو مکان یا دوکان کې د حق قرار نوم دی ، داسې چې مالک د خپل مکان یا دوکان د اوږدې مودې لپاره په کرایه ورکوي او د کرایې څخه پرته څه اندازه روپۍ د سرقلفۍ په نوم اخلي.

كرايه دار د سرقلفۍ په ورکولو سره ددې حقدار جوړيږي چې کرايه داري تر اوږدې مودې پورې پاتې شي وروسته ډير ځل کرايه دار خپل دغه حق دوهم کرايه دار ته هم انتقالوي.

**د سرقفلي په باره کې د فقهاؤ تر مينځ اختلاف دی :**

ځينې فقهاء لکه : له احنافو څخه ابن نجيم او العمادي او د مالکيه څخه ناصر الدين اللقاني يې جايز بولي.

الأشباه والنظائر: ابن نجيم (١٠٤). رد المحتار: ابن عابدين (٤/ ٥٢١).. فتح العلي المالك: عليش (٢/٢٤٩).

او ځنې فقهاؤ يې په عدم جواز فتوی ورکړي لکه :الشرنبلالي حنفي ،الحموي او ابن عابدين او الشيخ عبد الواحد بن عاشر (مفيدة الحسنى في دفع ظن الخلو بالسكنى: الشرنبلالي -٧٧).

مجمع الفقه الاسلامي د کنفرانس په څلورمه ناسته کې د سعودي عربستان د جدې په ښار کې د جمادي الآخر ١٤٠٨ کال کې د بدل الخلو په باره کې داسې پرې کړه کړې ده :

**أولاً:** تنقسم صور الاتفاق على بدل الخلو إلى أربع صور هي:

١. أن يكون الاتفاق بين مالك العقار وبين المستأجر عند بدء العقد.
٢. أن يكون الاتفاق بين المستأجر وبين المالك وذلك في أثناء مدة عقد الإجارة أو بعد انتهائها.
٣. أن يكون الاتفاق بين المستأجر وبين مستأجر جديد، في أثناء مدة عقد الإجارة أو بعد انتهائها.
٤. أن يكون الاتفاق بين المستأجر الجديد وبين كل من المالك والمستأجر الأول، قبل انتهاء المدة، أو بعد انتهائها.

**ثانياً:** إذا اتفق المالك والمستأجر على أن يدفع المستأجر للمالك مبلغاً مقطوعاً زائداً عن الأجرة الدورية – وهو ما يسمى في بعض البلاد خلواً - فلا مانع

شرعاً من دفع هذا المبلغ المقطوع على أن يعد جزءاً من أجرة المدة المتفق عليها، وفي حالة الفسخ تطبق على هذا المبلغ أحكام الأجرة.

**ثالثاً:** إذا تم الاتفاق بين المالك وبين المستأجر أثناء مدة الإجارة على أن يدفع المالك إلى المستأجر مبلغاً مقابل تخليه عن حقه الثابت بالعقد في ملك منفعة بقية المدة، فإن بدل الخلو هذا جائز شرعاً، لأنه تعويض عن تنازل المستأجر برضاه عن حقه في المنفعة التي باعها للمالك.

أما إذا انقضت مدة الإجارة، ولم يتجدد العقد، صراحة أو ضمناً، عن طريق التجديد التلقائي حسب الصيغة المفيدة له، فلا يحل بدل الخلو، لأن المالك أحق بملكه بعد انقضاء حق المستأجر.

**رابعاً:** إذا تم الاتفاق بين المستأجر الأول وبين المستأجر الجديد، في أثناء مدة الإجارة، على التنازل عن بقية مدة العقد، لقاء مبلغ زائد عن الأجرة الدورية، فإن بدل الخلو هذا جائز شرعاً، مع مراعاة مقتضى عقد الإجارة المبرم بين المالك والمستأجر الأول، ومراعاة ما تقضي به القوانين النافذة الموافقة للأحكام الشرعية.

لا يجوز للمستأجر إيجار العين لمستأجر آخر، ولا أخذ بدل الخلو فيها إلا بموافقة المالك.

أما إذا تم الاتفاق بين المستأجر الأول وبين المستأجر الجديد بعد انقضاء المدة فلا يحل بدل الخلو.

ژباړه :

اول : په بدل الخلو (سرقفلي) کې د اتفاق لاندې څلور صورتونه دي :

١- دا چې د جايداد مالک او اجاره دار به د تړون په شروع کې سره متفق وي.

٢- دا چې د جايداد مالک او اجاره دار به د اجارې د مودې د عقد پر مهال او د مودې په ختم کې سره متفق وي.

۳- دا چې لومړی اجاره دار او نوی اجاره دار به د اجارې پر مهال او د تړون په پای کې سره متفق وي.

۴- دا چې د نوي اجاره دار ، مالک او اول اجاره دار به د اجارې د مودې څخه مخکې او وروسته سره متفق وي.

دوهم : کچېرې مالک او اجاره دار په دې سره متفق شول چې : اجاره دار به مالک ته د میاشتنې کرایې علاوه څه مبلغ ورکوي چې هغه ته په ځینو ښارونو کې بدل الخلو (سرقفلي) وایي نو دا شرعي ممانعت نه لري ، دغه دې د یوې مودې اجرت وګرځي په کوم چې دواړه متفق دي ، او د فسخې په حالت کې پر دغه مبلغ باندې د اجارې احکام جاري کېږي.

دریم : کچېرې مالک او اجاره دار د اجارې پر مهال باندې په دې متفق شي چې مالک اجاره دار ته څه مبلغ ورکړي او اجاره دار د خپل ثابت حق څخه تیر شي یعنې د اجارې د تړون د پاتې مودې له استفادې کولو څخه نو دغه سرقفلي به شرعاً جایز وي ځکه چې دا د عوض په مقابل کې د اجاره دار په خوښه د خپل حق څخه لاس اخیستل دي د هغه منفعت چې په مالک یې پلورلی.

څلورم : که د لومړي اجاره دار او نوي اجاره دار د اجارې په موده کې په دې باندې توافق وشو چې : لومړي اجاره دار د تړون د پاتې مودې څخه تیرېږي او د میاشتنې کرایې څخه علاوه مبلغ اخلي نو دغه سرقفلي هم شرعاً جایز ده د اجارې د تړون د شرایطو په نظر کې نیولو سره کوم چې د لومړي اجاره دار سره شوي وي او د اسلامي شریعت د قوانینو په نظر کې نیولو سره.

د اجاره دار د پاره دا جايز نه ده چې په عين اجاره يې بل اجاره دار ته ورکړي او نه هم په دې کې د سرقفلی اخيستل جايز دي مګر دا چې د مکان د مالک اجازه وي.

مګر که د لومړي اجاره دار او نوي اجاره دار تر مينځ د مودې پوره کيدو ورسته اتفاق شوی وي نو په دې صورت کې د سرقفلی اخيستل جايز نه دي.

مفتي محمد تقي عثماني په البحوث کې د سرقلفۍ په معامله اوږد بحث کړی دی او د سرقلفۍ د رقم اخيستلو په باره کې يې د ناروالي قول صحيح بللی دی ځکه دا معامله د اسلامي شريعت له هيڅ ډول معاملې سره سر نه خوري او مالک ته د کرايې نه علاوه د سرقلفۍ اخيستل رشوت او ناروا دي (البحوث ج ۱ ص ۲۰۱).

عثماني صاحب زياتوي البته د سرقفلي په مروج نظام کې لاندې بدلونونه راتلای شي :

۱- د جايداد د مالک لپاره دا رواه ده چې هغه د کرايه دار څخه په يو خاصه اندازه کې يک مشت رقم (سرقفلي) واخلي او د معلومې مودې پيشکي کرايه يې دې وګڼي ، دغه يک مشت رقم د کلنی او مياشتنۍ کرايې څخه علاوه وي. په دغه يک مشت رقم باندې د کرايې ټول احکام جاري کيږي. کچېرې د يو سبب په وجه اجاره فسخه شي په مالک باندې واجبه ده چې د اجارې د پاتې مودې يک مشت رقم هر څومره چې کيږي بيرته ورکړي.

۲- که اجاره د معلومې مودې لپاره وي نو د مودې د پوره کېدو مخکې د اجارې فسخه کول صحي نه دي ، کچېرې يو بل کس دا وغواړي چې کرايه دار له خپل حق څخه لاس واخلي او دی يې پر ځای باندې کرايه دار جوړ شي نو د لومړي کرايه دار د پاره دا رواه ده چې د نوي کرايه دار څخه د عوض غوښتنه وکړي او د لومړي کرايه دار لپاره دغه عمل د حق کرايه دارۍ څخه د عوض په مقابل کې لاس اخيستل دي او ځکه جواز لري چې

قیاس یې پر هغو وظایفو دی د کومو څخه چې سړی د مال په بدل کې لاس اخلي.

خو د جواز لپاره یې دا شرط دی چې اصل کرایه داري به د معلومې مودې لپاره تر سره شوې وي مثلاً د لسو کلونو لپاره او د لسو کلونو مخکې به لومړی کرایه دار د خپل حق نه تیرېږي.

۳- کچېړې اجاره د معلومې مودې لپاره وي نو د مکان د مالک لپاره روا نده چې د شرعي عذر پرته اجاره فسخه کړي ، که داسې وکړي نو اجاره دار ته د خپل حق څخه د تیرېدو د غوښتلو حق شته.

(البحوث مفتي محمد تقي عثماني ، د مکانونو او دوکانونو سرقفلي).

## لسم فصل
## د بانک له لارې معاملات

**په سر کې څو خبرې :**

**گرانو وروڼو او خوندو !**

مونږ او تاسې وينو چې په ټولنه مو شيطاني بازار يرغل کړی دی او ورو ورو په ټولنه کې دغه شيطاني بازار يا نا رواه معاملات زور اخلي. پخوا مو هم د بانک ليارې حرامو معاملاتو په اړه پوره پوره وضاحت بيان کړی ؤ او ددې شيطاني بازار د سود او قمار د معاملات د حرمت په اړه مو ټولنې ته خبرداری ورکړی دی.

اوس غواړو تاسې ته د بانکدارۍ په اړه لنډ بيان خپور کړو.

لومړی په عمومي ډول بانکداري تر څېړنې لاندې نيسو بيا د بانکدارۍ حرام معاملات او وروسته اسلامې بانکداري او د هغه اصول تر څېړني لاندې نيول شوی دي.

تر څو خلک د بانک په حرامو معاملاتو ښه پوه شي او وروسته په دی هم پوه شي چې اسلامې بانک څه ډول وي.

**بانکداري (Banking) :**

**د بانك تعريف** : بانك عبارت له هغه تجارتي ادارې څخه دی چه په هغه کي د خلکو روپۍ په بېلا بېلو شکلونو سره راټوليږي او همدغه پيسې د نوموړې ادارې له خوا نورو افرادو،شرکتونو او صنعت کارانو ته د تجارتي چارو د پرمخ بيولو په عرض ورکول کيږي، يا په بل عبارت :بانک يوه مالي اداره ده چې اساسي دنده يې د امانت په توگه دپيسو ترلاسه کول او بيرته ځينې نورو وگړو ته د پور په ډول د پيسو ورکول دي.

**د بانك تاريخ :**

په تيرو وختونوکې تجارتي تعامل او د خلکو پيرودل او پلورل داسي ؤ چه خلکو به خپلې طلاوې يا سره زر په امانت ډول صرافانو ته ايښودل او په بدل کي يې له صرافانو څخه رسيد اخستلو وروسته ورو ورو د خلکو معاملات دهمدغه رسيداتو په اساس تر سره کېدل او خلکو به په ډيره لږه پيمانه د خپلو سرو زرو د اخيستلو لپاره صرافانو ته مراجعه کوله نوکله چه صرافانو دغه حالت وليده نو هغوي هم نورو خلکو ته په قرض سره د سرو زرو ورکول پيل کړل، نو دا چه په کلي توگه د خلکو معاملات د رسيداتو په واسطه ترسره کېدل نو صرافانو هم خپلو قرضدارانو ته د سرو زرو په ځاي رسيدات ورکول نو په دې اساس يوه منظمه اداره مينځته راغله چه له خلکو څخه يې د سرو زرو رسيدات اخيستل او نورو ته به يې د قرض په ډول ورکول نو ورو ورو کله چه ورقې مينځته راغلې نو د رسيداتو هماغه تعامل وربانديې تطبيق شو چه په پاى کې د بانك اداره مينځته راغله، (اسلام او نوى تجارت / محمد تقي عثماني ص،۱۱۵).

بانك خلکو ته په دې سره دعوت ورکوي ترڅو چه خپلې پيسې په امانت ډول سره دغه اداري ته وسپاري چه په عربي ژبه کې ودايع بلل کيږي او په انگليسي ژبه کي ورته Deposit وايي.

**د بانک حسابونه :**

خلك چه په بانکونو کې خپلې پيسې اچوي نو د خپل حسابي تعامل په اساس هغه په بانك کي جمع کوي چه عمده اومهم يې لاندي درى ډوله حسابونه دي:

۱- جاري حساب ۲- پس انداز حساب ۳- ثابت حساب

**۱- جاري حساب(Current Account):**

جاري حساب چې په عربي کې (حساب الجاري) بلل کيږي هغه حساب ته وايي چه کومي پيسې په دغه حساب کې جمع کيږي نو د بانك خاوند د پيسو خاوند ته ګټه نه ورکوي او د پيسو خاوند هم هرکله چه وغواړي او په هر مقدار سره كه وغواړي البته دخپل حساب مطابق له بانك څخه پيسې اخستلی شي او بانك په هغه پيسو باندې کار وبار کوي. (اسلام او نوی معيشت اوتجارت،ص١١٦).

**۲- پس انداز حساب(Saving Account):**

پس انداز حساب چې په عربي کې ورته (حساب التوفير) وايي يو سودي حساب دی چې بانک د پيسو مالکانو ته د ځينې شرايطو پر اساس د سلني له مخې ګټه ورکوي.

**۳- ثابت حساب(Fixed Deposit):**

ثابت حساب چې په عربي کې ورته (ودائع ثابتة) وايي عبارت له هغه حساب څخه دی چه څوك په بانك کې په نوموړي حساب کې خپلې پيسې جمع کوي د يوه تړون په اساس ترټاكلي وخت پورې هغه په بانك كي ايږدي او د ټاكلي وخت له پوره كيدو وړاندې نشي كولای خپلې پيسې له بانك څخه واخلي او د بانك له طرفه هم ورته د ټاكلې سلنې له مخې ګټه تاديه كيږي.

کله چه د دغه دريو حسابونه په چوکاټ کي پانګه په بانك کي جمع شي نو بانك د دغه پانګې يوه برخه په مرکزي بانك (State Bank) کې جمع کوي او مرکزي بانك دغه پانګه په عمومي ډول سره په داسې كارونو کې په قرض ورکوي چه د ضرورت په صورت کې د هغه پيسو نغدول آسانه وي او له هغه څخه دفيصدي په بنا ګټه هم اخلي.

ددې حسابونه څخه علاوه نور حسابونه هم شته او په نوي ډول سره افتتاح شوي دي لکه د قسمت يا بخت حساب چې د قمار معامله ده او داسي نور.

**دبانك دندې :**

په بانك کې د پانګې له جمع کولو وروسته بانك د ځينو وظايفو لکه تحويل، د زرو تخليق او نورو باندې پيل کوي چه دلته د بانك د ځينو وظيفو په روښانوالي او وضاحت باندې پيل کوو.

**تحويل (Financing) :**

د بانك تر ټولو مهمه وظيفه تحويل يعنې دخلکو بډايه کول دي چه هغه تجارانو ته چه لويې پروژې يې په لاره اچولې وي او نورو صنعتکارانو او با اعتباره شرکتونو ته قرض ورکوي، دغه قرضونه کله اوږد مهاله وي چه دغه راز قرضونو ته په عربي ژبه کي (ائتمان طويل المدت) او په انګليسي ژبه کې(LongTerm Credit) وايي او کله هم دغه قرضونه لنډ مهاله وي چه په عربي ژبه کي دغه راز قرضونوته (ائتمان قصير المدت) او په انګليسي ژبه کي ورته (Short TermCredit) وايي .

**بانك خلکوته په درى ډوله قرض ورکوي :**

١- د ورځنيو تجارتي کارونو لپاره مثلاً د بلونو د ادا کولو او مامورينو د معاشاتو او نورو کارونو لپاره.

٢- د تجارتي کارونو د اخراجاتو د تنظيم لپاره مثلاً د تجارتي سامان آلاتو د اخيستلو لپاره چه هغو ته په عربي ژبه کي د (تمويل المشاريع) او په انګليسي ژبه کي ورته (Project Financing) وايي.

**د زرو تخليق:**

د بانك د مهمو وظيفو څخه بله وظيفه د زرو تخليق دی د زرو تخليق د اعتبار د جوړولو په معنی دی ځکه چه په ابتدا کې بانکونو د رسیداتو د ترویج په زیادت کې مهم رول درلود ددې موضوع وضاحت داسي دی چه په پخوا وختونو کې تعامل داسې ؤ چه خلکو به چه په هره اندازه پیسې په لاس راوړلې نو یوه لږه اندازه د هغه پیسو به یې له ځانه سره ساتلې او پاتې ټولې پیسې به یې په بانك کي جمع کولې کله به چې د چا پیسو ته ضرورت پیدا شو نو بانك به هغه ته نغدې پیسې نه ورکولې بلکه د بانك خاوند به اړکس ته دهغه د پیسو په مقابل کې په بانك کي حساب پرانستلو او هغه ته به یې چك ورکولو تر څو چه د ضرورت په مهال په ورځنیو تجارتي معاملاتو کې نوموړی چک وکاروي مثال که کوم چا له بانك څخه د سل زره افغانیو په اندازه قرض اخیسته نو بانك به د سل زره افغانیو په ځای هغه ته د سل زره افغانیو چك ورکولو نو وروسته به دغه کس چه له بانك څخه یې چك تر لاسه کړی دی د شي د اخستلو پر مهال همدغه چك کاراوه او خپل ضرورت یي رفع کولو.

**د تمویل په اعتبار د بانك ډولونه:**

بانکداري څو قیسمونه لري چې ځینې یې په ځینو معینو برخو کې تمویل کوي او ځنې یې په عامه برخو کې کار کوي چې لاندې ډولونه لري :

۱ـ **کرهنیز بانک** : گرهنیز بانک عبارت له هغه بانک څخه دی چې دکرهنې په برخه کې خلکو ته پور ورکوي.

۲ـ **صنعتي بانک** : د صنعتي بانک وظیفه د صنعتي ترقۍ لپاره تیاری نیول او د پیسو دقرض ورکول دي.

۳ـ پراختیایې بانک : پراختیایې بانک عبارت له هغه بانک څخه دی چې خلکو ته د پراختیایي چارو د پرمخ بیولو لپاره پور ورکوي.

۴ ـ **تعاوني (مرستندوی) بانک** : مرستندوی بانک د مرستې او امداد په خاطر تاسس شوی دی او د نومورې بانک کار اوبار د هغه تر غړو پورې محدود وي يعنی يوازې هغه کسان چې د بانک مؤسسين دي کولای شي چه په دغه بانک کې حساب پرانيزي پور واخلي او يا پور ورکړي.

۵ ـ **استثماري بانک** : د استثمار کلمه په بېلابېلو هيوادو نو کې په بېلا بېلو مفاهمو سره ده چه دلته له هغه څخه مراد هغه بانک دی چه په هغه کې د پيسو حساب د يوې ټاکلې مودې لپاره وي ، عمومی او پس انداز حسابونه هلته نشي جاري کېدای او تنها ثابت حساب پکې د اجرا وړ دی او د نومورې بانک پورونه هم د معينې مودې لپاره وي او همدارنگه لنډ مهال پورونه هم هلته د اجرا وړ نه وي.

٦ ـ **سوداگريزه بانک** : سوداگريزه بانک له هغه بانک څخه عبارت دی چه د عمومې تمويل چارې پر مخ بيايي په کومه معينه څانگه پورې تړاو نه لري او هرې ادارې او پروژې ته پور ورکولای شي .

۷ ـ **مرکزي بانک** : مرکزی بانک د يو هيواد د مهمو ادارو له ډلې څخه يوه اداره ده چه د ټولو بانکونو څارونکی او نظارت کونکی وي. مرکزي بانک د هيواد په مالي او اقتصادي نظام کې مهم رول لري. مرکزی بانک په مختلفو هيوادونو کې په مختلفو نومونو سره يادېږي مثلاً په افغانستان کې (د افغانستان بانک) په پاکستان کې (استيټ بانک آف پاکستان) په بريتانياکې (بينک آف انگلينډ) او په هند کې ((اردو بانک آف انډيا) په نومونو سره يادېږي.

**د مرکزي بانک دندې :**

مرکزي بانک بېلابېلې دندې تر سره کوي چې ځينې يې په لاند ډول دي.

۱ ـ دا چې مرکزي بانک حکومتي بانک دی نو په دی اساس د حکومت ټولی پیسې هلته ذخیره او حکومت ته دحکومت د پیسو په مقابل کې ګټه نه ورکوي او د اړتیا په وخت کې حکومت ته سودي قرض هم ورکوي.

۲ ـ مرکزي بانک د حکومت د ټولنیز او اقتصادي تکلیارې سلا کار (مشاور) دی.

۳ ـ مرکزي بانک زر ذخیره کوي ، پیسو ته ارزښت ورکوي او د اړتیا په وخت کې د زرو اجرا هم کوي.

۴ ـ نور بانکونه د خپلو فعالیتونو د اجازې لپاره د مرکزي بانک څخه جواز پاڼه اخلي.

## اسلامي بانکداري

### د اسلامی بانکدارۍ تعریف:

اسلامي بانک عبارت له هغه اداري او مؤسسې څخه دی چه په پیسو باندې د اسلامي شریعت د احکامو او بنسټېزو اصولو د التزام په اساس عمل کوي او په مالونو باندې د اسلامي شریعت مطابق استثمار او تجارت کوي او موخه یې د اقتصاد وده او دسود (ربا) د سترې گناه څخه د پاکې یوی سالمې ټولنې جوړېدل وي (المعاملات المالية المعاصرة وهبة زحيلى ص ٥١٦).

### د اسلامی بانکدارۍ تاریخ :

اسلامي بانکداري په نږدې وخت کې ظهور کړی دی مگر ډیر زیات پرمختگ یې کړی دی چې نړیوال یې په تعجب کې اچولي دي.

د اسلامي بانکدارۍ جوړولو د پاره لومړی گام په کال د ۱۹٦۳ په مصر کې پورته شو.

وروسته په کال د۱۹۷۳ د اسلامي هیوادونو د کډ کنفرانس لخوا د عربستان په جده کې د اسلامي پراختیایي بانک (IDB) په نوم بانک جوړ او په کال د ۱۹۷۵ رسماً په کار پیل وکړ ، همدارنگه د ۱۹۷۵ عیسوي کال د مارچ د میاشتې په دولسمه نیټه د ۵۰ میلیونه درهمو په سرمایه د الحاج محمد سعید لوتاه.او د هغه د شریکانو په واسطه په دبۍ کې تاسیس شو او وروسته ۱۹۷۷ د فیصل په نوم بانک په سوډان کې جوړ شو او همدانگه په دې کال کې په همدې نامه بانک په مصر کې جوړ شو او په ۱۹۷۹ کال کې د بحرین اسلامي بانک جوړ شو او وروسته نور اسلامي بانکونه جوړ شول چې اوس مهال د نړۍ تر پنځوسو زیاتو هیوادونو کې فعالیت کوي دغو اسلامي بانکونو په خپل کار او عمل کې دپام وړ پرمختگ وکړ او د اسلامي شریعت د احکامو مطابق یې زیات گټه لرونکي مفید او د پام وړ خدمتونه تقدیم کړل.

**د اسلامي بانک ځانګړتیاوې :**

اسلامي بانکونه د یو لړځانګړتیاؤ لرونکي دي چه د دغه ځانکړتیاوؤ په واسطه له سودي او غربي بانکونو څخه متمایز او جلا کیږي او دغه ځانګړتیاوې د اسلامي شریعت له نظام او په اقتصاد او اجتماع کې د هغه د لوړو موخو سره موافقې دي چه په لاندې ډول سره بیانیږي.

**۱ـ د صحیح آزاد او خپلواک اقتصادي سیستم جوړول :**

سودي بانکونه له سرمایه داري نظام سره پیاوړې اړیکه لري چه په دې اساس سره دنړیوال صهیونستانو هیلی پوره کیږي .

سرمایه داري نظام چې په احتکار او ظلم باندې ولاړ دی یوه طبقه یې شتمنه کړې او په غریبانو او فقیره طبقه باندې په اقتصادي مسایلو کې حاکمیت کوي او اکثره خلک په فقر او اقتصادي تنګی کې اچوي .

په بانکونو کې ربوی نظام چه د بانک د مالکانو او نورو وګړو او شرکتونو ترمنځ ترسره کیږي داسې دی چه سودي بانک خپل مشتري ته یو څه سلنه ورکوي لکه ۴سلنه او داسې نور ورکوي او له نورو شرکتونو او افرادو څخه هغه چه بانک هغوی ته قرض ورکړي زیاته سلنه ګټه اخلي او بالاخره د دغه بانکونو ګټه او فایده چه دټولو خلکو له پور څخه ترلاسه شوې دکفارو او اسلام دوښمنو جیب ته لوېږي چه هغوی د همدغه پیسو په وسیله د مسلمانانو په وړاندې مورچل نیسي نو اسلامي بانکونه کولای شي د یو عادل اقتصادي سیستم په جوړولو سره د سود او سود خوړلو دلارې خنډ وګرځي او خلک او ټولنه له اقتصادي ترور څخه خلاص کړي.

د اسلامي بانک له ګټو، ښه والی او آثارو څخه یو هم دشلمې پیړۍ په څلورمه برخه کې دا ده چې د اسلامي بانکونو په ذریعه یو سالم اقتصادي

نظام مینځ ته راغلی او د غربي دولتونو له وساطت څخه پرته یې د اسلامي دولتونو تر مینځ پیاوړې اړیکه ټینګه کړې .

**۲ ـ د عادل او شامل اقتصادي نظام په پښو درول :**

د اسلامي بانکونو دوهمه ځانګړنه او امتیاز دا دی چه په اسلامي بانکونو کې د شریکانو ترمنځ د ګټې تقسیم د عدالت په بنسټ ولاړ او ګټه او نفع یې عامه او شامله ده.

سودي بانکونه داسې دي چې د هغوی ګټه یوازې سرمایه لرونکو خلکو ته له کوم زحمت او تکلیف ګاللو پرته رسېږي او په عین حال کې هغوی ته کوم تاوان او خساره هم نه رسېږی (البته د تاوان د موجودیت په صورت کې).

له شرکانو سره د اسلامي بانکونو په تعامل کې د عدالت وجه واضح او معلومه ده هغه دا چې د اسلامي بانکونو ګټه او نفع خلکو او ټولنې ته رسېږي او د هغوی شعار دا دی چې ګټه باید دټولنې د وګړو د خیر لپاره وي.

په اسلامي بانکونو کې دګټې ویش کوم چې له تجارت او مضاربت څخه په لاس راغلې وي معین او محدود نه وي بلکه دګټې په تناسب ګټه دبانک او برخوالو ترمنځ له تحدید پرته په عادلانه ډول تقسیمېږي هغه ګټه که لږ وي که ډیره.

**۳ ـ په مشروع طریقه استثماري تمویل ته پراختیا ورکول :**

ډیر مسلمانان له ربوي بانکونو سره نه تنها دا چه د ربا او د هغه په آفتونو باندې دککړتیا له ویرې څخه بلکه په شبهاتو باندې دککړتیا له ویرې د داسې بانکونو سره له معاملې کولو څخه ډډه کوي او خپل مالونه له خپل ځان سره ساتي چې په دغسې حالت کې د هغوی پیسې له کار او استثمار څخه پاتې کیږي اسلامي بانکونه له دغه مشکل څخه د وتلو لپاره غوره لارې لري او له دغه لارو څخه خلک کولای شي خپل مالونه په مشروع ډول په کار واچوي.

د اسلامي بانکونو له لارې خلک کولای شي چې دخپلو کارونو څخه په دوه مهمو او اقتصادی چارو کې د اسلام په رڼا کې پریکړه وکړي .

**اول : ادخار (ذخیره) :**

ادخار او دنغدو مالونو ذخیره کول دفرد او ټولنې لپاره ګټور او تاثیر لرونکي دي د ادخارو او مالونو په ذخیره سره ټولنه او اقتصاد ښه والی او وده کوي او د هیواد دترقۍ سبب ګرځي.

په بانکونو کې د مالونو په ذخیره کولو سره له ډیرو سیاسي او ټولنیزو مشکلاتو مخ نیوی کیږي او له ټولو نه مهمه دا ده چه په اسلامي بانکونو کې د مالونو په ذخیره کولو سره غرب او سودي بانکونو ته دپیسو د ورتګ مخه نیسي او د اسلام دښمنانو ته دګټې د ورتګ مانع ګرځي.

په اسلامي بانکونو کې د مالونو په ذخیره کولو اسلامي ارزښتونه زیاتیږي او په وګړو کې دمرستې او باور او مینې روح ته ځواک ورکوي .

**دوهم : د تمویل او سوداګرۍ پراختیا :**

په اسلامي بانکونو کې د مالونو ایښودل او په مشروع سوداګرۍ باندی د مالونو په کار اچول په سوداګریزه،کرهنیزه او صنعتي فعالیتونو کې مهم رول لري او اسلامي ټولنه د هغه په وجه آباده او رغیږي اسلامي معنوي سطحه لوړیږي او په عین حال کې په دغه کار سره د غرب او سودي بانکونو له پیروی څخه ډډه کیږي او اسلامي ملت او وطن په پیاوړې او بنسټیزه توګه رغول کیږي.

او په اسلامي بانکونو کې د مال په کار اچولو سره د فقر ، ناپوهۍ ، ناروغتیا دعواملو او نورو بدبختیو په وړاندی کلکه مبارزه کیدای شي چې په دې کار سره اقتصادي آزادي او حریت تحقق پیدا کوي.

**۴ ـ دبې ګټې او غیر طبعي رشد مخ نیوی :**

د اسلامي بانکونو بله ځانګړنه له تورم او بې ګټې غیر طبعي رشد څخه مخنیوی دی.

**د اسلامي بانک موخې :**

**له تیرو مبحثونو څخه داسې معلومیږي چه اسلامي بانکونه دری عمده موخې لري:**

۱- په موجوده اقتصادي او تجارتي معاملاتو کې په ځانګړی توګه په نغدي او جنسي بانکي معاملاتو کې د اسلامي شریعت د احکامو پلي کول.

تر څو چې د راکړې ورکړې په معاملاتو کې له ربا او سود څخه ډډه وشي چه پخپله دغه هدف د اسلامي امت لپاره مهم او لوړ مقصد او موخه ده هغه امت چه د مشروع احکامو پلي کېدل د هغوی دعقیدې بنسټ دی او د ژوند په ټولو برخو کې د شرعي احکامو پلی کېدل غواړي او د دین او دولت تر منځ جلاوالی او فاصله باطله او لغوه ګڼي.

۲- په مشروع طریقه د بانکي خدمتونو تجارتي او استثماري چارو په واسطه د ټولنې رشد او تقویه کول. ادخار او د مالونو ذخیره کولو ته پاملرنه، له هغه عادلانه ګټې څخه چې له مالونو څخه په لاس راغلی وي د مباح پروژو د تمویل لپاره د لارو برابرول او د بې وزلو حال ته پاملرنه او اهتمام.

۳- د مسلمانانو د مالونو په کار اچولو سره د بانک او عامل تر مینځ د مشترکې ګټې تحقق په داسې شکل چې بانک عملاً د مسلمانانو په مالونو باندې کار وکړي یا دا چې بانک دغه مالونه نورو سوداګرو او عاملینو ته ورکړي او له هغه څخه ګټه ترلاسه کړي.

په هغه صورت کې چه کومه خساره وارده شي نو یوازې د مال او ودیعت څښتن به د هغه تحمل کوي او بانک یوازې د خپل عمل او کوښښ د خسارې

متحمل کیږي او دغه حالت د مضاربت او شرکت په اساس صورت نیسي (معاملات المالية المعاصرة / دکتور وهبه الزحيلی ص ۵۲۰ـ ۵۲۱.).

**په عمل او استثمار کې د اسلامی بانکونو وسایل :**

تجارتي سودي بانکونه داسې عمل کوي چه له خلکو څخه پیسې اخلي او نورو ته یې په قرض ورکوي دغه بانکونه له نورو څخه سود اخلي او خپلو ګډونوالو ته هم سود ورکوي ګډونوالو ته ډیرې کمې پیسی ورکوي او له هغو څخه کومو ته چې دوی قرض ورکړي زیاتې پیسی په ګټه اخلي او په همدې ډول خپل استثماري کارونه په لاره اچوي.

کومې پیسې چه په ربوي بانکونو کې جمع کیږي په بېلابېلو طریقو سره لکه جاری حساب، پس انداز حساب او بخت حساب څخه په لاس راوړي. مګر اسلامي بانکونه لکه چه مخکی مو وویل هغه اعمال او معاملات تر سره کوي چه د اسلامي شریعت له احکامو سره موافق او د خلکو او ټولنې لپاره ګټه رسونکي وي مثلاً وړیا کوچني او غټ حسنه قرضونه ، شرعي صرافي او داسې نور تجارتي او استثماري معاملات چه ټول له سود او ربا څخه لرې او په اسلامي احکامو او تقوای باندې ولاړ وي .

د بانکونو د ټولو تعاملاتو لکه پټه او ښکاره ربا (عقود الغرر) ،(متردد عقود) مثال له قبض څخه وړاندی د څه شي خرڅول ، دبانک نوټونو پلورنه او دبدلینو له جملې څخه د یوه له قبض څخه وړاندې صرافي او داسې نورو څخه پاک وي په اسلامي بانکونو کې د اسلام او شریعت له احکامو سره د خلکو په جمع شوؤ پیسو باندې عمل او معامله کیږي.

**۱ـ مستقیم او مباشر استثمار :**

مستقیم او مباشر استثمار داسې تر سره کیږی چه پخپله دغه اسلامي بانک عمل او تجارت تر سره کوي. له خپلی سرمایې څخه شرکتونه جوړوي او

د نورو په نيابت د هغوی په پیسو باندې کار کوي او لويې او موهمې پروژې تمويلوي.

چه په دغه صورت کې اسلامي بانک د عامل او مضارب حيثيت خپلوي او مودعين او هغه کسان چې خپل مالونه يې په بانک کې جمع کړی د رب المال حيثيت خپلوي.

**۲ ـ غيرمستقيم استثمار :**

د اسلامي بانکونو غير مستقيم استثمار داسې تر سره کيږي چه بانک د پيسو د خاوندانو په اذن او اجازه په جمع شوو پيسو کې منځګړيتوب کوي او هغه پيسې دريم حقيقي يا حکمي شخص ته ورکوي او په هغه سره کار کوي او دغه تړون او عمل د مضاربت په تړون باندې ولاړ وي.

عامل او مضارب چه کومه فايده ترلاسه کوي نو د تر سره شوي تړون په اساس د اسلامي شريعت د احکامو مطابق له نوموړي فايدې څخه عامل او مضارب ته هم ګټه رسيږي او مودعينو او د مالونو څيښتنانو ته هم له شوې فايدې څخه ورکول کيږي او د دغه فايدې منبع او اساس چه ټولو ته په عادلانه توګه رسيږي هماغه عمل او زحمت دی.

اسلامي بانکونه د معمول په ډول په همدغه دوه ډوله عملونو او استثمار يعنی مستقيم او غير مستقيم استثمار باندی اقدام کوي (المعاملات المالية المعاصرة دکتور وهبه الزحيلی ص ۵۲۳ـ ۵۳۴).

**د اسلامي بانک کړنې :**

د اسلامی بانکونو نور عملونه او کړنې په لاندی ډول دي :

۱ـ د امانتونو قبلول ، دجاري حسابونو پرانستل. د چک د قيمت ادا کول.

د ورکړل شوؤ تسليمول، د مالونو تحويلول ، د مالونو ليږد ، د حواله جاتو او نورو اجرا کول د مزد او اجرې په مقابل کې چه دغه مزد او اجوره د عمل او کار په مقابل کې اخيستل کيږي .

۲ـ د شرعي احکامو مطابق صرافی کول.

۳ ـ د وکالت په اساس د ملکيتونو او ترکاتو اداره کول په مزد او اجرت سره. د وصيتونو تنفيذ او همدارنکه د اوقافو يتيمانو د مالونو او ځانګړو صندقونو اداره کول.

۴ ـ عاملينو او ګډون والو ته د مشورو او معلوماتو ورکول.

۵ ـ د خيريه او ټولنيزو کارونو لکه هغه کسانو ته واده کول چې توان نلري حسنه قرض ورکول او د دغه موخې لپاره صندقونو جوړول، د زکات د مالونو جمع کول او فقيرانو او مستحقينو ته يې توزيع کول.

٦ ـ د قرض ورکونکو د پيسو اچول په اقتصادي، کرهنيزو، صنعتي او سوداګريزو پروژو باندې د شرکت مرابحې او مضاربت په طريقو سره.

۷ ـ د پيسو ورکړه او د اقتصادي پروژو تمويل د مضاربت او مرابحې په طريقه سره په داسې شکل چه اسلامي بانک سوداګرو ته سوداګريز مالونه او شيان اخلي او د نوموړو مالونو پيسې له څه مودې وروسته له سوداګرو څخه اخلي.

د اسلامي بانکونو ډيرې او اکثره استثماري اعمال د پروژو د تمويل او شرکتونو ته د پيسو د ورکولو په برخه کې د مضاربت په تړون سره وي داسې چه اسلامي بانک له خلکو څخه سرمايه جمع کوي او هغه باخبرو متخصصينو ته ورکوي تر څو په هغه پيسو باندې کار وکړي ، ترلاسه کړې ګټه او فايده په خپلو مينځونو کې د شوي اتفاق په تناسب ويشي او توزيع کوي يې که په کار کې کوم تاوان مينځته راشي نو بانک او د سرمايې څښتن د هغه تاوان متحمل

ګرځي او عامل له دې نه غير چه د نومونړی جهد او زحمت کومه نتيجه نده ورکړې او وخت يې له کومی ګټې پرته تير شوی وي د بل څه متحمل نه کيږي.

**د بحث پايله :**

اسلامي بانک په دريو اصولو او اساساتو باندې ولاړ کارکوي.

١ ـ د سود د حرامې ګټې او نورو حرامو معاملاتو د کار او تعامل څخه لرې والی.

٢ ـ عمل او کار د ګټې او ربحې مصدر او اساس دی يعنی ګټه او ربح له کار او عمل څخه په لاس راځی چه دګټې د سلنی نسبت نا معلوم وي .

٣ـ اقتصادي رشد ته دټولنې له رشد سره تړاو ورکول. (المعاملات المالية / دکتور الزحيلي ص٥٢٧).

**د اسلامي بانک حسابونه**

**په اسلامي بانک کې د حسابونو ډولونه:**

د اسلامي بانک حسابونه د هغو معاملاتو څخه عبارت دي کوم چې په اسلامي شريعت کې مشروعيت ولري.

**١ـ د ذخېرې او پس انداز حساب:**(Saving account)

دغه حساب له هغه نغدياتو څخه عبارت دی چه په اسلامي بانکونو کې د د امانت يا وديعت په شکل ايښودل کيږي او د پيسو څښتنان هرکله چې وغواړي هغه پيسې له بانک څخه اخستلی شي. اسلامي بانک د دغه پيسو يوه برخه د اعتبار دقرض په شکل ورکوي او پاتې نورې پيسې په نغد شکل بې له دی چې په مضاربت يا نورو سوداګريزو کارونو کې په کار واچول شي ساتل کيږي.

په کال ۱۹۷۹م / ۱۳۹۹ هـ ق په دوبی کې د اسلامی بانکونو د دوهم کنفرانس په پریکړو کې داسې راغلی دي:

د پس انداز حساب په مقابل کې باید چه هیڅ ډول چاته ګټه او سود ورنکړل شي مګر دا چې د حساب د پرانستلو پر مهال تصریح شي چه دغه پیسې په تجارتی چارو لکه مضاربت ، شراکت کې په کار اچول کېږی او که نه. (المعاملات المالية / دکتور الزحيلی ص۵۲۷).

ودیعت او امانت تقریباً یو شان مفهوم لري په قرآنکریم کې د ودیعت او امانت د پاره یو جامع لفظ استعمال شوی دی مګر په فقه کې بیا ځلا ځلا بیان شوی دي.

په بانک کې چې کوم امانت ایښودل کیږي او ددې امانت ساتلو په بدل کې څه اندازه اجرت اخلي نو هغه جایز دی مګر پخپله له هغه پیسو څخه سود اخیستل حرام دي (اسلامې فقه مولانا مجيب الله ندوي ص ۷۱۳).

**۲ـ جایري حساب:**(Current Account):

اقتصاد پوهانو جاري حساب داسې تعریف کړي دی : جاري حساب هغه مال دی چه په غوښتونکی حساب کې زیاتیږي ، د مالونو څښتن اسلامي بانک ته د هغه د کارولو او نه کارولو اجازه ورکوي او هم هر کله چې وغواړي بیرته یې له بانک څخه اخستلی شي.

اسلامي بانک د جارى حساب په مقابل کې رب المال ته هیڅ ډول ګټه او ربحه نه ورکوي ځکه چه دغه حساب د کوم تجارتي فعالیت لاندې نه دی او تل غوښتونکی ګڼل کیږي.

**۳ـ مضاربت یا مشارکت:**

دغه حساب له هغه مالونو څخه عبارت دی چه څښتنان یې د کار او سوداګرۍ لپاره بانک ته ورکوي او هغه تر ټاکلې نیټې پورې چه د بانک لخو ټاکل شوی وي له بانک نه اخستل کیږي.

سودي بانکونه د دغه ډول حسابونو په مقابل کې په هغه صورت کې چه د ټاکلې مودې لپاره په بانک کې پاتې شي ګټه ورکوي مګر اسلامي بانکونه که چیرې په نوموړو پیسو باندې کار اوتجارت وکړي هغه که په مباشر او یا غیر مباشر ډول وي د شوې ګټې په تناسب سره د مالونو څښتنانو ته ګټه ورکوي او که یې هیڅ فایده نه وي کړی نو د مالونو ځیښتنانو ته هیڅ کومه ګټه هم نه ورکوي.

(البنک الاربوي فی الاسلام للعلامه باقر الصدر ص ۸۸ ـ ۹۸، دکتور العبادی ص۱۹۸ ـ ۲۰۷)

**اسلامی بانک او د مضاربت تړون:**

یو له هغه مهمو تعاملاتو څخه چې اکثراً په اسلامي بانکونو کې کارول کیږي هغه د مضاربت تړون دی.

**د مضاربت تعریف:**

مضاربت په تجارت کې د شراکت له تړون څخه عبارت دی ، دغه مشارکت د رب المال (د پیسو مالک) او عامل ترمینځ تر سره کیږي او د ټاکل شوی وخت په پای کې او یا هم د تجارتي معاملې په پای کې ګټه او ربح د رب المال او عامل په مینځ کې په هغه تناسب باندې چه اتفاق ورباندې شوی وي تقسیمیږي او که د مضاربت په تړون کې تاوان رامنځته شي نو د تاوان تحمل یوازې په رب المال راځي او په عامل او مضارب نه راځي.

د مضاربت په تړون کې د هرو دواړو اړخونو مصلحتونه په نظر کې نیول شوی دي یعنی د رب المال او عامل ځکه چې ډیر خلک پیسې لري ولې وخت

او په تجارت کې مهارت نلري ولې ډېر خلک هم وخت لري او هم په تجارت کې مهارت لري ولې پیسی نلري نو د مضاربت په وسیله دواړه طرفونه فایده کوي او د دواړو جهتونو مصلحت په پام کې نیول شوی دی هم پیسې په کار اچول کېږی او هم بیکاره وګړی په کار مشغولېږي. (المعاملات المالیة المعاصره / دکتور وهبه الزحیلی ص ۴۳۸).

د مضاربت مفصل بیان مخکې تیر شو.

**۴ -د پیسو حواله یا صرافي:**

الف): د پسو حواله کول یا لیږل او د هغه په لیږد باندې اجرت اخیستل د معاصرو فقهاوو په نزد جایز دي ځکه دا د پیسو لیږلو یا رسولو مزد یا کمیشن دی او د قرض شکل نه لري.

ب) : **د اسعارو تبادله** : که د پیسو جنس یو وي مثلاً افغانۍ په افغانۍ ډالر په ډالرو نو دا تبادله به سر په سر وي زیادت به په کې نه وي او لاس په لاس به وي

په دلیل د دغه حدیث شري:«اَلذَّهَبُ بِاالذّهَبِ وَالفِضّةُ بِاالفِضّةِ وَالبرُّ بِاالبرُّ وَالشَّعِیرُ بِاالشَّعِرِ وَالثَّمَرُ بِاالثَّمَرِ وَالمِلحُ بِاالملحِ مِثلاً بِمِثل سَوَاءً بِسوَاءٍ یَداً بِیداٍ »(رواه مسلم).

ژباړه: سره زر په سرو زرو، سپین زر په سپینو زرو، عنم په غنمو، وربشي په وربشو، خرما په خرما او مالګه په مالګه باندې مساوي لاس په لاس تبادله شي.

یعنې کله چې اجناس همجنس وي نو مساوي ، لاس په لاس به تبادله کیږي.

او که جنس یو شان نه وي مثلاً د افغانۍ تبادله په ډالر باندې په هغه کې فرق او زیادت باک نه لري ځکه جنس یې یو شان نه دی په شرط ددې چې

لاس په لاس وي ، په دليل د دغه حديث شريف :«فَاِذَا ختَلَفَت هذِهِ الاَجنَاس فَبيعُوا كَيفَ شِءتُم اِذاَ كَانَ يداً بِيَدٍ» (رواه مسلم)

ژباړه :او كه اجناس فرق ولري بيا چې څنګه غواړئ هسې يې معامله کړئ په شرط د دې چې لاس په لاس وي.

**۵ -د المرابحة معامله:**

بيع المرابحة په درى قسمه ده:

**بيع التولية** : د يوه جنس اخيستل او هغه بيرته پخپل سر بغير له ګټې خرچولو ته وايي.

**بيع المرابحة** : د تجارتي جنس اخيستل او بيا هغه په ګټه خرچول په تجارتي جنس کې ګټې کولو ته مرابحه وايي.

**بيع الواضيعة** : د تجارتي جنس اخيستل بيا د هغه په تاوان خرچولو ته بيع الواضيعة وايي. مثلاً يو کس کمپيوټر اخلي په ۴۰۰ دالره يو کال وروسته هغه په ۳۰۰ دالره خرچوي.

دا درى واړه بيعې د فقهاؤ په اتفاق جايزې دي.

په شرط ددي چې تجارتي جنس قبض شي که تجارتي جنس قبض يا تسليم نه شي بيعه نه صحي کيږي.

د مرابحې بيعې د صحت شرط دا دی چې تجارتي جنس قبضه او تسليم **شي.** (فتح القدير ج ۵ ص ٢٦٦ ، ٣١١ ، البحوث ج ١ ص ٢٦٣ شيخ الاسلام محمد تقي عثماني)

د بانک لخوا د مرابحې بيع به هلته صحي وي چې بانک يا د هغه وکيل اخيستل شوي تجارتي اجناس قبض کړي يواځې د ټيکټ په ذريعه چې تجارتي اجناس يې ليدلي هم نه وي او په اجناسو يې قبضه نه وي کړي نه صحي کيږي.

په دلیل د دغه حدیث شریف :عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ قَالَ:« مَنْ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَأَحْسِبُ كُلَّ شَيْءٍ مِثْلَهُ» (رواه مسلم).

ژباړه : ابن عباس رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خلک د قبض او تسلیم څخه مخکې د خوراکي موادو له خرڅولو څخه منع کړي دي ، ابن عباس رضی الله عنه وايي : ټول شیان ددې په شان حکم لري.

**٦ – الاجاره:**

اجاره یا اجرت او یا مزد چې عموماً درې قسمه اجروتونه وي.

الف) هغه اجرت چې سړی د کرایي په بدل کې اخلي.

ب) : هغه اجرت چې سړی د کسب او مزدورۍ په بدل کې اخلي.

ج) : هغه اجرت چې سړی د کار په بدل کې نورو مزدورانو ته ورکوي.

د اجارې د صحت د پاره هم د مرابحې په شان د جنس قبض کول شرط دي

و منها؛ ای من شرائط الاجارة : ان يكون مقبوض الموجر اذا كان منقولاً، فان لم يكن فی القبضة فلا تصح اجارته (الفتاوی هندیه ج ۴ ص ۴۱۱)) – البحوث ج ۱ ص ۲۵٦)

که بانک غواړي د اجارې معامله تر سره کړي نو د هغه یو صورت دا دی چې سامان واخلي مثلاً ساختماني ماشینري ، طیاره ، یا ځمکه یا ساختمان او د هغه مالک جوړ شي بیا وروسته هغه د اجاري د معاملې له مخې په کرایه ورکړي.

**د اسلامي او سودي بانکونو تر مینځ څه فرق دی ؟**

اسلامي بانک هغه دی چې ټول معاملات یې د اسلامي شریعت موافق وي او په ټولو معاملات کې د سود او قمار څخه پاک وي.

**په اسلامي بانک کې لاندې ضوابت موجود وي :**

۱- د خدماتو ټول مراحل (د اماناتو ساتل ، خرڅول او اخيستل ، مضاربت او اجاره..) به حلال او د اسلامي شريعت د ضوابتو موافق وي.

۲- د اسلامي بانک ټول اسباب او پانګه به حلال وي ، په سودي بانک کې د اسلامي بانکدارۍ د ځانګې فعاليت خپله د سودي ادارې سره کومک دی او خپله سودي لين دين دی ځکه اسباب يې حلال نه دي.

**د بانک ګټه په اجماع د امت حرام ده :**

سودي بانکونه دوه ډوله کارونه تر سره کوي ، خدمات او پانګه ونه يا سرمايه ګزاري د سودي بانک اکثره تعامل په قرض باندې دی او څه برخه يې روا او نا روا پانګه ونه ده.

د سودي بانکونو د قرض راکړه ورکړه تقريباً (۷۸-۸۰ ٪) پورې رسيږي او د خدماتو په برخه کې پانګه ونه يې تقريباً (۹-۳۷ ٪) ته رسيږي.

سودي بانکونه يوازې د سودي قرض د اخيستلو او ورکولو يو وسليه ده ، مثلاً د چا څخه چې قرض اخلي هغه ته ۴٪ ګټه ورکوي مګر چا ته چې بانک قرض ورکوي د هغوی څخه ۷٪ ګټه اخلي او سودي بانک دغه فرق د ځان حق بولي.

د بانک د دغه ډول ګټه اخيستل او ورکول په اجماع د امت سود دی او دا همغه د جاهليت د زماني (الربا الدين) يا د قرض سود بلل کيږي.

په دې باره کې مجتمع فقه اسلامي په مکه مکرمه کې علمي ناسته وکړه چې په دغه ناسته کې تر ۳۰۰ زيات علماؤ او د اسلامي فقهې پوهانو برخه لرله او د بانک ګټه يې سود اعلان کړه.

ځينې بيا دا حيله جوړوي چې د بانک ځينې برخې سود نه بلل کيږي بلکي هغوی پر دغه پانګه باندې مضاربت او تجارت تر سره کوي دا خبره خطاء او

غلطه ده ځکه په مضاربت کې د ګټې ثابت تعینول باطل دي.ځکه په مضاربت کې ګټه او خساره د حساب کولو وروسته څرګندیږي دلته که فرضاً خساره هم شوی وي ګټه ثابته ده چې دا اصلاً په قرض باندې سود دی او په مضابت ، زراعت وغیره د ګټې ثابتول باطل دي.

په حدیث شریف راغلي دي :«نهی النبی صلی الله علیه وسلم عن تخصیص أحد المتعاقدین بثمرة معینة من الارض».

یعنې : رسول الله صلی الله علیه وسلم په رزاعت کې مالک او بزګز د پاره د مېوې د حصې د ثابت ټاکلو څخه منع فرمایلي ده.

په مضاربت او زراعت کې به یوازې حصه تعینیږي مثلاً که په تجارت کې ګټه وشي یا د فصل حاصل ټول شي نو نیمه حصه به زما وي او نیمه ستا مګر د ګټې او حصي ثابت ټاکل باطل دي لکه : ۳۰۰ افغانۍ به زما وي او پاتې ستا یا ۳۰ منه مېوه به زما او پاتې به ستا وي داسې معامله باطله ده.

المعاملات المالیة المعاصرة – وهبة زحیلي (ص ۲۴۸).

**مسائل**

## په سودي بانک کې کار کول څه حکم لري ؟

دیدارالحق دیدار یم د ننګرهار ولایت د بټی کوټ ولسوالی اوسیدونکی.

اول خو د هر څه تر مخه تاسې ته سلامونه وایم.

زما پوښتنه دا ده چې په اوس وخت کې په بانکونو کې کار کول څنګه دي ؟ معاش يې حلال دی که حرام ؟، که حرام دی نو په کوم دلیل سره ؟که معلومات مو په تفصیل سره راکړئ نو ډیر به خوشحاله شم.

ځواب:

هغه بانکونه کوم چې معاملات يې سودي وي لکه د پس انداز حساب په مقابل کې ګټه ورکول ، اجاره او مرابحه د اسلامي شریعت خلاف په سودي

ډول تر سره کول او داسې نور ، يعنې هغه بانکونه چې سودي وي په هغه کې کار کول حرام دي ، ځکه چې د بانک کارکونکي د کاتبانو (ليکونکو) او شاهدانو حيثيت لري او رسول الله صلی الله عليه وسلم د سودي معاملې کاتب او شاهد دواړه د سود په ګناه کې مساوي او يو شان ګڼلي دي.

«لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ آكِلَ الرِّبَا وَمُؤْكِلَهُ وَكَاتِبَهُ وَشَاهِدَيْهِ وَ قَالَ: هُمْ سَوَاءٌ» (مسلم ١٥٩٨).

ژباړه : رسول الله صلی الله عليه وسلم د سود خوړونکي ،ورکوونکي ،ليکونکي او شاهدان لعنت کړي دی ،او ويې فرمايل چه دوی ټول په اصل د ګناه کې سره برابر دي.

په دې اړه د نړي ډيرو معتبرو مراجعو فتاواوې ور کړی دي چې دلته مو څو را نقل کړی دي :

**"فتاوى إسلامية -اللجنة الدائمة" (٢ / ٤٠١ ، ٤٠٢) ليکي :**

پوښتنه : زه په يوه هيواد کې په مرکزي بانک کې دنده تر سره کوم چې عملاً د سود په معاملات کې لاس نه لري خو د ګټې اخستنې تعامل تر سره کوي (ماليات او نور اخلي) په دې بانک کې کار کول څه حکم لري ؟

ځواب – الحمدلله

په دې بانک کې کار کول حرام دي ، که څه هم په داسې برخه کې وي چې هلته د سود معاملات نه تر سره کيږي ، دا کفايت کوي چې مرکزي بانک دی ، مرکزي بانک د سود رأس او مور بلل کيږي او د ټولو سودي مؤسيساتو انسجامونکی بلل کيږي.

علماء حتی د ناظم او چوکيدار د پاره هم په داسې بانکونو کې کار کول نا رواه ګرځولي دي وار خو د کاتب شو.

د اهل علم د فائدې د پاره عربي متن دلته را نقلوو :

العمل في البنك الربوي بغير مباشرة للربا وإيداع الأموال فيه.

أعمل في البنك في إحدى الدول في قسم لا يتعامل بالمعاملات الربوية علماً بان البنك المركزي يتعامل بالفوائد وهو مؤسسه حكومية فما هو حكم العمل في البنك المذكور أرجو إفادتي ؟.

الحمد لله

عملك في البنك حرام ، حتى لو كنت في قسم لا يتعامل بالمعاملات الربويَّة ، ويكفي أن " البنك المركزي " هو أم البنوك ورأسها ، والعمل في الأقسام الأخرى إنما هو متمم ومكمل لأقسام الربا ، ومن كلِّ الأقسام يتكون البنك بل كل المؤسسات الربوية.

بل إن العلماء أفتوا بعدم جواز العمل حارساً أو سائقاً في مثل هذه المؤسسات فكيف بالكاتب ؟

لا يجوز العمل بالمؤسسات الربويَّة ولو كان الإنسان سائقاً أو حارساً ؛ وذلك لأن دخوله في وظيفة عند مؤسسات ربويَّة يستلزم الرضى بها ؛ لأن من أنكر شيئاً لا يمكن أن يعمل لمصلحته ، فإذا عمل لمصلحته كان راضياً به ، والراضي بالشيء المحرم يناله من إثمه.

أما من كان يباشر القيد والكتابة والإرسال والإيداع وما أشبه ذلك : فهو لا شك أنه مباشر للحرام ، وقد ثبت عن النبي صلى الله عليه وسلم من حديث جابر رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم لعن آكل الربا وموكله وشاهديه وكاتبه ، وقال : هم سواء. " فتاوى إسلامية " (٢ / ٤٠١).

همدارنګه موسوعة الفقه الاسلامية ليکي :

يحرم على المسلم العمل في أي بنك أو مؤسسة تأخذ أو تعطي الربا؛ لأنه من التعاون على الإثم والعدوان، والمال الذي يأخذه العامل من البنك أو المؤسسة الذي يعمل فيه سحت وحرام يعاقب عليه إن لم يتب منه.

عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ:«لَعَنَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم آكِلَ الرِّبَا، وَمُوكِلَهُ، وَكَاتِبَهُ، وَشَاهِدَيْهِ، وَقَالَ» :هُمْ سَوَاءٌ» (أخرجه مسلم).

يعنې : د مسلمان د پاره په هر هغه بانک او مؤسسه کې کار کول حرام دي کوم چي سود خوري او يا سود اخلي ځکه چې دا د ګناه او ظلم په کار کې مدد کول دي او داسې بانک او مؤسسې څخه ګټلی مال حرام دی کچېرې توبه ونه باسي په هغه باندې نيول کيږي.

حضرت جابر رضی الله عنه وايي :رسول الله صلی الله عليه وسلم د سود خوړونکي ،ورکوونکي ،ليکونکي او شاهدان لعنت کړي دی ،او ويی فرمايل چه دوی ټول په اصل د ګناه کی سره برابر دی.

**اللجنة الدائمة ليکي :**

وسُئلت اللجنة الدائمة عن رجل يعمل حارساً ليليّاً في أحد البنوك ، وليس له علاقة في المعاملات ، هل يستمر في عمله أو يتركه ؟

فأجابت :

البنوك التي تتعامل بالربا لا يجوز للمسلم أن يكون حارساً لها ؛ لأن هذا من التعاون على الإثم والعدوان ، وقد نهى الله عنه بقوله : (ولا تعاونوا على الإثم والعدوان).

وأغلب أحوال البنوك التعامل بالربا ، وينبغي لك أن تبحث عن طريق حلال من طرق طلب الرزق غير هذا الطريق.

وبالله التوفيق ، وصلى الله وسلم على نبينا محمد وآله وصحبه.

(د افتاء د دايمي ټولنې څخه د يو سړي په اړه پوښتنه شوې ده چې په يو بانک کې د چوکيدار او بهره دار په حيث دنده تر سره کوي او د معاملاتو سره هيڅ علاقه نه لري نو هغه خپلې دندې ته ادامه ورکړي او که ترک يې کړي؟

په ځواب کې ليکي : مسلمان ته جايزه نه چې په داسې بانک کې چې د سود کار کوي دنده تر سره کړي که څه هم چوکيداري يا بهره داري وي ځکه دا عمل د گناه په کار کې مرسته ده او الله تعالی ددې کار څخه منع فرمايلي (و لا تعاونوا على الأثم و العدوان) ، يعنې د گناه او ظلم په کار کي يو له بله مرسته او مدد مه کوئ.

په غالب گمان بانکونه د سود کار کوي تاسې ته ښايي چې د حلالې لارې رزق په لاس راوړی).

**د سودي بانک په داسې برخه او شعبه کې کار کول چې هلته سود نه وي**

سوال : زه د بريطانيا د " أتش أس بي سي" بانک د گروي د اتشاري (مشوره ورکولو) په څانگه کې کار کوم ، کوم چې خلکو ته د غوره قرض ، او غوره گروی طريقه بيانوي ، ما پوه کړه چې آيا دا کار حرام دی ؟ لکن دلته مې د جومات د امام څخه پوښتنه وکړه هغه ما ته وويل تر هغه پورې دلته دنده تر سره کوه څو پورې دې چې بله دنده نه وي پيدا کړې ، نو ايا داسې کول جايز دي او که نه دا عمل د گناه او ظلم په کار کې مرسته او مدد کول دي ؟

**ځواب :**

**الحمد لله**

فتاوي المعاصر الاسلام سوال جواب ليکي :

ژباړه: سودي بانکونه هغه مؤسيسات دي چې پر معصيت او کبيره گناهونو بنا شوې دي کوم چې سود او قمار دی د هيڅ مسلمان د پاره جايز نه ده چې د هغه په يو شکل کومک وکړي او هغه په خپل کار او عمل سره تقويه کړي او هيچا ته جايز نه ده چې په هغه کې کار وکړي ولو که په داسې څانگه کې کار کول هم وي چې هلته سود نه وي ځکه دا سودي بانک يا مؤسيسه يو

سيستم دى چې د ټولو څانګو پر فعاليت ولاړه دی د هغه ټول اقسام او ټولې برخې د دغه مؤسسي د سودي معاملاتو په کومک او تقويت کې شاملې دي.

له علماء اللجنة الدائمة څخه داسې پوښتنه شوې ده چې :

سوال : د يو انسان د پاره په سودي بانک کې په داسې څانګه کې کار کول جايز دي او که نه په کومه څانګه کې چې سودي معاملات نه وي ؟

ځواب :

د مسلمان د پاره جايز نه دی چې په سودي بانک کې کار وکړي که څه هم دا کار کول په داسې کومه څانګه کې وي چې په هغه کې سودي معاملات نه وي ځکه سودي بانک ټولو څانګو ته محتاج دی او د بانک ټولې څانګې د سود په معاملاتو کې کومک او مساعدت کوونکي دي ، الله (جل جلا له) فرمايي : [وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ]" (د ګناه او ظلم په کار کې يو له بله کومک او مدد مه کوئ). " فتاوى اللجنة الدائمة " (١٥ / ٤١).

د علمي څېړنو او افتاء دايمي ټولنې د سودي بانک د ټولو برخو تحريم بيان کړی دی ولو که ناظم او چوکيدارې هم وي فرق نه کوي مسلمان هيواد وي يا کافر هيواد. فتاوى اللجنة الدائمة (١٨/١٥).

المعاملات المعاصرة ليکي :

إذا تقرر هذا التحريم القطعي للربا، فيجب أن يُعلم أنه يحرم على المسلم أن يكون طرفاً في أي عملية ربوية، ويحرم عليه أن يسهم في العملية الربوية بأي شكل من الأشكال، ويدخل في ذلك أن يأخذ قرضاً ربوياً، وإن لم يدفع هو الفائدة، بل دفعتها المؤسسة التي عمل فيها، كما ورد في السؤال، أو أي جهة أخرى، ولا شك أن من يفعل ذلك فإنه يكون مشاركاً في الربا، وقد سبق قول النبي صلى الله عليه وسلم:(لعن الله آكل الربا ومؤكله وكاتبه وشاهديه وقال: هم سواء) رواه مسلم.

ونلاحظ في هذا الحديث أن اللعن-ويعني الطرد من رحمة الله والعياذ بالله- شامل لآكل الربا، أي للآخذ له، ولمؤكله، أي المعطي للربا، وكذلك لكاتب المعاملات الربوية، كما هو الحال في موظفي البنوك الربوية، وكذلك للشاهد، أي الذي يشهد على المعاملات الربوية، ويلحق بذلك من يسهم أي إسهام في العمليات الربوية، كالكفيل،ومن يشتري بما يسمى التقسيط الميسر عن طريق البنوك الربوية،ومدقق الحسابات ومن يقدم برامج الحاسوب ويركب أنظمة الحاسوب أو يقوم بصيانتها أو يقدم أي خدمة تسهم في الربا وغير ذلك من الخدمات أو المشاركات في العمليات الربوية.

ژباړه : سود د شريعت په قطعي دلائلو حرام دی ، د مسلمان د پاره په دې باندې پوهيدل واجب دي چې د مسلمان د پاره په سودي معاملات کې په هر شکل چې وي برخه اخيستل حرام دي ، که څه هم هغه داسې برخه او يا داسې ځانګه وي چې سود نه اخلي ځکه دی د همدغه ادارې کار کوونکی دی او په دغه اداره کې د ده هر قسم کار د سود په معامله شرکت دی په دليل د قول د نبی صلی الله عليه وسلم ::(لعن الله آکل الربا ومؤکله وکاتبه وشاهديه وقال: هم سواء) رواه مسلم.

په پورته حديث کې لعنت يعنې د الله د رحمت څخه رټل (العياذ بالله) سود خور ، سود ورکوونکی او همدارنګه د سودي معاملاتو ليکونکی چې په اوس عصر د سودي بانک مامور او کاتب دی او همدارنګه شاهد هر هغه کس چې دغه معاملاتويني او په هغه کې موجود او دخيل وي نو دا ټول په سود کې شريک دي لکه : کفيل ، محاسب ، خزانه دار ، د پروګرام چلونکی ، د هغوی انتقالونکی او ناظم او بهره دار او نور ټول په سودي معامله کې شريک دي.

المعاملات المالية المعاصرة (**الأستاذ الدكتور حسام الدين بن موسى عفانة ،جامعه القدس فلسطين)**

**همدارنگه د مركز الفتاوي اسلام ويب څخه هم دا پوښتنه شوې چې پورته بيان ته ورته ځواب ليکي :**

أنا أعمل في بنك ربوي ولكن في قسم التحويلات ولا يوجد بها أي نوع من أنواع الربا وذلك أكيد.... فهل عملي في هذا القسم حلال ام حرام ... قد أجاز الشيخ القرضاوي العمل في الأقسام التي تخلو من الربا فهل عملي في ذلك البنك مشروع أم...

ولكم مني كل الاحترام.

زه په سودي بانک کې کار کوم مگر د تحويلاتو په برخه کې چې په دې ځانگه کې هيڅ قسم سود نشته نو زما دنده په دغه برخه کې حرامه ده او که حلاله ، ماته شيخ القرضاوي اجازه کړې ده چې په هغه برخه کې کار کول چې د سود څخه خالي وي جايز دی.

خواب :

الإجابــة

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه، أما بعـد:

فإذا كان الأمر كما تقولين أختي السائلة من أن عملك في قسم التحويلات في البنك الربوي لكن لا بد من التنبيه في هذه المسألة إلى ثلاثة أمور: الأمر الأول: أن بعض الناس قد يظن في أعمال يقوم بها أنها مما لا علاقة له بالربا مع أن الأمر خلاف ذلك، ومن ذلك كتابة أو حمل ورقة لها تعلق بالربا، لأن ذلك من الإعانة على الربا والله تعالى يقول: وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ {المائدة: ٢}، وقال صلى الله عليه وسلم: لعن الله الربا آكله وموكله وكاتبه وشاهديه، وقال هم سواء. رواه مسلم. فلم يكن اللعن لآكل

الربا وحده بل شمل الموكل والكاتب والشاهد ، أن التحويلات البنكية لا تخلو من الربا في الغالب لأنهم لا يلتزمون بالتقابض عند المصارفة، ومن المعلوم أن التقابض شرط في الصرف حتى يخلو من ربا النسيئة.والأمر الثالث:أن الأفضل والأحوط لدين المرء هو البعد عن العمل عند المرابين ولو كان العمل في ذاته مباحا.

ترجمه: که دا کار همداسې وي لکه تاسې چې واياست نو پوښتنه کوونکې خورې ! ستا کار په سودي بانک کې د تحويلاتو په برخه کې د دريو امورو څخه خالي نه دی :

**اول** : ځينې خلک گمان کوي چې د سودي بانک په داسې برخه کې کار کول چې هلته سودي معاملات نه وي نو سود نه دی لکن داسې نه ده کتابت، ماموريت او تحويلات په سود کې شامل دي ځکه دا د گناه او ظلم په کار مدد دی الله تعالی فرمايي :وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الْأِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ، يعنې : مدد وکړئ يو له بله د خير او پرهيزکارۍ په کار کې او مدد مه کوئ تاسې يو له بله د گناه او ظلم په کار کې.

**دوهم** : همدارنگه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :لعن الله الربا آكله وموكله وكاتبه وشاهديه، وقال هم سواء. يعنې : د الله تعالی لعنت دی په سود خوړونکی ، سود ورکونکي ، ليکونکي او شاهد او ويې ويل : چې دوی د سود په گناه کې سره برابر دي.

نو څرگنده شوه چې سود په گناه کې د سودخور او سود ورکوونکي څخه علاوه کاتب او شاهد هم شامل دي نو د بانک تحويلات په سود کې شامل دي.

دريم : غوره او احتياط د بنده په دين کې دا دی چې سړی د سود خورو څخه لرې وي که څه هم هغه کار په اصل کې مباح وي.        والله أعلم.

**د بانک په قرغه کشي يا بخت حساب کې کډون کول څه حکم لري ؟**

ټولو کارکونکو ته د زړه له اخلاصه مننه کوم چې زمونږ ستونځې حلوئ.

محترما : زما پوښتنه دا ده چې په بانکونوکې حساب خلاصول په دې نيت چې ماته په قرعه کشی کې جايزه را وځي دا جواز لري او که نه ؟

همت "سباوون" دکندهار نه

**ځواب :**

د بانک په بخت حساب کې کډون کول حرام دي ځکه دا قمار دی چې د ډيرو کسانو پيسې جمع کيږي او بيا هغه د بخت يا قرغه کشي په ډول يو کس يا څو کسانو ته وځي.

د قمار پوره تفصيل مخکې تير شو

په دې اړه د فتاوي دارالعلوم ديوبند څخه داسې پوښتنه شوې ده :

پوښتنه : لاټري چې د يوې کمپنۍ لخوا په زرګونو ټکټونه خرڅ کړ شي او د هر ټکټ قيمت مثلاً يوه روپۍ وي او په ټولو ټکټونو مسلسل نمبر ليکل شوی وي چې دا نمبر کمپنۍ له ځانه سره ساتلی وي او د نمبر مطابق جايزه ټاکل شوې وي بيا په يوه ورځ دا ټول ټکټونه يو ځای کوي په يوه منګي يا بل څه کې يې اچوي او بيا په يوه وړوکي هلک يا بل کس باندې را اخلي نو وروسته چې د هر چا نوم راووت د ټکټونو ټولی پيسې به د هغه شخص وي اوس کوم کس ته چې دا ټولی پيسې حواله کيږي دا رواه دي او کمپنۍ چې پدې کار سره کميشن اخلي هغې ته د کميشن اخستل رواه دي ؟

ځواب : دا قمار يا جواري ده شرعاً حرام دی د چا په نوم چې دغه پيسې راوتلې وي هغه ته يې اخيستل حرام دي او همدارنګه کمپنۍ ته د کميشن اخستل روا نه دي.

دا ټولې پيسې به خپلو مالکانو ته سپاري او که هغه نه وي د هغوی وارثانو ته به يې سپاري. (فتاوي دارالعلوم ديوبند ج ۱ صفحه۶۳۳)

د فتاوي البلد الحرام څخه داسې پوښتنه شوې ده :

پوښتنه : په بخت آزموينه کې کډون څه حکم لري ؟ پداسې شان چې يو څوک د بخت آزموينې فورمې برابرې کړي که جانس ياري وکړي نو لوی دولت به په لاس راوړي او بل دا چې که څوک پدې نيت کډون پکې وکړي چه زه بيا دغه د بخت پيسې په اسلامي فعالتونو کې مصرف کوم نو ددې حکم څه دی ؟

ځواب : دا ډول معامله چې يو څوک د بخت کارت يا فورم واخلي او بيا په جانس سره پيسې ورته ووځي دا په حکم د برد باخت او قمار دی الله تعالی فرمايي:

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنْصَابُ وَالأَزْلامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (٩٠)إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلاةِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ] (٩١) (المائده).

ژباړه : ای مؤمنانو! دا شراب ،قمار،انصاب (نصب کړشوی ډبری د عبادت لپاره) او غشي د بخت آزمينې پخاطر دا ټول ناولي او شيطاني کارونه دي له هغو نه ډډه وکړئ هيله ده چې تاسې ته به بری در په برخه شي. شيطان خو دا غواړي چې د شرابو او قمار په وسيله ستاسې په مينځ کې عداوت او دوښمني واچوي اوتاسې د الله پاک له يادولو او لمانځه څخه منع کړئ  نوآيا تاسې له دې چارو لاس اخلئ ؟

د قمار وړونکی بدون له کوم مشقت او زحمت څخه د لوی دولت خاوند گرځي.

کبيره گناه ده چې د بت پرستی سره مساوي بلل شوي ده.

او دا روا نده چې انسان حرام مال په دې نيت په لاس راوړی چې بيا به يې د خير په کار کې ولگوم. علماء البلدالحرام- فتاوی اسلامي(۴/۴۴۱-۴۴۲)

پوښتنه : په بعضو هيوادو کې ځينې بانکونه د قرعه کشی لپاره ورقې صادروي دغه ورقې له بانک څخه اخيستل کيږي او هر کله چې مياشت يا کومه بله ټاکل شوی موده پوره شي قرعه کشي کيږي يو کس ته لوی دولت په لاس ورځي په دې اړه د شريعت څه حکم دی ؟

ځواب : دا کار قمار دی له کبيره گناهونو څخه شميرل کيږي. د علمي څيړنې او افتاء دايمي ټولنه (۴/۴۴۳)

پوښتنه : ځينې تجارتي مؤسيسات اعلانونه کوي چې هر څوک دغه اجناس واخلي د جائزې مستحق به وگرځي له دې لارى خلک ورماتوي ترڅو د دوى د اجناسو د خريدارۍ سره علاقه مند شي چې ځينې خلک يې د جايزې په نيت اخلي ددى حکم څه دى ؟

ځواب : دا کار حرام دى او د قمار يو ډول دى دوى د خلکو مال په ناحقه تر لاسه کوي دا کار يې د خلکو د غلولو لپاره يو سبب جوړ کړى وي.

مسلمان سوداگر بايد له دې کار څخه ځان وساتي (علماء البلد الحرام).

همدارنگه د سودي بانک د بخت حساب په اړه فتاوى الأسلام سوال جواب ليکي :

تلجأ بعض البنوك والمؤسسات الربوية إلى الحيلة، ليروج أمرها على الناس، فلا تعلن عن فوائد ربوية، وإنما تضع جوائز أو تُوزع بالقرعة في نهاية السنة أو كل ستة أشهر، ويكثر تداول هذه الطريقة فيما يسمى بشهادات الادخار أو الاستثمار، وهذه الحيلة لا تجعل الحرام حلالا، فإن البنك لا يوزع الجوائز من ماله، وإنما هي فوائد الربا، يوزعها بهذه الطريقة، بدلا من توزيعها على جميع العملاء، وهي طريقة تجمع بين الربا والميسر.(الأسلام سوال جواب رقم الفتاوي ٧٢٤١٣).

ژباړه : ځينو سودي بانکونو دا حيله په کار اچولې ده چې په خلکو کې يې داسې عمل رواج کړى چې سودي فائده نه ښيي بلکي د جائزې په شکل يې ويشي ، دا جوائز د کال په آخر يا هرو شپږو مياشتو کې ويشي (ددې لارې ډير کسان پيسې اچوي بانک) يې د پس انداز او پانگې په شکل ساتي او خپل کار وربانديې کوي ، دا حليه هيڅکله هم حرام نشي حلالولى ځکه بانک د خپل مال څخه خلکو ته جوائز نه ويشي بلکي د سودي گټې څخه يې په همدې طريقه خپلو مشتريانو باندې ويشي او دا طريقه د سود او قمار دواړو جمع ده.

**په سودي بانک کې د پیسو ساتل څه حکم لري ؟**

ښاغلو کارکوونکو! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

زما پوښتنه دا ده چه آیا کولای شو د افغانستان په اوسنیو مشهورو بانکونو کې خپلې پیسې وساتو، په داسې شکل چه سود پرې وانخلي یعنې د جاري حساب په ډول چه نه تاوان وکړي او نه فایده فقط د ساتلو د پاره د جاري حساب په ډول واچول شي. لکه د یوه صراف سره چه د پیسو د راکړې او ورکړې معامله ولرې.

تاسو ته معلومه ده چه اوس په دې شرایطو کې په کور کې د پیسو ساتل د غلا او خطر په وجه مشکل دي او که ټول خلک خپلی پیسې په بانک کی وانه چوي او په کورونو کې یې وساتي نو سخت مشکلات به راپیش کړي غلا کول او په غلا کولو کې قتل او قتال هم مینځ ته راځي.

خو د یادونی وړ ده چه همدغه ذکر شوی بانکونه سودي نظام لري او په سودي نظام باندې چلیږي.هیله ده په دې اړه مفصل معلومات راکړئ.

ډیره مننه – عبدالحبیب الفت

ځواب:

کوم بانکونه چې په سودي نظام بنا دي په هغو بانکونو کې د پیسو جمع کول یا ساتل جایز نه دي ځکه د سودی اداری سره امداد او کومک کول دي ، لقوله الله سبحانه و تعالی : [وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ]( المائدة الآية ٢).

یعنې : د ګناه او ظلم په کار کې یو له بله مدد او مرسته مه کوئ.

کچېرې د پیسو په ساتنه ،انتقال یا په مجموع کې د سر او مال خطر وي او کومه بله لاره نه وي نو بیا په داسې بانک کې د پیسو جمع کول باک نه لري ځکه چې نیت سود نه وي بلکی د پیسو ساتل وي (جدید فقهی مسایل ج١ص٢٨١).

همدارنګه فتاوي علماء البلد الحرام لیکي :

که د غلا له ویرې یا حتی د سر له ویرې په ناچاری سره په سودي بانک کې پیسی جمع شي باک نه لري سود اخیستل یې حرام دي. (فتاوي البلدالحرام – مکه مکرمه۳۹۰-۳/۳۸٦)

همدارنگه اللجنة الدائمة لیکي :

فلا يجوز أن يضعها فيه؛ لما في ذلك من إعانة أصحاب البنوك على استعمالها في الربا، وقد قال تعالى: [وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ] سورة المائدة الآية ٢

إذا دعت الضرورة إلى الحفظ عن طريق البنوك الربوية فلا حرج في ذلك إن شاء الله ؛ لقوله سبحانه : [وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ](انعام ١١٩) ، ولا شك أن التحويل عن طريقها من الضرورات العامة في هذا العصر .(فتاوى اللجنة الدائمة" (١٣/٣٦٩ ).

ژباړه : په هغه کې (سودي بانک) کې د پیسو ایښودل جایز نه دي ځکه دا کار د بانکونو د مالکانو سره مدد دی الله تعالی فرمایي : [وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ].

مگر کله چې د ساتنې ضرورت وي (د سر او مال خطر) نو بیا د سودي بانک لیارې د مال په ساتلو کې څه حرج نشته ان شآء الله ، په دلیل د قول د الله چې فرمایي :[وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ](او یقیناً چې الله پاک تاسې ته حرام کړ شوي ځیزونه په بشپړ ډول بیان کړي دي مگر هغه چې اړ کړای شې تاسې).

په دې کې شک نشته چې په اوس وخت کې ددې لارې تحویل یو عام ضرورت دی (کچېرې اسلامي بانک نه وي). و الله سبحانه وتعالی اعلم

**په خارجي هیواد کې د بانک له لارې د کور اخیستل**

تاسې ښاغلو اسلامي علماوو ته نیکی هیلی او خواږه سلامونه وړاندې کوم.

له اسلامی علماؤ نه یوه پوښتنه لرم هغه په لاندی ډول ده.

زه مسلمان یم او غواړم چې دلته په امریکا کې یو کور په بیعه واخلم دلته دکورونو خرڅلاو په دې ډول دی [د کور اصلي خاوند ته لیدلی او کتلای شي له هغه سره په ړومبی ځل ټوله معامله پای ته رسوي ته د کور د خاوند څخه کور په بیعه اخلې خو د کور مالک په اول ځل کې له تا نه یو څه مقدار اخلي لکه د مثال په ډول د کور قیمت دی ۲۰۰۰۰۰ ډالره ته ورته ۴۰۰۰۰ ډالره په اول ځل ورکوې د کور نور قیمت بانک هغه ته سپاري نور د بایع له مشتري سره کار نشته د مشتري معامله نوره له بانک سره ده مونږ ویلای شو چې د کور خریدار بانک دی د مشتری پاتې معامله له بانک سره ده بانک له مشتري نه پاتې مبلغ په ۳۰ یا ۴۰ کلونو کی اخلي  دا معامله په سود کې راځي او که نه ؟ او دلته پرته له دې نه په بل ډول کور نشي اخستلای دلته په سلو کی ۷ یا ۵ او کله کله ۸ فیصده سود هم بانک له مشتری نه اخلي موږ مسلمانان څه وکړو چې د کور خاوندان شو ؟د قران او نبوي ارشاداتو په رڼا کی ځواب غواړو. کور مو ودان په درنښت.ستاسی ورور حیات الله ستومان – امریکا

**ځواب:**

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

د سودي بانک له لارې د کور اخیستلو معامله حرامه ده ځکه دا د قرض سود (ربا النسيئة) ده اصلاً شرکت یا بانک ځمکې ،ماشین یا بل جنس ته د اخیستلو ضرورت نه لري بلکې دا ددې د پاره اخلي تر څو له مشترې څخه د هر قسط په بدل کې سود تر لاسه کړي نو دا یو سودي لین دین دی.

په امریکا یا کوم بل هیواد کې چې د سودي بانک له لارې کورونه اخیستل کیږي یوه سودي معامله ده او په حرمت یې د معاصرو علماؤ اتفاق دی.

فان شراء البيوت فى أمريكا عن الطريق بنوكها الربوية وهو ربا النسيئة التى أجمعت الأمة على تحريمه سلفاً و خلفاً (اللجنة الدائمة).

يعنې : په امريكا کې د سودي بانک له لارې د کور اخيستل جايز نه دي ځکه دا د پور سود دی چې په حرمت يې د امت د پخوانيو او ورستنيو علماؤ انفاق دی.

سود خوړل سخته گناه ده الله تعالی مؤمنان د سود خوړلو څخه منع کړی دي:

قوله تعالی : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَأْكُلُواْ الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً وَاتَّقُواْ اللّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (ال عمران ۱۳۰).

ژباړه: ای مؤمنانو سود مه خورئ دا څو چنده زياتی له الله پاک نه وويريږئ ښايي چه تاسې بريالی شئ .

او بل دا چې سود اخيستل او سود ورکول يو شان دي.

«لَعَنَ رَسُول اللهِ صَلي اللهُ عليهِ وَسَلَمَ اكِل الّربواوَمُوكِله وَكاَ تِبه وَشَاهِدَيه وَقَال هُم سَوآءُ » (رواه مسلم).

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم د سود خوړونکی ،ورکوونکی ،ليکونکی او شاهدانو ته لعنت واستاوه ،او يې فرمايل چه دوی ټول په اصل د گناه کی سره برابر دي.

ځينو معاصرو فقهاوو مسکن (د اوسيدلو ځای) ته د سخت ضرورت په وخت کې (لکه: هلاکت او داسې سخت مشکل چې تحمل يې ناشونی وي) يا د مال ،نفس او عزت سخته خطره وي او بدون له اخيستلو بله لاره نه وي اجازت ورکړی دی.

خو ځينې علماؤ يې بيا په کلکه ردوي چې د مسکن ملکيت ضرورت نه دی په هغه صورت کې چې اجاره (کرايه وغيره) موجود وي.

فشراء البيوت عن طريق البنك لا يجوز إذا تضمن الدخول في محذور شرعي ـ كالاقتراض بالربا ونحوه ـ ما لم تكن هنالك ضرورة ملجئة لا يمكن دفعها إلا بذلك، وحد هذه الضرورة: هو وصول الإنسان إلى حالة لو لم يتناول معها المحرم لهلك، أو وقع في مشقة شديدة لا تحتمل ـ جاء في نظرية الضرورة الشرعية تعريف الضرورة بأنها: هي أن تطرأ على الإنسان حالة من الخطر، أو المشقة الشديدة بحيث يخاف حدوث ضرر، أو أذى بالنفس، أو بالعضو – أي عضو من أعضاء النفس – أو بالعرض، أو بالعقل، أو بالمال وتوابعها ـ ويتعين، أو يباح عندئذ ارتكاب الحرام، أو ترك الواجب، أو تأخيره عن وقته دفعاً للضرر عنه في غالب ظنه ضمن قيود الشرع (فتاوى اللجنة الدائمه – شبكة اسلامية).

په دې مسئله کې د اسلامې نړې علمي مراکزو ډېر بحثونه کړی دي د شمالي امريکا د فقهاوو ټولنې هم په دې مسئله باندې ډېر بحث کړی دی.

زما مسافره وروره:

زمونږ نصيحت تاسې ته دا دی چې الله تعالی ته صبر وکړئ او په خپله تقوی کلک ودريږه تر څو تاسې ته د حلالي معاملې لارې هوارې شي چې پرته له دې چې سودي بانک ته د قسط په ورکولو تاسې په دې وتوانيږې چه پر يو ځل کور واخلې يا يې له کومې بلې مشروع لارې واخلې.

## يوولسم فصل

## د غير مسلمو (كفارو) سره معاملات

### د كفارو سره كار كول څه حكم لري ؟

د مسلمانانو معاملات د غير مسلمو سره په دوو برخو ويشل شوي دي غير حربي كافر كوم چې د مسلمانانو سره څه معاهده ولري يا ذمې وي او د مسلمانانو سره جنگ نه كوي دوهمه ډله حربي كافران دي كوم چې د مسلمانانو سره د جنگ په حال كې وي.

### اول صورت د غير حربي كافرانو سره معاملات :

د غير حربي كافرانو سره معاملات كول جايز دي په دليل د لاندې ايت شريف :

الله تبارك وتعالى فرمايي : [ لا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ] (الممتحنة:٨).

ژباړه: الله تعالى تاسې له دې كار څخه نه منع كوي چې تاسې له هغو خلكو سره د نيكۍ او عدل چلن وكړئ چې ستاسې سره په دين كې نه وي جنگيدلي او تاسې يې له خپلو كورو څخه نه وی ايستلي ، يقياً الله تعالى انصاف كونكي خوښوي.

بل دليل يې دا حديث دی :أنّ علياً -رضي الله عنه- أجر نفسه ليهودي يسقي له كل دلو بتمرة، فأخبر النبي -صلى الله عليه وسلم- بذلك فلم ينكره. (رواه البيهقي وابن ماجه).

ژباړه : على رضى الله عنه يهودي ته د مزد په بدل كې له ځاه څخه او به ايستلې چې د هرې سلواغې په بدل كې يې يوه خرما مزد وو او كله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ور باندې خبر شو د هغه دا عمل يې رد نه كړ.

همدارنگه په بل حديث شريف راغلي دي :«فعن كعب بن عجرة رضي الله عنه قال :أتيت النبي صلى الله عليه وسلم فرأيته متغيراً فقلت: بأبي أنت، مالي أراك متغيراً؟ قال: ما دخل جوفي ما يدخل جوف ذات كبد منذ ثلاث، قال: فذهبت فإذا يهودي يسقي إبلا له فسقيت له على كل دلو بتمرة، فجمعت تمراً فأتيت به النبي صلى الله عليه وسلم، فقال: من أين لك يا كعب؟ فأخبرته» (رواه الطبراني في الأوسط بإسناد جيد، كما قال الهيثمي في المجمع، وقد حسنه الألباني في صحيح الترغيب).

ژباړه : كعب بن عجرة رضى الله عنه وايي : ما ته رسول الله صلى الله عليه وسلم راغلى چې چهره مباركه يې تغير وه هغه ته مې وويل : ولى دې چهره تغير ده ؟ ويي فرمايل : د دريو ورځو راهيسې مې نس ته څه نه دي داخل كړي (څه مې نه دي خوړلي). نو زه لاړم د يهودي سره مې د پسونو د اوبولو كار وكړ د هغه څخه مې د هرې سلواغې په اوبولو يو خرما اخيسته دا خرما مې ټوله كړه او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته مې وړاندې كړه هغه وفرمايل : اى كعب دا د له كومه كړه ؟ بيا مې هغه په دې كار باندې خبر كړ.

د غير مسلم سره د معاملاتو د جواز د پاره فقهاء كرامو لاندې شرايط بيان كړي دي :

اول: نومړى كار به ذاتاً او آثاراً جايز وي حرام به نه وي، ذاتاً داسې چې په هغه كې به شرعي حرمت نه وي لكه شراب، سود، غلا، ظلم، غصب وغيره.

او اثاراً دا چې هغه كار به د اسلام او مسلمانانو په ضرر نه وي لكه : په ټولنه كې د فحشاء خپرول، د بې دينۍ خپرول، د منكراتو خپرول، كافرانو ته د مسلمانانو جاسوسي كول وغيره چې دا بيا اشد موالات بلل كيږي د ايمان د زوال سبب گرځي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي : المؤمنون عند شروطهم ، إلا شرطاً أحل حراماً أو حرَّم حلالاً(أخرجه أبو داود والترمذي).

ژباړه : مؤمنانو به پر خپلو تړونونو او شرطونو وفا کوي په شرط ددې چې حلال حرام او حرام حلال نه کړي.

په مخکې فصلونو کې ددې مسئلې پوره وضاحت وشو چې کوم شی شرعاً حرام وي د هغه معامله هم حرامه ده.

دوهم: د غير مسلم سره د مسلمان مزدورې او کار کول به د ده دين ته ضرر نه وي مثلاً د لمانځه د قضا کيدو ، يا د جماعت د منع او يا داسې چې په منکراتو حکم ورته کوي چې ږيره وخريه وغيره.

لنډه دا چې دا کار او مزدورې به د ده دين ته ضرر نه رسوي.

دی به د خپل دين شعائر لوړ ساتي او د کافر په مذهبی شعائرو ، عقيدتي امور کې به بالکل کډون نه کوي .

الله سبحانه وتعالی فرمايي :[رِجَالٌ لَا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ](سورة النور الآية ٣٧).

ژباړه : هسې سړي يې ثنا او صفت وايي چې تجارت او راکړه ورکړه يې د الله له يادولو د لمانځه له ودرولو ، د زکات له ورکولو څخه نه بې پروا کوي له هغې ورځې نه ډاريږي چې زړونه پکې اوړي را اوړي او سترګې رډې خيږي.

په حديث شريف کې راغلي : لا ضرر و لا ضرار في الاسلام (رواه مالك في الموطأ).

ژباړه : په اسلام کې ځان او بل ته ضرر رسول حرام دي .

دريم- دا کار او مزدورې به ذليل کسب نه وي لکه : کافر ته د ډوډۍ برابرول ، د دوازې خلاصول ، د هغوی د جامو او لوښو مينځل وغيره څکه

چې الله تعالی (جل جلاله) مسلمان ته پر کافر باندې عزت ورکړی دی نو فقهاؤ دا ډول ذلیل کسبونه مکروه بللی دي.

څلورم : په معامله او کار کولو کې به مسلمان ته اولیت ورکول کیږي بې ضرورته له کفارو سره کار او مزدوري کول صحي نه دي مګر په وخت د ضرورت کې :

[وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ] (٧١ التوبه)

ژباړه : او مؤمنان سړی او مؤمنانې ښځې ځینې د ځینو نورو دوستان دي.

همدارنګه فرمايي : [إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا ] (المائدة:٥٥)

یعنې : یقیناً چې دوست ستاسې الله او د هغه رسول او هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :«المؤمن لمؤمن کالبنیان یشد بعضه بعضا» (متفق علیه)

یعنې: مؤمن د مؤمن د پاره داسې دی لکه ساختمان چې یو برخه یې د بلې برخې په وسیله کلکه شوي وي.

ددې ډلې کفارو سره به په معاملاتو کې مسلمان عدل او انصاب کوي، غلا، رشوت، دوکه، خیانت به نه کوي ځکه مسلمان غل صفته او خاین صفته نشي کیدای ، بلکي پخپل عقد به وفا کوي.

د هغوی سره به په شوي عهد او تړون وفا کوي ، الله تبارک وتعالی فرمايي: [ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ ] (المائدة: من الآية١).

ژباړه : ای مؤمنانو پر خپلو وعدو او تړونونو وفا کوئ.

په معاملاتو کې به عدل کوئ : [ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ وَلا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلَّا تَعْدِلُوا اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ] (المائدة:٨)

ژباړه: ای مؤمنانو! شی قایم د الله تعالی د پاره ګواهي ورکونکي په انصاف او د کوم قوم د دوښمنۍ په وجه انصاف مه پریږدئ عدل کوئ دا خبره ډیره نږدې ده تقوی ته او ویره کوئ له الله نه او کوم اعمال چې تاسې یې کوئ الله تعالی په هغه باندې ښه خبر دی.

د هغوی مال به په ناحقه نه خوري :

الله سبحانه وتعالی فرمايي :[وَلا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ....] (البقره ۱۸۸).

ژباړه : او پخپلو منځو کې خپل مالونه په نا حقه سره مه خورئ.

همدارنګه علی رضی الله عنه وايي :« إنما قبلوا عقد الذمة لتكون أموالهم ودماؤهم كدمائنا ».

يعنې : کله مو چې د ذمي کافر سره تړون وکړو نو د هغوی وینه او مالونه به داسې ګڼئ لکه زمونږ وینې او مالونه.

**دوهم صورت د حربي کافرانو سره معاملات :**

د ټول اسلامې امت په دې اتفاق دی چې کله د اسلام دوښمنان د مسلمانانو په دین ، اسلامي شعائرو او خاوره تیری وکړي نو پر مسلمانانو فرض ده چې له خپل دین څخه دفاع وکړي او د هغوی سره وجنګیږي ، که داسې ونه کړي نو دین او دنیا یې دواړه په سخت خطر دي ځکه خدای مه کړه کله چې کفر حاکم شي دین به له مینځه ځي یا به سخت کمزوری کیږي او په دنیا کې به هم د کفر تر حیواني قانون لاندې خار او ذلیل ژوند تیروي او هغوی به د مسلمانانو په اقتصادي امکاناتو خیټه واچوي .

الله تبارک وتعالی فرمايي :[ وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ] (البقرة :۱۹۰) .

یعنې: او د الله په لار کې له هغو سره وجنګیږئ چې له تاسې سره جنګیږي .

نو چې کله پر مسلمانانو د هغوی سره قتال فرض شو نو بیا د هغوی سره هر ډول مرسته کول که لږ وي او که ډیر او په هر شکل چې وي حرام دي ، او د هغوی سره معاملات ، شرکت کول ، مزدوري کول هغوی ته د نظامي موادو ، غذایي موادو لکه سلاح ، مهمات ، تیل ، درمل ، طعام و غیره ور وړل یا د هغوی د انسجام په ادارو کې کارکول او همدارنګه د هغوی د اډو او استوګنځیو جوړول یا د هغوی ترجماني کول ټول حرام دي او دا په اسلام کې موالات بلل کیږي.

لقوله سبحانه وتعالى : [لا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ] (آل عمران:٢٨).

ژباړه : (مؤمنان) پرته له مؤمنانو څخه کافران ، دوستان او واکمنان نه نیسي او هر څوک چې دا (کار) وکړي نو د الله (له دوستۍ) څخه (ورته) څه نشته (خپلې اړیکې یې له الله سره وشلولې).

او فرمايي :[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَتَّخِذُواْ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاء بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللّهَ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ] (المائده ٥١).

ژباړه :اې مؤمنانو! یهود او نصارا خپل ملګري مه نیسئ دوی په خپلو مینځو کې سره ملګري دي او که له تاسې څخه څوک هغه خپل ملګري ونیسي نو بیا هغه هم په همغوی کې شمیرل کیږي ،پدې کې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوني بې برخې کړي دي .

او د داسې پیسو په لاس راوړلو نه  د اور سکروټې غوره دي.

جناب نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمايي :«أي لحم نبت من حرام ، فالنار أولى به» (الترمذي).

يعنې : كومې غوښې (بدن) چې په حرامو تغذيه شوي وي تر هغه څخه اور غوره دى.

په قرآنكريم كې د حربي كفارو سره معاملات كول حرام گرځول شوي دي:

لقوله تعالى :[إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَى إِخْرَاجِكُمْ أَن تَوَلَّوْهُمْ وَمَن يَتَوَلَّهُمْ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ] (الممتحنة:٩)

ژباړه: الله تعالى تاسې منع كوي له دوستۍ د هغو خلكو چې ستاسې سره په دين كې جنگيدلي وي او تاسې يې له خپلو كورو ويستلى وى او هغه چې شريک شول په ويستلو د تاسې كې او څوک چې د دوى سره دوستي كوي پس هغه دي ظالمان.

د پورت آيت شريف په رڼا كې د فقهاء كرامو په اتفاق د حربي كافرو سره هغه كافران چې د مسلمانانو سره د جنگ په حال كې وي معاملات كول حرام دي (فتاوي اللجنة الدائمة ، فتاوي اسلامية ، تحريم الصلح مع اليهود سنة ١٩٥٦م ، فتوى علماء المسلمين عام ١٩٨٩م بحرمة التعامل مع إسرائيل).

فقط ځينو فقهاؤ د هلاكت په وخت كې اجازت وركړى دومره قدرې چې نفس د مرگ او هلاكت څخه خلاص شي. والله -تعالى- أعلم.

ددې مسئلې د څېړنې لپاره مو په مياشتو تحقيق وكړ ، د اسلامي نړى معتبر شرعي منابع مو ولوستل د فائدې لپاره يې يوه برخه دلته را نقلوو :

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وآله، أما بعد:

فقد اتفق أهل العلم على أنَّ التعامل مع غير أهل الإسلام مشروع بضوابطه الشرعية وتأجير المسلم نفسه عند غير المسلم، أمر لا حرج فيه -إن شاء الله

تعالى- إذا توافرت شروطه التي سيأتي ذكرها ـإن شاء الله تعالىـ. ومما استدل به العلماء على جواز ذلك، ما يلي:

١) حديث كعب بن عجرة -رضي الله عنه- قال: أتيت النبي -صلى الله عليه وسلم- فرأيته متغيراً، قال: فقلت: بأبي أنت مالي أراك متغيراً؟ قال: ما دخل جوفي ما يدخل جوف ذات كبد منذ ثلاث قال: فذهبت فإذا يهودي يسقي إبلًا له فسقيت له على كل دلو بتمرة، فجمعت تمراً وأتيت به النبي -صلى الله عليه وسلم- فقال: من أين لك يا كعب؟ فأخبرته، فقال النبي -صلى الله عليه وسلم-: أتحبني يا كعب؟ قلت: بأبي أنت نعم. وقد رواه الطبراني، وجود إسناده غير واحد من أهل العلم.

٢) ما ورد من أنّ علياً -رضي الله عنه- أجر نفسه ليهودي يسقي له كل دلو بتمرة، فأخبر النبي -صلى الله عليه وسلم- بذلك فلم ينكره. رواه ابن ماجه. وهو وإن كان في سنده مقال إلا أنه قد احتج به بعض أهل العلم بشواهده.

والقاعدة في هذه المسألة: أنه يجوز للمسلم العمل عند الكافر -سواء كان هذا الكافر فرداً عادياً أو مسؤولاً في شركة- بثلاثة شروط:

الأول: أن يكون العمل الذي سيقوم به الأجير المسلم لمصلحة الكافر، مباحاً ومشروعاً في ذاته، وفي آثاره.

فالمباح في ذاته، كبناء دار، أو قيادة مركبة في تسويق بضاعة مباحة، أو توريد خضروات أو بيع أسماك، ونحو ذلك، فهذا جائز.

بخلاف ما لو كان هذا العمل محرماً في ذاته، كتسويق المحرمات ونقل الخمور، ورعي الخنازير وتسويق لحومها، وتصميم الدعايات لها أو لغيرها من الأمور المحرمة، كالربا وبنوكه ومعاملاته، ونحو ذلك؛ لأنَّ العمل المحرم لا يجوز للمسلم القيام به أصلاً.

وقد نص الفقهاء على أن من يفعل ذلك من المسلمين يستحق التعزير بعقوبات منها: مصادرة ما يأخذه من الكافر من أجرة أو راتب.

وأما إباحته ومشروعيته في آثاره، فكتوريد السيارات ووسائل الاتصال المشروعة، وبناء المصانع في ديار أهل الإسلام، و الأعمال الإعلامية التي تخدم الإسلام وأهله، وترجمة المسلم الأمين الحاذق للمواقع الإسلامية، والكتب الشرعية، لبعض الجامعات والمراكز العلمية الجادة في ديار الكفر، ونحو ذلك، فهذا جائز ومشروع.

بخلاف ما لو كان في هذا العمل ضرر على الإسلام أو المسلمين؛ كالعمل الإعلامي الموجه ضد الإسلام وأهله، مراسلاً كان هذا الأجير المسلم أو محرراً أو منسقاً، أو فنياً ، و مثله وأشد: العمل التجسسي ضد المسلمين بجميع صوره وأشكاله.

وهذه الأمثلة الأخيرة من أخطر الأعمال أثراً؛ لأنَّها من أعظم صور موالاة أهل الكفر وتوليهم _والعياذ بالله_، فالجرم فيها أشد، وقد تقدح في إسلام المسلم فضلاً عن إيمانه.

وخلاصة هذا الشرط ، أنه يحرم القيام بأي عمل محرم كعصر خمر أو بيع لحوم ميتة أو خنزير أو صيانة آلات طرب أو تصوير حفلات فيها نساء أو فجور؛ كما يحرم العمل في كل ما فيه ضرر على أهل الإسلام كالتجسس، بل ولو كان العمل في أصله مباحاً، كالكتابة والترجمة، وذلك إذا كان لجهات متربصة بأهل الإسلام.

وتختلف درجات الحرمة باختلاف العمل المحرم، وربما يصل إلى الكفر _والعياذ بالله_ كما سبق.

الثاني: ألا يعود على الأجير المسلم في هذا العمل أو بسببه ضرر في الدين؛ كما لو لم يسمح له صاحب العمل بأداء الصلوات أو حضور الجمع والجماعات

مثلاً.

الثالث: ألا يشتمل هذا العمل على مذلة أو مهانة للمسلم؛ كالخدمة الشخصية الخاصة، من مثل تقديم الطعام له، أو تقريب حذائه، أو الوقوف بين يديه، أو فتح باب السيارة له، ونحو ذلك.

ومما ينبغي التنبيه عليه أن يتورع المسلم من العمل في شركة يرى علماء الإسلام مصلحة شرعية في مقاطعة بضاعتها أو خدماتها مقاطعة اقتصادية، حتى لا يكون عوناً لأعداء الإسلام. والله -تعالى- أعلم.

**حكم التعامل المالى مع غير المسلمين المسالمين منهم والمحاربين**

- الإسلام دين التعايش السلمى مع غير المسلمين:

الإسلام دين عالمى يدعو إلى السلام والتعاون وتحقيق الخير للناس جميعاً فى إطار مجموعة من الضوابط المستنبطة من مصادر الشريعة الإسلامية ، ولم يُحَرِّمْ هذا الدين المعاملات المالية والتجارية وغيرها مع غير المسلمين ، ومن الأدلة على ذلك دور التجار المسلمين فى صدر الدولة الإسلامية فى التجوال فى أنحاء العالم وتعاملهم مع غير المسلمين تجاراً ودعاة ، وبفضل جهودهم تمكنوا من التعريف بدين الله واعتنق كثير منهم الإسلام عن إيمان راسخ وأصبحوا فيما بعد من رواد الدعوة الإسلامية.

♦ حكم التعامل مع غير المسلمين

لا تحرم الشريعة الإسلامية المعاملات مع غير المسلمين المسالمين بضوابط شرعية تتمثل فى الآتى :

١) العدل وعدم الاعتداء أو ظلم الآخرين حتى ولو كانوا من غير المسلمين ، ودليل ذلك قول الله تبارك وتعالى : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ وَلا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلَّا تَعْدِلُوا اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ } [المائدة:٨].

٢) البر والإحسان والمعاملة بالمثل ، ودليل ذلك من القرآن الكريم قول الله تبارك وتعالى: { لا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ { [الممتحنة:٨].

٣) الوفاء بالعهود والعقود ودليل ذلك قول الله تبارك وتعالى : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ { [المائدة: من الآية١].

٤) المشروعية ، ويُقصد بها أن تكون العقود والعهود والمعاملات وما فى حكم ذلك متفقة مع أحكام ومبادئ الشريعة الإسلامية من حيث إنفاذ الحلال وإبطال الحرام وهذا وفقاً للقاعدة الشرعية التى تقول : ((المؤمنون عند شروطهم ، إلا شرطاً أحل حراماً أو حرَّم حلالاً)).

٥) عدم المساس بمقاصد الشريعة الإسلامية ، ويقصد بذلك عدم الإضرار بالدين والنفس والعقل والعِرضوالمال ، فلا ضرر ولا ضِرار.

٦) الأولوية للتعامل مع المسلمين فهم أولى بالرعاية ، ودليل ذلك من الكتاب قول الله U : { وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ { [التوبة:٧١] ، وقولـه سبحانه وتعالى : { إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا { [المائدة:٥٥] ، وقول الرسول r : p المؤمن لمؤمن كالبنيان يشد بعضه بعضا i [البخارى ومسلم] ، ولا يكون التعامل مع غير المسلمين إلا عند الحاجة.

٧) حرمة الاعتداء على أموالهم سواء بالسرقة أو الغصب أو الإتلاف أو نحو ذلك ، وأكد ذلك على بن أبى طالب رضى الله عنه فقال : ((إنما قبلوا عقد الذمة لتكون أموالهم ودماؤهم كدمائنا)).

وفى ضوء هذه القواعد والضوابط تكون المعاملات المالية مع غير المسلمين المسالمين مشروعة ، والمال المكتسب منها حلال ، فالإسلام دين عالمى يدعو إلى الخير ويأمر بالمعروف وينهى عن المنكر.

♦ حكم التعامل المالي مع غير المسلمين المحاربين

لقد أفتى فقهاء الأمة بحرمة التعامل مع دولة معتدية محاربة ، أما بالنسبة للدولة التى توالى وتدعم الدولة المحاربة فيجوز التعامل معها عند الضرورة التى تُقاس بقدرها ، وتفصيل ذلك فى الفتاوى الصادرة عن دار الإفتاء ولجنة الفتوى بالأزهر وبيان شيوخ الأزهر على التتابع والتوالى وفتاوى مجامع الفقه الإسلامية العالمية.

ومن الأدلة التى اعتمد عليها الفقهاء هى قول الله تبارك وتعالى : { لا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِي شَيْءٍ إِلَّا أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقَاةً وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ { [آل عمران:٢٨] ، وقوله r : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ { [المائدة:٥١] ، وقوله سبحانه وتعالى : { إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ { [الممتحنة:٩].

ولقد أجاز فريق من الفقهاء التعامل معهم عند الضرورة فقط والتى تؤدى إلى هلاك النفس أو أعضاء من البدن أو نحو ذلك وفقاً للضوابط الشرعية التى وضعها الفقهاء للضرورة.

وتأسيساً على ما سبق فإن المال المُكتسب من المعاملات مع غير المسلمين المحاربين يعتبر حراماً يجب تطهيره وفقاً للضوابط الشرعية والكيفية التى سبق أن أشرنا إليها فى مواضع سابقة والتى تتلخص فى : التوبة والاستغفار والعزم الأكيد على تجنب مثل هذه المعاملات فى المستقبل والتخلص من هذا المال فى وجوه الخير العام.

♦ حكم التعامل مع الصهاينة وفقاً لاتفاقية الكويز

لقد حَرَّمت الشريعة الإسلامية التعامل مع العدو الصهيونى طبقاً لهذه الاتفاقية باعتبار الكيان الصهيونى د/ر حرب ، ولقد صدر فى هذا الشأن العديد من الفتاوى والبيانات منها على سبيل المثال ما يلى:

- فتوى علماء الأزهر فى تحريم الصلح مع اليهود سنة ١٩٥٦م.
- فتوى علماء المسلمين عام ١٩٨٩م بالأزهر بحرمة التعامل مع إسرائيل.
- فتوى فضيلة الإمام الأكبر جاد الحق على جاد الحق ، مارس ١٩٩٤م بحرمة التعامل مع

إسرائيل.

- فتوى الإمام الأكبر الدكتور محمد سيد طنطاوى ، إبريل ١٩٩٦م بالمقاطعة مع المعتدين.
- دكتور شوقى أحمد دنيا ، [القواعد الشرعية المنظمة للعلاقات الاقتصادية بين الدول الإسلامية وغير الإسلامية] ، بحث مقدم إلى مركز صالح عبد الله كامل بجامعة الأزهر ، مايو ١٩٩٩م
- المستشار سالم البهنساوى ، [قواعد التعامل مع غير المسلمين] ، دار الوفاء ، ٢٠٠٤م.
- الدكتور عطية فياض ، [فقه المعاملات المالية مع أهل الذمة وغيرهم] ، دار النشر للجامعات ، ٢٠٠٣

ويُطلق على الصهاينة فى كتب الفقه الإسلامى : " أهل الحرب " فلا أمان لهم ولا عهد ، وأصل ذلك قول الله تبارك وتعالى : { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ } [المائدة:٥١] ، وتأسيساً على ذلك لا يجوز للأفراد أو رجال الأعمال التعامل مع الصهاينة.

د پورته مسئلې د څېړنې پای

**په غير اسلامي هيوادونو کې د مسلمان د پاره څه ډول کار جايز دی ؟**

ځواب:

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

د غير حربي کافر سره په هغو امورو کې چې شرعاً مباح وي کار او مزدورې کول په لاندې شرايطو جايز دی.

۱- نومړی کار به ذاتاً او آثاراً جايز وي حرام به نه وي ، ذاتاً داسې چې په هغه کې شرعي حرمت نه وي لکه شراب ، سود ، غلا ، ظلم ، غصب وغيره. او اثاراً دا چې هغه کار به د اسلام او مسلمانانو په ضرر نه وي لکه : په ټولنه کې د فحشاء خورول ، د بې دينی خورول ، د منکراتو خورول ، کافرانو ته د مسلمانانو جاسوسې کول ، د اسلام او مسلمانانو پر خلاف د کافرانو مرسته کول وغيره چې دا بيا اشد موالات بلل کيږي د ايمان د زوال او ارتداد سبب گرځي.

۲- د غير مسلم سره د مسلمان مزدورې او کار کول به د ده دين ته ضرر نه وي مثلاً د لمانځه د قضا کيدو ، يا د جماعت د منع او يا داسې چې په منکراتو حکم ور ته کوي چې ږيره وخريه وغيره.

لنډه دا چې دا کار او مزدورې به د ده دين ته ضرر نه رسوي.دی به د خپل دين شعائر لوړ ساتي او د کافر په مذهبی شعائرو ، عقيدتي امور کې به بالکل کډون نه کوي .

فتاوى فقهية معاصرة نه په دې باره کې پوښتنه شوې ده چې :

د غير اسلامې هيوادونو د حکومت په دوائرو کې په خاص ډول د صنايعو په دوائرو او يا د استراتژې او نورو کې کار کول څه حکم لري ؟

ځواب : د مسلمان د پاره په غیر اسلامې دوائرو کې په دې شرط کار کول جایز دي چې شرعاً مباح او د مسلمانانو په ضرر نه وي.

ما حكم عمل المسلم في دوائر ووزارات الحكومة في البلاد غير الإسلامية خاصة في مجالات هامة كالصناعة الذرية أو الدراسات الإستراتيجية ونحوها؟.

الجواب: يجوز للمسلم العمل المباح شرعاً في دوائر ومؤسسات حكومات غير إسلامية إذا لم يؤد عمله ذلك إلى إلحاق ضرر بالمسلمين. (فتاوى فقهية معاصرة – مدينه منوره)

(مجمع الفقه الإسلامي، جدة، الدورة الثالثة، القرار رقم (١١)، السؤال الرابع والعشرون).

و الله سبحانه و تعالی

## د کافر څخه غلا کول روا دي او که نه ؟

اسلام علیکم ورحمته الله وبرکاته!

محترمو استاذانو او د اسلامي نړۍ ستنو د تاسو له زحمت او تکلیف څخه یو نړۍ مننه چی اسلامي لارښونې کوئ.

دوه سوالونه لرم هغه دا چې آیا د هغو مسلمانانو له شرکتونو سره چی د کفارو لپاره مواد جوړوي او یا د هغو په پیسو باندې کار کوي ددې شرکتونو سره کار یا مزدوري کول هم حرام دي او که څنګه لکه نن په افغانستان کې؟ او دوهمه پوښتنه دا ده چې ایا د حربي کفارو مال حلال دی او که حرام دی که څوک یی څینې غلا کړي او په بله طریقه یعنې چل ورسره ورکړي او بیا یې مجاهدینو ته ورکړي؟ مننه د ځواب په انتظار.

ځواب:

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

نه مسلمان غل صفته ، خاين صفته او فريب ورکونکی نشي کيدای ، غلا ، دوکه په اسلام کې حرام دي لوی ګناهونه دي غلا کول حرام دي هغه که د کافر څخه وي او که د مسلمان څخه.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«لَعَنَ اللهُ السَّارِقَ» (رواه البخاري (٦٧٨٣) ومسلم (١٦٨٧) .

يعني : په غله باندې د الله لعنت دی.

او د سارق يا غله حد په اسلام کې د لاس پرې کول دي.

همدارنګه فريب او دوکه ورکول حرام او په اړه يې سخت وعيد دی رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«ومن غشنا فليس منا» (راوي : ابوهريره – المسلم ١٠١) .

يعنې : او چا چې مونږ ته فريب راکړ له موږ څخه نه دی.

په اسلام کې خيانت ، غلا ، رشوت او فريب وجود نه لري بلکي د عدل او انصاب دين دی .

لقوله سبحانه وتعالى:[وَيَا قَوْمِ أَوْفُواْ الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلاَ تَبْخَسُواْ النَّاسَ أَشْيَاءهُمْ وَلاَ تَعْثَوْاْ فِي الأَرْضِ مُفْسِدِينَ ](هود:٨٥).

ژباړه : او ای زما قومه ، پيمانه او تله په انصاف سره پوره ورکړئ. خلکو ته د دوی شيان مه کموئ او په ځمکه کې فساد ته لاس مه اچوئ.

[وَلاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُواْ بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُواْ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ] (البقرة: ١٨٨).

ژباړه: او تاسې خپل مالونه په خپلو مينځو کې په ناروا مه خورئ او مه يې واکدارانو ته وروړئ تر څو پرې د خلکو د مالونو يوه برخه په ناروا سره وخورئ او تاسې پوهيږئ چې دا مال پردی او ناروا دی .

په پورته آيتونو کې د الناس کلمه عامه ده يعنې کافر او مسلمان باندې د هغه اطلاق کيږي.

او دا چې خلک وايي د حربي کافر مال مباح دی هغه د هر چا د پاره مباح نه دی بلکې د حربي کافر اسير او د هغه څخه نيول شوی مال غنيمت دی هغه به د مسلمانانو مسئول امير ته سپارل کيږي او هغه به يې د اسلامې شريعت له مخکې تقسيموي.

ځکه په غلا کې له خلکو څخه په ناحقه سره مال په پټه وړل کيږي چې په اسلامې شريعت کې داسې کول حرام او د داسې عمل د پاره حد ټاکل شوی دی.

او د جهاد په وخت کې چې د کفارو څخه کوم مال نيول کيږي نو هغه په حکم د في او غنيمت کې دی کوم چې د مجاهدينو د پاره الله (جل جلا له) حلال گرځولی دی، لقوله تعالى :[فكلوا مما غنتم حلالاً طيباً] ، او همدارنگه په غزواتو کې د رسول صلى الله عليه وسلم فعل .

**د خارجي مؤسسياتو سره کار کول څه حکم لري ؟**

ځواب :

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

په دې کې شک نشته چې اکثراً خارجي مؤسيسات د حربي کافرو (يرغلگرو) سره د هغوی په شومو اهدافو کې شامل دي ځينې مستقيماً نظامي فعاليت کې شرکت لري ، ځينې مسيحيت خپروي ، ځينې فحشاء او بې دينې خروي او ځينې يې په فکري او تبليغاتي شکل مرسته کوي.

د ټول امت په اتفاق د حربي کافرو سره د اسلام او مسلمانانو پر وړاندې هر ډول مرسته په هر شکل چې وي حرام او موالات بلل کيږي

وقد نص فقهاء الإسلام في كتبهم من أئمة الحنفية والمالكية والشافعية والحنابلة وغيرهم من فقهاء الإسلام على تحريم بيعهم ما يستعينون به على

المسلمين سلاحاً أو عتاداً أو دواباً فلا يجوز أن يعطوا طعاماً ولا أن يباع لهم طعام ولا شراب ولا ماء ولا خيام ولا شاحنات ولا نقل ولا أن تعقد معهم عقود صيانة أو نقليات ونحو ذلك والكسب الناتج عن ذلك كسب خبيث حرام ، وهو سحت، والسحت النار أولى به.

ژباړه: د فقهاؤ په اتفاق لکه ائمه حنفي ، مالیکي ، شافعي ، حنبلي او د امت نورو فقهاؤ په نزد د حربي کفارو سره بیع ، تجارت یا معاملات چې د مسلمانانو په مقابل کې د هغوی مرسته او مدد ور باندې کیږي حرام دي لکه سلاح ، او همدارنگه په هغوی باندې د خیمو ، خوراک او څښاک موادو خرچول حرام دي ، د هغوی د نظامي او حربي وسائلو نقل او هغوی ته د سامان برابرول او نور حرام دي ددې کسب نه کټلی مال خبیث دی ، او تر دې مال نه د اور سگوټې غوره دي.

او هغه کارونه چې د هغوی مرسته نه ورباندې کیږي بلکي د عامه خلکو لپاره کارول کیږي د جلب مصلحت لپاره جایز دي.

اوس به ددې مسئلې د وضاحت لپاره د معاصرو فقهاؤ هغه نظرونه چې د عراق او افغانستان په اړه یې وړاندې کړي دي ولولو :

په عراق او افغانستان کې د اشغالگرو سره د کار کولو په **اړه** علامه عبدالرحمن بن ناصر البراک فتوی :

مونږ په عراق کې د امریکایي اشغال سره مخ یو ، لکه څنگه چې تاسې پوهیږئ هلته داسې دندې او وظیفې دي چې د اشغالگرو په سلطه کې قرار لري ، (چې ددې دندو تر سره کول) د هیواد سره خیانت او اشغالگرو سره مرسته او د هغوی د اشغال پر وړاندې سکوت دی.

زما سوال دا دی چې : آیا د یوه مسلمان د پاره جایزه ده چې د اشغالگرو امریکایي فوځیانو سره په عراق کې کار وکړي ؟

جزاكم الله خيرا

الحمدلله، بې له شکه نن د لويو بلاوو څخه چې په اسلامې امت باندې راغلی دي يو هم امريکايي تسلط دی – پر هغوی دې د الله لغت وي – د مسلمانانو پر وړاندې د هغوی جنګيدل دي ، لکه څنګه چې د افغانستان په هيواد کې هم جريان لري ، هلته يې موجود حکومت نسکور کړ او پر ځای يې د خپلې رايې غلام حکومت ايجاد کړ تر څو د دوی شوم اهداف عملي کړي.

او همدارنګه په عراق يې د دوهم ځل د پاره هغوی (اشغالګر) د يوه غلام حکومت جوړولو په کوښښ کې دي.

په عمومي توګه پر ټولو مسلمانانو او په خصوصي توګه د اشغال شويو هيوادونو پر مسلمانانو باندې واجبه ده چې پر هره وسيله چې ممکنه وي د هغوی پر وړاندې مقاومت وکړي ، هيڅ مسلمان ته جايزه نه ده چې د هغوی د اهدافو په عملي کولو کې د هغوی سره مرسته وکړي ځکه دا مرسته په اصل کې پر اسلام باندې د کفر د غلبې د پاره مرسته کول دي.

د اشغالګرو په داسې امورو کې کار کول حرام دي چې هغوی خپلو اهدافو ته رسوي ځکه چې دا د کفر او منکر په کار کې مرسته ده او داسې کول حرام دي :

[وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ] (مائده ٢).

مګر هغه کارونه چې د هغه په وسيله د مسلمانانو مصالح خوندي کيږي ، د شر ، غلو ، سارقينو ، د خلکو پر حقوقو باندې د تجاوز له مينځه وړل وي.

او يا لکه په روغتون کې کار کول که څه هم د اشغالګرو تر سلطې لاندې وي خو بيا هم جايز دی ځکه ددې کارونو ترک کول مشکلات نور هم زياتوي ، حال دا چې په اسلامې شريعت کې د توان پر بناء د مصالح د جلب او د

مفاسدو له مینځه وړل دي : لکه څنګه چې الله جل جلا له فرمايي:[فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ](تغابن ١٦).

"فتوي علامه عبدالرحمن بن ناصر البراک؛ د فتوي شمیره (١٠٨٨٩)".

د فتوى عربي متن :

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

نحن في العراق ومع الاحتلال الأمريكي وكما تعلمون هناك وظائف مرتبطة بقوات الاحتلال وقد يتطلب الامر فيها خيانة البلد او معاونة المحتل او السكوت على تصرفات المحتلين الامريكان، سؤالي: هل يجوز للمسلم العمل مع قوات الاحتلال الامريكي في العراق ؟ افيدونا جزاكم الله خيرا وسدد الله مسعاكم لخدمة الدين.

الإجابة

الحمد لله، لا ريب أن من أعظم البلاء الذي حل بالأمة الإسلامية تسلط الدولة الأمريكية – لعنهم الله – على المسلمين وغزوهم، كما جرى في بلاد الأفغان، حيث أطاحوا بدولة طالبان وأقاموا دولة عميلة لهم، تأتمر بأمرهم وتسير حسب توجيهاتهم، وكما جرى ثانياً في العراق، وهم بصدد إقامة دولة عميلة كذلك، والواجب على المسلمين عموماً، وعلى أهل البلاد المحتلة خصوصاً أن يقاوموا هذا الغزو بكل الوسائل الممكنة، ولا يجوز لمسلم أن يعينهم على تحقيق أهدافهم، فإن ذلك من مظاهرة الكفار على المسلمين، والعمل مع قوات الاحتلال في وظائفهم التي تعينهم على تنفيذ أهدافهم وتحقيق مطامعهم حرام؛ لأن هذا نوع من مظاهرتهم، وقد نهانا الله تعالى عن ذلك بقوله: {ولاتعاونوا على الاثم والعدوان} سورة المائدة(٢)، وأما الوظائف التي يتوصل بها إلى تحقيق مصالح المسلمين والمسالمين، وتدرأ شرورالمفسدين من اللصوص والمعتدين على الحرمات، كالعمل في المستشفيات، فهذا النوع من الوظائف يجوز العمل فيها، وإن كانت تحت

إدارة قوات الاحتلال؛ لأن ترك هذه الوظائف و التخلي عنها يزيد الأمر شدة، وتعظم به المصيبة، وشريعة الإسلام تقوم على جلب المصالح ودرء المفاسد بحسب القدرة والإمكان، كما قال تعالى: (فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ) (التغابن: من الآية١٦). والله أعلم.

د جامع الازهر د استاذ دوکتور عبدالفتاح ادریس فتوی :

د اشغالگرو سره په هر شکل او هر صورت مساعدت او مشارکت په هر هغه عمل کې چې د مسلمانانو پر ضد وي په هر هیواد کې چې وي حرام دی ، په دې باره کې د اسلامې شریعت د منع ډیر نصوص راغلی دي د هغه څخه یو هم دغه قول د الله (جل جلا له) دی چې فرمایي :

[وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ] ( المائدة :٢)

څوک چې په عراق کې د امریکایي اشغال سره مرسته کوي هغوی د مسلمانانو د وینې په تویولو کې شریک دي ، او د امریکایي اشغالگرو سره دغه مساعدت د کفارو سره موالات (د اسلام پر وړاندي د کفر مرسته کول) دي ، او هر چا چې د کفارو مولات وکړل هغوی د کفارو په ډله کې شمیرل کیږي ، الله (جل جلا له) فرمایي :

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَتَّخِذُواْ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاء بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللّهَ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ] (المائده ٥١).

ژباړه :اي مؤمنانو! یهود او نصارا خپل ملگري مه نیسئ دوی په خپلو مینځو کې سره ملگري دي او که له تاسې څخه څوک هغه خپل ملگري ونیسي نو بیا هغه هم په همغوی کې شمیرل کیږي ،پدې کې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښونې بې برخې کړي دي.

د هغه چا د پاره نه ښایي چې اسلام یې غوره او خوښ کړی وي بیا د اسلام لوی نعمت په څو ډالرو خرڅ کړي.

علاوه له دې دوی به په ټولو هغو جرمونو کې شامل وي کوم چې په عراق کې دغو قواوو تر سره کړي دي لکه : د بې ګناه خلکو وينې تويول چې بله ګناه يې نه وه بلکې ګناه يې دا وه چې ويل يې رب زمونږ الله دی، د مسلمانو ښځو په عفت باندې تجاوز، د مسلمانانو د جسدونو تمثيل، د کورونو ړنګول، د خلکو د عزت او آبرو پيمالول، لواطت او داسې منکرات چې په ژبه باندې د هغه بيانول سخت دي.

ويقول الأستاذ الدكتور عبد الفتاح إدريس ـ الأستاذ بجامعة الأزهر: فإنَّ هذه المساعدة محرمة بكل صورها وأشكالها ودوافعها، بل إن المشاركة أو المساعدة في أي عمل يتم ضد المسلمين في أي بقعة من بقاع الأرض حرام، لورود النصوص الكثيرة الناهية عن ذلك، والتي منها قول الله تعالى:[وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ] (المائدة :٢ ).

وما يريد مسلمو أمريكا فعله في العراق بلغ الغاية في العدوان؛ لأنه اشتراك في إراقة دماء المسلمين، يضاف إلى هذا أن مساعدة جيش الاحتلال الأمريكي موالاة لكافر، ومن يوالي كافرا فإنه مثله، قال تعالى: [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَتَّخِذُواْ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاء بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ] (المائدة : ٥١) ، ولا ينبغي لمن رضي الإسلام دينا أن يخلع عن نفسه نعمة الإسلام من أجل حفنة دولارات، فضلا عن هذا فإنَّه يكون مشاركا لهذه القوات فيما ترتكبه من منكرات في العراق، من سفك دماء أبرياء لا ذنب لهم إلا أن قالوا: ربنا الله، وهتك أعراض المسلمات واغتصابهن، والتمثيل بجثث المسلمين، وهدم البيوت على الآمنين، وهتك أعراض الرجال، واقتراف اللواط، ونحو ذلك من منكرات يعف لسان السوي عن ذكرها.

د بغداد د جامع الشريعه استاذ دوکتور ساجد الدليمي نظر: هر څوک چې اشغالګرو سره کار کوي د خپل ملک او قوم سره خيانت کوي

ځکه چې اشالګر د ملک د اشغال او نابودي او تخریب ، د خلکو وژلو ، او دینې ازرښتونو د نابودی د پاره راغلی دي ، مونږ ډیر عراقي ترجمانان لیدلي دي کوم د امریکایي فوځ سره کار کوي دوی د خلکو شکایات نه قبلوي یا یې د هغوی تر غوږونو نه رسوي مګر دا چې د شکایت رسولو په مقابل کې څه مبلغ د رشوت په توګه اخلي ، ځینې د دوی اشغالګرو ته د خپل هیواد او هیوادوالو جاسوسي کوي.

و يضيف الدكتور ساجد الدليمي ـ كلية الشريعة بجامعة بغداد ـ العراق: إنَّ كل من يعمل مع المحتل يعتبر عميلا، وخائنا لبلده وشعبه؛ لأنَّ قوات الاحتلال جاءت لاحتلال البلاد وتدميرها وقتل الناس وهدم قيم الدين، وقد رأينا كيف أن معظم المترجمين العراقيين الذين رافقوا القوات الأمريكية كانوا يعملون أدلة لقوات الاحتلال، وكانوا لا يقبلون إيصال شكاوى الناس إلا بعد أن يفرضوا على المشتكي مبلغا من المال كرشوة لطرح شكواه على الأمريكان، كما أن بعضهم عمل جاسوسا على وطنه وأهل بلاده.

د موقع الاسلام سوال جواب فتوی :

ایا د یوه مسلمان تجار د پاره جایز ده چې د کفارو په فوځ باندې کوم چې د مسلمانانو سره جنګیږي څه وسائل، تجهیزات، غذا و پلوري او یا د هغوی سره د کمپاین (انتقالاتو او ساتنې) تړول وکړي ؟

ځواب

الحمد لله

د علماء اسلام په نزد د مسلمانانو پر وړاندې د کفارو د سلطې د پاره مرسته او مدد کول حرام دي او دا سي کول د ایمان زوال دی .

لقول الله تعالى:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَتَّخِذُواْ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاء بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللّهَ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ] (المائده ٥١).

ژباړه :اي مؤمنانو! يهود او نصارا خپل ملګري مه نيسئ دوى په خپلو مينځو کې سره ملګري دي او که له تاسې څخه څوک هغه خپل ملګري ونيسي نو بيا هغه هم په همغوى کې شميرل کيږي ،يدې کې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښونې بې برخې کړي دي

د فقاؤ په اتفاق لکه ائمه حنفي ، ماليکي ، شافعي ، حنبلي او د امت نورو فقهاؤ په نزد د حربي کفارو سره بيع ، تجارت يا معاملات چې د مسلمانانو په مقابل کې د هغوى مرسته او مدد ور باندې کيږي حرام دي لکه سلاح ، او همدارنګه په هغوى باندې د خوراک او څښاک د موادو خرڅول حرام دي ، د هغوى نقل او هغوى ته د سامان برابرول او نور حرام دي ددې کسب نه ګټلى مال خبيث دى ، او تر دې مال د اور سګوټې غوره دي.

حكم مساعدة الكفار في عدوانهم على المسلمين

تاجر مسلم عرض عليه فرص تجارية ذهبية عبر بيع معدات أو أغذية أو القيام بعقود صيانة ونقليات وتركيبات لجيش كافر يحارب المسلمين ، فما حكم هذه الأعمال التجارية ؟.

الحمد لله

قرر علماء الإسلام أنه لا يجوز مظاهرة الكفار على المسلمين وأن ذلك كفر وردة لقول الله تعالى : (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ) الآية المائدة / ٥١

وقد نص فقهاء الإسلام في كتبهم من أئمة الحنفية والمالكية والشافعية والحنابلة وغيرهم من فقهاء الإسلام على تحريم بيعهم ما يستعينون به على

المسلمين سلاحاً أو عتاداً أو دواباً فلا يجوز أن يعطوا طعاماً ولا أن يباع لهم طعام ولا شراب ولا ماء ولا خيام ولا شاحنات ولا نقل ولا أن تعقد معهم عقود صيانة أو نقليات ونحو ذلك والكسب الناتج عن ذلك كسب خبيث حرام ، وهو سحت، والسحت النار أولى به. و الله سبحانه و تعالى اعلم.

**په خارجي هيواد کې په هوټل کې کار کول څه حکم لري ؟**

که يو څوک په خارجي هيواد کی په هوتل کی کار کوی نو د هغی پيسی حلالی دی او که حرمی دی؟

ځواب:

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

په خارجي هيوادونو کې د مسلمان د پاره مباح کارونه جايز دي.

مباح داسې چې ذاتاً او آثاراً حلال وي، ذاتاً دا چې په هغه کې شرعي حرمت نه وي لکه: شراب، د خنزير غوښه، سود، فحشاء او غيره او اثاراً دا چې هغه کار د اسلام او مسلمانانو پر خلاف نه وي.

په هوټل کې په دې شرط کار جايز دی چې په هغه کې د خنزير د غوښې پخول او خلکو ته ورکول ، د شرابو برابرول او د هغه انتقال او خلکو ته د څښلو د پاره ورکول نه وي جايز دی او که دا ډول کارونه وي نو د مسلمان د پاره جايز نه دي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :«لَعَنَ اللَّهُ الْخَمْرَ وَشَارِبَهَا وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا وَمُبْتَاعَهَا وَعَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ» ابوداود او سلسلة صحيحة ٢٣٨).

يعنې : الله تعالى لعنت کړی دی په شرابخور ، ساقي (کوم چې د څښلو د پاره شراب برابروي) ، د شرابو خرڅونکی او اخیسونکی، د شرابو جوړونکی او د شرابو نقل کوونکی او حمل کوونکی.

جاء فی فی فقه المعاملات المعاصرة :

للمسلم إذا لم يجد عملاً مباحاً شرعاً العملُ في مطاعم الكفار، بشرط أن لا يباشر بنفسه سقي الخمر، أو حملها، أو صناعتها، أو الاتجار بها، وكذلك الحال بالنسبة لتقديم لحوم الخنازير ونحوها من المحرمات.

(مجمع الفقه الإسلامي، جدة، الدورة الثالثة، القرار رقم (١١)، السؤال العاشر).

و الله سبحانه وتعالى اعلم

د بير او نورو مشروباتو په دوکان کې کار کول څه حکم لري ؟

سلامونه او نيکی هيلی می ټولو محترمو استادانو او عالمانو ته ډالی دي!

د يو مسلمان لپاره په دوکان کی کار کول چيرې چې د نورو خوراکي شيانو په شمول بير هم خرڅيږی.اسلام څه حکم لری؟

دځواب په انتظار يم. مننه – احمد

ځواب

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه ومن والاه، وبعد.

البير يا د وربشو اوبه په دوه ډوله دي :

اول ډول : هغه بير چې نشه لري کوم چې په ځينو ښارونو کې پلورل کيږي ، پس دا د وربشو شراب دي ، خريد او فروش او څښل يې حرام دي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ» (رواه مسلم -٢٠٠٣).

ژباړه: هر نشه كوونكى شى شراب دي او هر نشه كوونكي شى حرام دي (كوم شى چې نشه ولري هغه كه هر ډول تعامل او نوم ولري د شرابو حكم لري).

د شرابو او نشه كوونكي شي څښل حرام دي هغه كه لږ وي او يا ډير ، و لو كه يو څاڅكى هم وي حرام دى ، ځكه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

«مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ» ( رواه الترمذي - ١٨٦٥).

يعنې : د هغه څه چې زيات مقدار نشه كونكى وي كم مقدار يې هم حرام دى.

دوهم ډول : هغه بير دي چې نشه نه لري ، او د الكحولو څخه خالي دي ، هغه ډيرو انسانانو چښلي دي نشه نه لري نو په دې قسم باندې د علماء فتوى دا ده چې دا ډول بيرحلال دي.

(موقع الاسلام سوال جواب ، شيخ محمد صالح المنجد – رقم الفتاوي ٣٣٧٦٣)

كوم بير چې نشه ولري هغه شراب دى د هغه خريد او فروش حرام دى ځكه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

(إن الله إذا حرم شيئا حرم ثمنه)

ژباړه : يقيناً الله (جل جلا له) چې د كوم شي د حرمت حكم كړى وي د هغې بيع او تجارت هم حرام دي.

او د اسلام عمومي قاعده ده چې په حرام كار كې مدد او مرسته كول حرام دي :

لقوله سبحانه وتعالى : [ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلا تَعَاوَنُوا عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ]

ژباړه: په نيكۍ او پرهيزكارۍ كې يو له بله مرسته وكړئ او (هيچكله) د ګناه او نافرمانۍ په كار كې يو له بله مرسته مه كوئ.(المائده ٢٠).

مزدوري په هغه کار کې جایزه ده چې ذاتاً او آثاراً حلال وي ، ذاتاً دا چې په هغه کې شرعي حرمت نه وي لکه سود ، شراب ،فحشاء او نور ، او آثاراً دا چې هغه کار د اسلام او مسلمانانو په ضرر نه وي.

و الله سبحانه وتعالى اعلم.

و ما توفيقي الا بالله عليه توكلت و اليه انيب

و الصلاة و السلام على رسول الله وعلى آله وصحبه اجمعين